چېرته ډب نه وي ادب نه وي متل دی     جهاد ډب دی د ادب او ښهٔ عمل دی

د جهـــاد په ډب کاږهٔ واږهٔ سمېـږي     د کږو وږو سمون لـپـاره حـل دی



## د پت او عزت منار او د جنت لنډه لار

**عبدالرحيم مسلم دوست**



## د کتاب پېژندنه :


| | |
|---|---|
| د کتاب نوم : | د ادب ډب . |
| لیکوال : | عبدالرحیم مسلم دوست . |
| د کمپیوټر سمبالوونکی : | توریالی . |
| د لومړي چاپ کال : | ۱۴۳۱ هـ ق . |
| د چاپ شمېر : | ۱۰۰۰ |
| خپروونکی : | خلافت خپرندویه ټولنه . |

که جهاد نه وي او د ظالم او ظلم مخنیوی ونه شي، د مظلوم مرسته ونه شي او سرغړونکي او یاغیان په زور سم نه شي نو بیا خو به نړۍ رنګه او ګډه وډه شي، ورانکاري او فسادونه به زیات شي او د سمون، بدلون او پر مختګ لارې به وتړل شي. خو جهاد د همدې لپاره دی چې انسانان د یو منظم او عادل نظام لاندې وي ،هر ډول حقونه یې خوندي وي، انصاف او حق یې د کور تر ورۀ وریا ور ورسېږي ،له انساني غړوندیو او بندیزونو او له شیطاني پلمو څخه ازاد او په امن وي، په دنیا کې ټول انسانان سره ورونه وي او په انسان لاڅه چې په حیوان، نبات او نورو مخلوقاتو هم ظلم نه وي ، دنیا کې د مینې او خوښۍ ژوند وي او د اخرت له عذابونو هم وژغورل شي، لنډه دا چې هر ډول دنیوي او اخروي نېکمرغۍ د انسان او ګردې نړۍ په برخه شي او له هر ډول بدمرغیو وژغورل شي. نو د همدې لپاره دا اړینه ده چې د سمون او عدل لپاره به د ګډوډۍ او ظلم مخنیوی کېږي.

(له همدې کتابه)

# ویاړونه پېغورونه

چې د پت عزت او د غیرت ویاړونه وګټل
چا د غلامۍ لوښي له شرم سره وځټل
چا د تاریخ پاڼو کې زرینې کرښې زیاتې کړې
چا په عار پېغور باندې لمسي کړوسي ونټل
چا د ویاړ شمله تر کهکشانه پورې لوړه کړه
ځوړ سرونه چا د زیړ خښتګ حتار کې وکړل
چا په خپلو وینو ارزښتونه کړه وساتل
چا خپل عفتونه غلیمانو باندې وپلورل
څوک د خپلو ورونو په تړون ښاغلي پاتې شو
چا په ملګرۍ کې د غلیم لاسونه ونیول
چا باندې به ویاړي تاریخونه او نسلونه ټول
چا تور پېغورونه خپلې ټنډې باندې وټپل
اند چې ویښ ژوندی وي کتابتون ته اړتیا نه لري
دوست په زولنو کې هم پټمن بابونه ولیکل

۱۴۳۰\۸\۱۱ هـ س

# دا کتاب

دا کتاب د الله سبحانه وتعالی په لار کې د جهاد په هکله هغه ځانګړی کتاب دی چې د جهاد ډېر مفاهیم، احکام او د ځینو نویو راپېښو مسائلو په هکله پکې د اړتیاوړ څېړنه شوې ده؛ د في سبیل الله جهاد د تودو سنګرونو نومیالیو، مېړنیو او پتمنو اتلانو لپاره د لارې مشال او لارښود دی، هیله لرو چې ویدهٔ راویښ کړي، ویښو ته پاڅون وروبښي، پاڅون ته یون، یون ته اووښتون، اووښتون ته بدلون، بدلون ته سمون ورکړي او سمون د سپین سباوون پیلامه شي.

مسلم دوست

# بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله الذي أرسل رسوله بالهدى و دين الحق ليظهره على الدين كله و لو كره الكافرون. والصلاة والسلام على رسوله الأمين و قائد المجاهدين محمد و على آله و أصحابه الذين معه أشداء على الكفار رحماء بينهم إختارهم الله لصحبة نبيه. و من تبعهم بإحسان إلى يوم الدين.

و بعد:

**الله سبحانه و تعالى په خپلو بندګانو ډېر زيات لوروونکی او مهربان دی د خپلې مهربانۍ او لورېنې له مخې يې د انسانانو د پيداکولو سره سم د هغوی د لارښوونې او نېکمرغۍ لپاره د پېغمبرانو د را لېږلو سلسله پيل کړې ده او د همدې سلسلې او زنځير اخري کړۍ محمد رسول الله ﷺ دی په هغه د پېغمبرانو سلسله بشپړه شوې ده او له هغه وروسته نور پېغمبران نه راځي. هغه تر قيامته د ټولې نړۍ د انسانانو او پېريانو لپاره لارښود دی. هغه ﷺ د کوم ځانګړي قوم، خېل، نسل او د ځمکې د کوم ټاکلي بريد لپاره نه دی راغلی بلکه له مشرقه تر مغربه، له شماله تر جنوبه، عربو، عجمو، تورو، سپينو، نارينه ؤ او ښځينه ؤ ټولو ته رالېږل شوی دی او الله تعالی داسې کتاب (قران) او داسې لارښوونې او احکام ورکړي دي چې د نړۍ په ګوټ ګوټ کې په هر چا، هر ځای او هر مهال د**

پلي کېدو او نافذېدو وړ دي او د ګردې نړۍ نېکمرغي پکې نغښتې ده.

او الله تعالى دخپلې لورېنې او مهربانۍ له مخې ددې دين د خپرولو او په دې نړۍ کې د ظلم، فساد او بدمرغيو د مخنيوي لپاره په خپلو منونکيو مؤمنانو بندګانو جهاد فرض کړی دی. او د همدې جهاد په برکت هغه بدمرغۍ، ظلمونه، فسادونه، تيارې او تربرمۍ له منځه لاړې چې د اسلام نه مخکې يې نړۍ تپه تيارۀ، اغزنه او خنډنه کړې وه او مونږ مسلمانان په دې مامور يوو، دا مو دنده او مسئوليت دی چې تل د انکار، فساد، ظلم او بې لارۍ مخه ونيسو. تر دې چه که د تېرې کوونکيو په وژلو او زمونږ د شهادت په ارزښت هم وشي ودې شي خو دا نړۍ دې د اسلام په رڼا روښانه او له هر ډول کفر، شرک، ظلم، فساد، تېري، نا انډولۍ نه پاکه، سپينه، رڼه، سوچه او نږه وي. د همدغه مخنيوي او همدې لاس ته راوړنو نوم جهاد في سبيل الله دی.

# جهاد في سبيل الله تعالی

جهاد په لغت کې هڅې، خواريځ او کوښښ ته ويل کېږي او په فقهي اصطلاح کې د الله تعالی په لار کې د هغه جل جلاله د دين د لوړوالي او نفاذ لپاره د اسلام د دښمنانو په خلاف د خپل وس کره پوره ښندنه جهاد بلل کېږي. او په وس کې ژبه، قلم، توره او مال ټول راځي چې مجاهد به هر يو په خپل خپل ځای او په خپل خپل وخت کې استعمالوي او هيڅ دريغ به پکې نه کوي. د اسلام دين، پيغمبر او قران د ګردې نړۍ د لارښوونې او خير لپاره راغلی دی الله تعالی فرمايي:

(( وَمَآ أَرْسَلْنَٰكَ إِلَّا كَآفَّةً لِّلنَّاسِ بَشِيرًا وَنَذِيرًا ))[1].

(( او مونږ ته ټولو خلکو لپاره زېری ورکوونکی او وېروونکی لېږلی يې )).

او فرمايي:

((وَمَآ أَرْسَلْنَٰكَ إِلَّا رَحْمَةً لِّلْعَٰلَمِينَ))[2].

(( او مونږ ته ټولو خلکو لپاره رحمت لېږلی يې )).

---

[1]- سورة سبا: ۲۸.

[2]- سورة الانبياء: ۱۰۷.

او فرمايي:

(( إِنَّ هَٰذَا ٱلْقُرْءَانَ يَهْدِى لِلَّتِى هِىَ أَقْوَمُ ))[١].

(( دا قران بې شکه هغې لارې ته لارښوونه کوي چې هغه ډېره سمه ده )).

او فرمايي:

(( إِنَّ ٱلدِّينَ عِندَ ٱللَّهِ ٱلْإِسْلَٰمُ ))[٢].

((الله سره حق دين بې شکه اسلام دی )).

او فرمايي:

(( وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ ٱلْإِسْلَٰمِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِى ٱلْءَاخِرَةِ مِنَ ٱلْخَٰسِرِينَ ))[٣].

(( او چا چې له اسلام پرته بل دين غوره کړ نو هيڅکله به ور څخه ونه منل شي او هغه به په اخرت کې له تاوانيانو نه وي )).

او فرمايي:

(( وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنتُم مُّسْلِمُونَ ))[٤].

(( او تاسو يوائې په داسې حال کې ومرئ چې مسلمانان يئ )).

---

[١]- سورة الاسراء : ٩.

[٢]- سورة ال عمران : ١٩.

[٣]- سورة ال عمران : ٨٥.

[٤]- سورة ال عمران : ١٠٢.

او فرمايي:

«ٱدۡخُلُواْ فِي ٱلسِّلۡمِ كَآفَّةٗ وَلَا تَتَّبِعُواْ خُطُوَٰتِ ٱلشَّيۡطَٰنِۚ إِنَّهُۥ لَكُمۡ عَدُوّٞ مُّبِينٞ»[1].

«په اسلام کې بشپړ ننوځئ او د شيطان د پلونو پسې مه ځئ هغه بې شکه ستاسو څرګند دښمن دی».

اوس نو چې کله دا جوته شوه چې قران او پيغمبر د ټولو خلکو د لارښوونې لپاره راغلی دی او د ټولو خلکو لپاره رحمت دی، حق دين يواځې اسلام دی، له اسلام پرته بل دين الله تعالی ته مقبول نه دی، مونږ ټول انسانان او پېريان بايد پوره په اسلام کې ننوځو او بايد تر مرګه مسلمانان واوسوو. نو دا يو د خير دعوت دی چې بايد ټولو انسانانو او ګردې نړۍ ته ورسېږي او ددې دعوت رسول خلکو سره خواخوږي ده، دا هغوی سره ښېګړه ده او دا په هغوی پېرزوينه او لورېنه ده....

اوس چې ددې ښېګړې د رسولو په لار کې څوک خنډ واقع کېږي او نه پرېږدي چې دا ښېګړه ټولو خلکو ته ورسېږي او ټول خلک په سمه لار روان، نېکمرغه او د دنيا او اخرت له عذابه وژغورل شي نو ايا دغه د لارې شوکوونکي غله او ډاکوان دې همداسې خپل سري پرېښودل شي چې هر څه کوي ودې کړي او هر چاته چې زيان رسوي ودې رسوي؟! که نه د دوی مخه دې ونيول شي دوی دې په ادب شي او که په هيڅ ډول له

---

[1] - سورة البقره: ٢٠٨.

خپلې سرکشۍ او بدماشۍ نه نه تېرېدل نو ودې وژل شي؟!
ددې د لا زیات وضاحت او روښانولو لپاره یې ساری یا مثال داسې دی چې:

په کوم کلي او ولس زلزلې، سېلابونه، قحطي او وبا راغلې وي ، ټول خلک وږي، تږي، بربنډ، بې کوره، بې وزلي او محتاج وي او د ژوند هر ډول اسبابو ته اړ وي ،د یوې بلې سیمې خلک د خواخوږۍ او مسئولیت پېژندنې له مخې څه غلې دانې، خواړه، دارو درمل، پوښاک او نور د اړتیا وړ سامان واخلي او هغه مصیبت ځپلې سیمې ته ور روان شي چې هغوی سره مرسته او ښېګړه وکړي، لاس ورکړي او د تباهۍ او بربادۍ نه یې وژغوري، خو په لار کې غله او داړه ماران راو اوځي او نه پرېږدي چې دا ښېګړه او خیر هغو محتاجو خلکو ته ورسېږي، نو ایا دا خلک دې بېرته ستانه شي او د څو غلو او داړه مارانو له امله دې لویه سیمه پرېږدي چې خلک له ولږې او بې درملۍ نه مړهٔ شي او که نه د هغو محتاجو خلکو د ژغورلو لپاره دې دا داړه ماران ونیول، ووهل او ووژل شي؟.

تاسو به خامخا او هرومرو بې له کوم شک، ځنډ او تردد نه ووایئ چې د هغو ډېرو محتاجو خلکو د ژوند د ژغورلو لپاره او د یوې لویې انساني فاجعې د رامنځ ته کېدو د مخنیوي لپاره دې دغه غله ووژل شي او هغو خلکو ته دې خیر ښېګړه ور ورسول شي.

همدغه د جهاد في سبيل الله بېلګه ده اسلام يو لوى خير او ښېګړه ده چې ټول انسانان او ګرده نړۍ ورته اړتيا لري او مونږ الله تعالى په دې مامور کړي يو او دا مو دنده او مسئوليت دى چې دا خير ښېګړه ټولو محتاجو انسانانو ته ورسوو تر څو د دنيا او اخرت له بدمرغيو او بربادېو وژغورل شي او که د بلنې او د ښېګړې د رسولو په لار کې څوک خنډونه واقع کېږي اسلام هيڅکله مونږ ته دا اجازه نه راکوي چې هغوى ته کوم زيان ورسوو خو چې څوک مونږ نه پرېږدي چې محتاجو خلکو ته دا د اسلام خير او ښېګړه ورسوو او د ټولې نړۍ د بدمرغۍ او بربادۍ لامل ګرځي نو اسلام مونږ ته امر کوي چې دغه خنډونه، غنې او اغزي له لارې لرې کړو او د لارې دې پاکولو ته جهاد في سبيل الله ويل کېږي چې ددې کتاب د ليکلو مرکزي او محوري موضوع هم همدا د «جهاد» عنوان دى. او له همدې امله جهاد في سبيل الله تعالى يوازې دفاعي جنګ نه دى بلکه جهاد تاديبي او دفاعي دواړه اړخونه لري او هغه خلک د جهاد له حقيقت څخه ناخبره دي چې جهاد يوازې دفاعي عمل بولي بلکه دا د اسلام د دښمنانو يوه پلمه ده چې د ځينو ضعيف النفسه او ناپوهو په ذهن کې يې دا وراچولې ده چې ګنې جهاد يوازې دفاعي جنګ دى. دا بېخي ناسمه ده بلکه جهاد في سبيل الله د الله تعالى د دين د لوړولو او د هر ډول ظلم د مخنيوي جنګ دى نو له همدې امله اسلامي خلافت د دفاع وزارت نه بلکه د جهاد وزارت لري.

پښتانه وايي: «چې چېرته ډب نه وي هلته ادب نه وي»

نو جهاد في سبيل الله همدغه د ادب ورکولو ډب دی چې بې ادبو ته ورکول کېږي.

او که د اسلام په خاوره یرغل وشي یيا خو جهاد په مسلمانانو فرض عين شي چې پور وړی د پور د خاوند نه اجازې ته او ځوی د پلار اجازې ته اړتیا نه لري او دا په ګرده نړۍ او یيا په ځانګړې توګه په انسانانو د الله تعالی لویه لورېنه او پېرزوینه ده چې د نړۍ د سمون او د ظالم د مخنیوي لپاره الله تعالی په خپلو منونکیو مؤمنو بندګانو جهاد فرض کړی دی.

که جهاد نه وي او د ظالم او ظلم مخنیوی ونه شي، د مظلوم مرسته ونه شي او سرغړونکي او یاغیان په زور سم نه شي نو یيا خو به نړۍ ړنګه او ګډه وډه شي، ورانکاري او فسادونه به زیات شي او د سمون، بدلون او پر مختګ لارې به وتړل شي. خو جهاد د همدې لپاره دی چې انسانان د یو منظم او عادل نظام لاندې وي ،هر ډول حقونه یې خوندي وي، انصاف او حق یې د کور تر ورۀ وړیا ور ورسېږي ،له انساني غړوند یو او بندیزونو او له شیطاني پلمو څخه ازاد او په امن وي، په دنیا کې ټول انسانان سره ورونه وي او په انسان لاڅه چې په حیوان، نبات او نورو مخلوقاتو هم ظلم نه وي ، دنیا کې د مینې او خوښۍ ژوند وي او د اخرت له عذابونو هم وژغورل شي، لنډه دا چې هر ډول دنیوي او اخروي نېکمرغۍ د انسان او ګردې نړۍ په برخه شي او له هر ډول بدمرغیو وژغورل شي. نو د همدې لپاره دا اړینه ده چې د سمون او عدل لپاره به د ګډوډۍ او ظلم مخنیوی کېږي.

او که دا مخنیوی ونه شي نو ګرده نړۍ به د ګډوډۍ، بدمرغۍ او فساد سره مخ شي ځکه چې ټول خلک به خپل سري وي څه یې چې خوښه وي هغه به کوي نو څرګنده ده چې همدا د ګډوډۍ، ورانکارۍ او بدکارۍ لامل جوړېږي.

الله تعالی فرمايي:

«وَلَوْلَا دَفْعُ ٱللَّهِ ٱلنَّاسَ بَعْضَهُم بِبَعْضٍ لَّفَسَدَتِ ٱلْأَرْضُ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ ذُو فَضْلٍ عَلَى ٱلْعَٰلَمِينَ»[1].

«او که د الله د ځینو خلکو په ځینو دفع کول نه وی نو ځمکه به فاسده شوې وه خو الله په ټولو خلکو د مهربانۍ څښتن دی».

او فرمايي:

«وَلَوْلَا دَفْعُ ٱللَّهِ ٱلنَّاسَ بَعْضَهُم بِبَعْضٍ لَّهُدِّمَتْ صَوَٰمِعُ وَبِيَعٌ وَصَلَوَٰتٌ وَمَسَٰجِدُ يُذْكَرُ فِيهَا ٱسْمُ ٱللَّهِ كَثِيرًا ۗ وَلَيَنصُرَنَّ ٱللَّهُ مَن يَنصُرُهُۥٓ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَقَوِىٌّ عَزِيزٌ»[2].

«او که الله ځینې خلک په ځینو نه دفع کولی نو د نصاراؤ کلیساوې، د یهودو عبادتځایونه، د زاهدانو عبادتځایونه او

---

[1] - سورة البقره: ۲۵۱.

[2] - سورة الحج: ۴۰.

هغه جوماتونه به رنګ شوي وو چې د الله نوم پکې ډېر یاد یږي او الله سره چې څوک مرسته کوي الله به هرو مرو هغه سره مرسته وکړي الله بې شکه خامخا ځواکمن او غالب دی ».

او د همدې دفعې او د فاسد د مخنیوي نوم « جهاد » دی .

نو کله چې دا جوته شوه چې الله تعالی د نړۍ د سمون او نېکمرغۍ لپاره اسلام رالیږلی دی او په اسلام کې یې ددې سمون لپاره جهاد فرض کړی دی نو د ښېګړو، عدل او سمون دا ښکلی دین باید په ټولو دینونو لوړ او برلاسی وي تر څو لارښوونه او حق د ټولو په برخه شي او هیڅوک ورڅخه محروم پاتې نه شي . الله تعالی فرمایي :

« هُوَ ٱلَّذِىٓ أَرۡسَلَ رَسُولَهُۥ بِٱلۡهُدَىٰ وَدِينِ ٱلۡحَقِّ لِيُظۡهِرَهُۥ عَلَى ٱلدِّينِ كُلِّهِۦ وَلَوۡ كَرِهَ ٱلۡمُشۡرِكُونَ »[۱] .

« الله هغه ذات دی چې خپل پېغمبر یې ددې لپاره د لارښوونې او حق دین باندې لیږلی دی چې په ټولو دینونو یې غالب کړي اګر که مشرکان دا بده ګڼي هم ».

او د دین دا غلبه او لوړوالی یوائې په جهاد کېدی شي نو ځکه په اسلام کې داسې لوړ ځای لري لکه اوښ کې یې چې بوکان لري .

حدیث کې راځي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي :

« رأس الأمر الإسلام و عموده الصلاة و ذروة سنامه

---

[۱]- سورة الصف : ۹.

الجهاد))[١].

(( زمونږ د دين بنسټ او سر اسلام دی، ستن يې لمونځ دی او د بوکان لوړه څوکه يې جهاد دی)).

که اسلام مغلوب شي نو حق به مغلوب شي او چې حق مغلوب شي نو د ظلم او بربادۍ بازار به تود شي؛ نو له همدې امله بايد اسلام، اسلامي امت او اسلامي شريعت غالب، لوړ، غښتلی او پلی وي. تر څو نړۍ د عدل او سمون اسلامي نظام لاندې نېکمرغه، ودانه او خوشحاله وي.

حديث کې راځي:

(( الإسلام يعلو ولا يُعْلى ))[٢].

(( اسلام لوړېږي او پورته کېږي او په اسلام هيڅ نه لوړېږي )).

اسلام د الله سبحانه و تعالی دين دی او هغه جل جلاله د خپلو بندګانو ښېګړې او نېکمرغۍ ښه پېژني نو د الله تعالی دين به تل لوړ، غالب او نافذ وي. نورو اسماني دينونو کې لاسوهنه او تحريف شوی دی او غير اسماني دينونه، ازمونه او ګروهې د انساني فکر او ذوق زېږنده ده او انساني اندونه او ذوقونه په توپير سره دي نو له همدې امله د تضادونو او ټکرونو مجموعه او لاملونه دي او وخت په وخت بدلېږي او ترميم پکې کېږي او هر څوک يې د خپل ذوق او غوښتنو سره برابروي او

---

[١]- رواه الطبراني و احمد والترمذي والحاكم والبيهقي.

[٢]- رواه البخاري معلقاو وصله الدار قطني بسند صحيح.

خپلې ګټې پکې خوندي کوي..... خو اسلام د راتلو له لومړۍ ورځې څخه تر قيامته نه بدلېدونکي او پاخه بنسټونه، احکام او قوانين لري نو ځکه به لوړ وي او ددې لوړوالي لپاره جهاد مشروع شوی دی.او د جهاد ټولې دنيوي او اخروي ښېګړې او ګټې د مجاهدينو لپاره دي الله تعالی له هر څه مستغني دی او هيڅ ته اړ نه دی .

الله تعالی فرمايي :

(( وَمَن جَٰهَدَ فَإِنَّمَا يُجَٰهِدُ لِنَفۡسِهِۦٓۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَغَنِيٌّ عَنِ ٱلۡعَٰلَمِينَ ))[1].

(( او چا چې جهاد وکړو نو هغه بې شکه د خپل ځان لپاره جهاد کوي الله بې شکه د ټولو مخلوقاتو نه بې پروا دی )).

جهاد د سمون او رغونې لپاره او د فساد د مخنيوي لپاره کېږي او دا ټول د انسانانو اړتياوې او ضرورتونه دي .

د عربو هغه جاهلي ټولنه چې لورګانې به يې ژوندۍ په خاورو منډلې، د بوتانو عبادت به يې کاوه، په پېړيو جاهلي تعصبي جنګونه به يې کول، ښځو ته په سپکه کتل کېدل او نور ګڼ او ډول ډول ناوړه دودونه او رواجونه پکې خپاره وو؛ يوازې د جهاد في سبيل الله په برکت د علم او تمدن نړۍ ته راووتل، د نړۍ ګوټ ګوټ ته د اسلام رڼا د جهاد له لارې ورسېده ......

[1]- سورة العنكبوت : ٦.

د جهاد په نه کولو د امورو نظم او نسق له منځه ځي او د ښېګړو مخه نيول کيږي .

**مجاعة بن مراره ابوبكر الصديق رضي الله عنه ته وويل :**

(( إذا كان الرأى عند من لا يقبل منه والسلاح عند من لايستعمله والمال عند من لا ينفقه؛ ضاعت الأمور))[1].

((كله چه كومه رايه او مشوره هغه چا سره وي چې څوک يې ورځخه نه قبلوي، وسله هغه چاسره وي چې نه يې استعمالوي او مال هغه چا سره وي چې نه يې لګوي نو كارونه به تتلي (برباد) شي)).

---

[1] - الاداب الشرعية والمنح المرعية (لابن مفلح المقدسي) : ۱۸۱/۱.

# د جهاد موخه (هدف)

**د جهاد في سبيل الله موخه دا ده چې په دې ځمکې کې قانون، شریعت او طاعت یوائې د الله تعالی شي او نور قوانین، حکومتونه او طاعتونه رنګ او له منځه لاړ شي الله تعالی فرمايي:**

(( وَقَٰتِلُوهُمۡ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتۡنَةٞ وَيَكُونَ ٱلدِّينُ لِلَّهِۖ فَإِنِ ٱنتَهَوۡاْ فَلَا عُدۡوَٰنَ إِلَّا عَلَى ٱلظَّٰلِمِينَ ))[1].

**(( او هغوی سره تر هغې وجنګیږئ تر څو چې طاعت او قانون الله لپاره شي او که هغوی منع شول نو له ظالمانو پرته په هیچا تېری نشته )).**
**او فرمايي:**

(( وَقَٰتِلُوهُمۡ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتۡنَةٞ وَيَكُونَ ٱلدِّينُ كُلُّهُۥ لِلَّهِۚ فَإِنِ ٱنتَهَوۡاْ فَإِنَّ ٱللَّهَ بِمَا يَعۡمَلُونَ بَصِيرٞ ))[2]

**(( او کافرانو سره تر هغې وجنګیږئ چې شرک او فساد پاتې نه شي او طاعت او قانون ټول الله لپاره شي. که هغوی منع شول نو الله بې شکه د هغو کړو ښه لیدونکی دی چې تاسو یې**

---

[1]- سورة البقره: ۱۹۳.
[2]- سورة الانفال: ۳۹.

کوئ ›› .

نو د جهاد في سبيل الله موخه او هدف دا دی چې کفر، شرک او فساد ورک شي او قانون، طاعت او حکومت يوائې د الله تعالی شي او سل په سلو کې ټول د الله تعالی شي ځکه چې فرمايي ‹‹ و يکون الدين کله لله ›› دا نه چې ‹‹ بعضه لله و بعضه لغير الله ›› ځينې دې د الله وي او ځينې دې د بل چا وي ›› ؛ ځينې دې د الله وي او ځينې دی د امريکاوي؛ ځينې دې د الله وي او ځينې دې د نورو طاغوتانو يا د نفسي غوښتنو وي...... بلکه ترڅو چې ‹‹ کُله لله ›› شوی نه وی او کفر او فساد نه وي ورک شوی تر هغې مونږ په جهاد مامور يوو.

او په حديث کې رائحي :

عن أبى موسى قال: جاء رجل إلى النبى ﷺ فقال: الرجل يقاتل للمغنم والرجل يقاتل للذكر و الرجل يقاتل ليرى مكانه فمن فى سبيل الله؟ قال: ‹‹ من قاتل لتكون كلمة الله هى العليا فهو فى سبيل الله ››[1].

ابو موسی رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: يو سړی نبي کريم ﷺ ته راغی او ويې ويل : يو سړی د غنيمت لپاره جنګېږي، يو سړی د شهرت لپاره جنګېږي او يو سړی ددې لپاره جنګېږي چې د زړورتيا مرتبه يې وليدل شي نو د الله په لار کې کوم يو دی؟ هغه وفرمايل : ‹‹ څوک چې ددې لپاره وجنګېد

---

١- رواه البخاري و مسلم .

چې يوائځې د الله کلمه پورته شي نو هغه د الله په لار کې دی ».

د الله تعالی کلمه د هغه جل جلاله توحيد او دين دی او پورته والی او لوړوالی يې دادی چې شرک او وضعي قوانين ورک شي هغه جل جلاله په ذات، صفاتو او عبادت کې يو وګڼل شي او د هغه جل جلاله شريعت او دين په دې ځمکه حکومت وکړي او عملي نافذ شي.[1]

او کله چې د الله تعالی دين نافذ او غالب شي نو نړۍ به له هر ډول ظلم، ګډوډۍ او بدمرغۍ نه پاکه شي او په انصاف، سمون او هر ډول نېکمرغيو به نېکمرغه، ښېرازه، ودانه او خوشحاله شي.

په حديث کې د قتال فی سبيل الله موخه داسې څرګنده شوې ده:

عن ابن عمر أن رسول الله ﷺ قال: « أمرت أن أقاتل الناس حتى يشهدوا أن لا إله إلا الله و أن محمدا رسول الله و يقيموا الصلاة و يؤتوا الزكاة فاذا فعلوا ذلك عصموا مني دماءهم و أموالهم إلا بحق الإسلام و حسابهم على الله »[2].

د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي: « ماته امر شوی دی چې تر هغه خلکو سره وجنګېږم تر څو چې ددې ګواهي وکړي چې له الله پرته بل معبود نشته او محمد د الله پېغمبر دی، کره پوره لمونځ وکړي او زکات

---

[1]- د توحيد د زيات وضاحت لپاره «توحيد ربنا» کتاب وګورئ.

[2]- رواه البخاري.

ورکړي. دا کارونه يې چې وکړل نو د اسلام له حق پرته يې له ما خپلې وينې او خپل مالونه وژغورل او حساب يې په الله دی ».

د جهاد هدف، توغ او موخه به د لمر غوندې روښانه، واضحه، څرګنده او ډاګيزه وي که نه نو بيا فی سبيل الله نه ګڼل کيږي.

بل حديث کې د فی سبيل الله جهاد او د فساد توپير داسې راغلی دی:

عن معاذ قال: قال رسول الله ﷺ : « الغزو غزوان: فأما من ابتغى وجه الله و أطاع الإمام و أنفق الكريمة و ياسرالشريك و اجتنب الفساد فان نومه و نبهه أجر كله. و أما من غزا فخرا و رياء و سمعة و عصى الإمام و أفسد فى الأرض فانه لم يرجع بالكفاف »[1].

معاذ رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: رسول الله ﷺ وفرمايل: « جهاد دوه ډوله دی: چا چې د الله رضا لټوله، د خليفه يې منل، ښه مال يې په جهاد کې ولګاوه، د ملګري سره يې اساني وکړه او ورانکاری نه يې ځان وژغورهٔ نو د هغه خوب او د هغه ويښه ټول اجر او ثواب دی. او څوک چې د فخر، ريا او خلکو کې د ځان مشهورولو لپاره وجنګيد، د خليفه نه يې سرغړونه وکړه او په ځمکه کې يې فساد وکړ نو هغه د ښېګړې سره روانه ګرځيد ». يعنې ګونا سره راستون شو.

---

۱- رواه مالک و ابوداود و النسائی.

**بل حدیث کې راځي:**

عن أبی هريرة أن رجلا قال: يا رسول الله! رجل يريد الجهاد فی سبيل الله فهو يبتغی عرضا من عرض الدنيا. فقال النبی ﷺ : «لا أجر له»[1].

**ابو هریرة رضي الله عنه نه روایت دی چې یو سړي وویل: «ای د الله پیغمبره! یو سړی د الله په لار کې جهاد کې دوتو اراده لري او هغه د دنیا د ګټونه کومه ګټه غواړي پیغمبر ﷺ وفرمایل: «هغه لپاره هیڅ اجر نشته».**

**د «یرید الجهاد فی سبیل الله» معنا دا ده چې د الله په لار کې چې کوم جهاد پیل شو دی او نور مجاهدین پکې اوځي نو دی هم غواړي چې هغوی سره واوځي خو د ده موخه دنیوي ګټه وي الله تعالی لپاره وتل یې مقصد نه وي».**

**نو جهاد به هله فی سبیل الله وي چې د «کلمة الله» د سر لوړې، د فتنو او فساد د له منځه وړلو او د عدالت د نظام د نافذولو لپاره وي د هرډول شخصي، قومي، سیاسي، تنظیمي او نورو دنیوي اغراضو لپاره جنګ «فی سبیل الله» نه دی.**

**حدیث کې راځي:**

عن أبي هريرة رضي الله عنه قال: سمعت رسول الله ﷺ يقول: «من خرج من الطاعة و فارق الجماعة فمات، مات ميتة الجاهلية؛ و من قاتل تحت راية عمية يغضب لعصبية أو

---

۱- رواه ابو داود.

يدعوا لعصبية أو ينصر عصبية فقتل فقتلته جاهلية، و من خرج على أمتى بسيفه يضرب برها و فاجر ها و لا يتحاشى من مؤمنها و لا يفى لذي عهد عهده فليس مني و لست منه ››[1].

**ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: ما رسول الله ﷺ نه اورېدلي دي چې فرمايل يې: ‹‹ څوک چې د امير له طاعت نه وواته او د مسلمانانو جماعت نه جلا شو او ومړ نو د جاهليت په مړينه و مړ؛ او څوک چې د ناڅرګند توغ (بيرغ) لاندې وجنګېد چې عصبيت لپاره غوسه کوي، عصبيت ته بلنه ورکوي او د عصبيت مرسته کوي او ووژل شو نو د هغه وژل د جاهليت وژل دي؛ او چا چې زما د امت پر خلاف توره راوايستله چې نېک او بدکاره يې وهي، له مؤمن څخه يې ځان نه ژغوري او د تړون خاوند لپاره د هغه په تړون وفا نه کوي نو هغه له ما څخه نه دی اوزه له هغه څخه نه يم ››.**

**د في سبيل الله جهاد نه پرته ټول جنګونه د عصبيت دي او چا چې د عصبيت جنګ وکړ نو د هغه مړينه د جاهليت ده او رسول الله ﷺ له هغه نه بېزاره دی. د هغه د بېزارتيا معنا داده چې هغه مسلمان پاتې نه شو.**

**او د جهاد في سبيل الله په نتيجه کې چې مجاهدينو ته حکومت او دولت لاس ته ورشي نو بيا يې دندې او مسؤليتونه داسې ور په ګوته کوي:**

---

۱- رواه ملسم.

(( ٱلَّذِينَ إِن مَّكَّنَّٰهُمْ فِى ٱلْأَرْضِ أَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُا۟ ٱلزَّكَوٰةَ وَأَمَرُوا۟ بِٱلْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا۟ عَنِ ٱلْمُنكَرِ ۗ وَلِلَّهِ عَٰقِبَةُ ٱلْأُمُورِ )).[1]

(( (مجاهدين) هغه خلک دي چې که مونږ په ځمکه کې حکومت ورکړو نو کره پوره لمونځ کوي، زکات ورکوي، په نېکیو امر کوي او له بديو منع کوي او د کارونو پايلې يوازې الله پورې اړه لري )).

نو د لمانځه کره پوره کولو او د زکات ورکولو کې بدني او مالي طاعتونه او عبادتونه راغلل او په امر بالمعروف کې د اسلام ټولې ښېګړې، محاسن او احکام داخل شول او په (( نهی عن المنکر)) کې هر کفر، شرک، ظلم تېری، ټول ناوړه کارونه او ګناوې داخلې دي نو معنا دا شوه چې (( مونږ په ځمکه کې حکومت ورکړو نو بشپړ اسلام به نافذوي، او د بشپړ اسلام په نفاذ کې د نړۍ نېکمرغی نغښتې دي )).

١- سورة الحج: ۴۱.

# اسلامي خلافت

اسلام کې يو نه د زياتو حکومتونو او دولتونو جواز نشته اسلام کې د مشرق او مغرب، شمال او جنوب، عرب او عجم تور او سپين ټول يو اسلامي امت دی او دا نه په نسلي او قومي بدلون بېلېږي، نه د ژبې او رنګ په بدلون سره جلا کېږي او نه په کومو تنګو سياسي بريدونو.

او دا اوه پنځوس هېوادونه ناروا دي ځکه چې دا ټول يو امت دی الله تعالی فرمايي:

«إِنَّ هَٰذِهِۦٓ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَٰحِدَةً وَأَنَا۠ رَبُّكُمْ فَٱعْبُدُونِ».[1]

«ستاسو دا امت يو امت دی او زه ستاسو رب يم نو زما عبادت وکړئ».

نو د امت وحدت د خلافت، امارت او دولت وحدت ته مستلزم دی. نو له همدې کبله رسول الله ﷺ فرمايي:

«إذا بويع لخليفتين فاقتلوا الآخر منهما».[2]

« کله چې دوه خليفه ګانو ته بيعت وشو نو وروستنی پکې ووژنئ».

---

۱- سورة الانبياء: ۹۲.

۲- رواه مسلم.

نو چې کله دوه خلیفه ګان شي او لومړي کې د عزل او سقوط شرطونه نه وي پیدا شوي او د دوهم وژلو باندې امر وشو او دواړه خلیفه ګان او مسلمانان دي، نو دا اوسني اوه پنځوس مرتدان خو به هرو مرو وژل کیږي چې ټولو وضعي قوانین نافذ کړي دي ، ټول کافروسره ولاړ دي او اسلامي امت یې ټوټه ټوټه کړی دی. دې ټولو سره جهاد فرض دی او دا به تر هغه وي چې تر څو یو خلافت علی منهاج النبوة قائم شوی نه وي .

**حدیث کې راځي :**

عن عرفجة قال: سمعت رسول الله ﷺ يقول: « إنه ستكون هنات و هنات فمن أراد أن يفرق أمر هذه الأمة و هى جميع فاضربوه بالسيف كائنا من كان »[١].

**عرفجه رضي الله عنه نه روایت دی هغه وایي : ما رسول الله ﷺ نه اوریدلي دي چې فرمایل یې : « ډیرې پیښې او فتنې به راشي نو کله چې دا امت یو ؤ او چا غوښتل چې ددې اُمت چارې جلا کړي نو هر څوک چې ؤ په توره ئې ووهئ ».**

**ابوبکر رضي الله عنه خپلې د خلافت په خطبه کې ویلي و و :**

« و إنه لايحل للمسلمين أميران فانه مهما يكن ذلك يختلف أمرهم و أحكامهم و تتفرق جماعتهم و يتنازعوا فيما بينهم هنالك تترك السنة و تظهر البدعة و تعظم الفتنة و ليس

---

[١] - رواه مسلم و ابو داود والنسائی .

لأحد على ذلك صلاح ›› [١].

‹‹ مسلمانانو ته دوه اميران جوړول روانه دي ځکه چې هر کله دوه اميران جوړ شي نو د مسلمانو يووالي، دين او احکامو کې به اختلاف پيدا شي، اتفاق او جماعت به يې سره جلا شي او خپلو منځو کې به جګړې او لانجې پيل کړي ، نو بيا به سنت پرېښودل شي، بدعت به ځرګند شي او فتنه به لويه شي. او په دې کې بيا هيڅا لپاره خير نشته ››.

ريښتيا هم اوس وګورئ چې د حکومتونو، اميرانو او دولتونو په ډېر والي څومره اختلافونه، ظلمونه، ناروا، بدعتونه او جګړې راپيدا شوې دي، څومره احکام تر پښو لاندې شوي دي او مسلمانان د څومره لوی او پلن شر سره مخ دي؟! .......

فانا لله و إنا إليه راجعون .

او اوس دې اوه پنځوسو کې هيڅوک هم کوم يو ته ترجيح نه شي ورکولی دا ټول ديو اس غوربونه دي ټول مرتدان دي خو که فرضا مسلمانان هم شي يو سره هم بيعت صحيح نه دی.

ماوردي رحمه الله وايي :

‹‹ وإذا عقدت الإمامة لإمامين فی بلدين لم تنعقد إمامتهما لأنه لا يجوز أن يكون للامة إمامان فی وقت واحد››. [٢]

---

[١] - سنن البيهقی : ١٤٠/٨.

[٢] - الاحکام السلطانيه للماوردي : ٩.

«کله چې دوه وطنونو کې دوه اميرانو سره د امامت بيعت وشو نو د دواړو امامت ناسم دى او بيعت ورسره صحيح شوى نه دى ځکه چې داروانه دي چې د اسلامي امت دى په يو وخت کې دوه امامان وي».

چې دوه ؤ ته په يو وخت کې بيعت نه صحيح کيږي او د دواړو امامت ناسم وي نو اوه پنځوسو کې به د کوم يو سم وي؟! نو دې اوه پنځوسو ټولو سره جهاد کول فرض دي تر څو ټول سره يو شي.

همدارنګه ابويعلى الفراء رحمه الله وايي:

« و لا يجوز عقد الإمامة لإمامين فى بلدين »[1].

« په دوه وطنونو کې دوه امامانو سره بيعت نه صحيح کيږي ».

امام نووي رحمه الله وايي:

«إذا بويع لخليفة بعد خليفة فبيعة الأول صحيحة يجب الوفاء بها و بيعة الثاني باطلة يحرم الوفاء بها و يحرم عليه طلبها و سواء عقدوا للثانى عالمين بعقد الأول أم جاهلين و سواء كانا فى بلدين أو بلد أو أحدهما فى بلدالإمام المنفصل والآخر فى غيره هذا هو الصواب الذي عليه أصحابنا و جماهير العلماء».[2]

---

[1]- الاحکام السلطانيه للفراء: ٩.

[2]- صحيح مسلم بشرح النووي کتاب الامارة، باب وجوب الوفاء ببيعة الخلفاء.

(( کله چې د يو خليفه پسې بل خليفه ته بيعت وشو نو د لومړي بيعت صحيح دی هغه پوره کول فرض دي او د دوهم بيعت باطل دی هغه پوره کول ناروا دي او دوهم ته دا ناروادي چې ځان لپاره د بيعت غوښتنه کوي. که دوهم سره بيعت کوونکی لومړي سره بيعت نه خبروي او که نه، دا دواړه دوه ځايونو کې وي او که يو کې ،يا يو د جلا امام په ځای کې وي او بل په بل ځای کې وي (په دې ټولو صورتونو کې د دوهم بيعت ناروا دی) دا هغه صحيح حکم دی چې زمونږ ملګري او د امت اکثره علماء يې وايي )).

بيا وايي:

(( و اتفق العلماء على أنه لا يجوز أن يعقد لخليفتين في عصر واحد سواء إتسعت دارالإسلام أم لا )).[1]

(( د اسلام علماؤ په دې اتفاق کړی دی چې د اسلام خاوره پراخه وي او که نه خو په يو عصر کې دوه خليفه ګانو ته بيعت ناروا دی )).

او د هغه چا په هکله چې په يو عصر کې په لرې ځايونو کې دوه خلافتونه جائز ګڼي وايي:

(( و هو قول فاسد مخالف لما عليه السلف والخلف ولظواهر إطلاق الأحاديث )).[2]

(( دا فاسد قول دی او د اسلام د مخکنيو او وروستنيو

---

[1]- صحيح مسلم بشرح النووي كتاب الامارة، باب وجوب الوفاء ببيعة الخلفاء.

[2]- مخکنی ماخذ.

**علماؤ مخالف دی چې دوه خليفه ګانو ته بيعت ناورا ګڼي او د احاديثو د ظاهري اطلاق نه هم مخالف دی »**.

**ماوردي رحمه الله وايي :**

« و لا يجوز أن يكون للامة إمامان في وقت واحد». [1]

« **دا روا نه دي چې په يو وخت کې دې د اسلامي امت لپاره دوه امامان وي »**.

**امام قلقشندي رحمه الله وايي :**

« جمهور العلماء رضي الله عنهم أنه لا يصلح نصب خليفتين و إن تباعدا إحتجاجا بعموم قوله ﷺ : « إذا بويع لخليفتين فاقتلوا الآخر منهما »[2].

« **الله دې ترې راضي شي د اسلام اکثره علماء دا وايي : اګر چې لرې هم وي د دوه خليفه ګانو ټاکل ناروا دي او هغوی د رسول الله ﷺ په دې وينا دليل نيسي چې : « کله چې دوه خليفه ګانو ته بيعت وشو نو د دواړو وروستنی ووژنئ »**.

**امام ابن حزم رحمه الله وايي :**

« و لا يجوز أن يكون فى الدنيا إلا إمام واحد ».[3]

« **په ټولې نړۍ کې له يو امام نه زيات روا نه دي »**.

**حافظ ابن حجر رحمه الله دليلونه راوړي او بيا وايي :**

---

[1]- الاحکام السلطانية.

[2]- مئاثرالاناقة فى معالم الخلافة : ۲/۲۰۰.

[3]- المحلى : ۴۲۲/۸.

« فكل هذا يدل على أن دولة الإسلام واحدة و إمام المسلمين واحد ولا يجوز للمسلمين أن تكون لهم أكثر من دولة أو يكون لهم أكثر من إمام ».[1]

« دا ټول د ليلونه په دې دلالت کوي چې د اسلام دولت يو دی ، د مسلمانانو امام او خليفه يو دی، او مسلمانانو ته دا روا نه دي چې د دوی دې يو دولت نه زيات دولتونه وي او يا دې يې يو امام نه زيات اميران ، خليفه ګان او پاچايان وي ».

نو څرګنده شوه چې دغه اوسني اوه پنځوس دولتونه چې د اسلام دښمنانو او استعمار جوړ کړي دي دا ټول ناروا دي، دا ټــول ړنګــول او ددې ټولــو د حاکمــانو او چــارواکو وژل پــه مسلمانانو فرض دي او تر څو چې يو اسلامي خلافت او يو دولت نه وي جوړ شوی تر هغه جهاد فرض عين دی، د هر ځای مسلمانانو باندې فرض دي چې د خپل وطن طاغوتي نظامونه ړنګ کړي او تر هغه ورسره وجنګېږي تر څو چې دا ټول سره يو شي او هيڅ توپير، پاسپورټ، بنديز او بريد پکې پاتې نه شي، د ټولو يو اقتصاد ، يو سياست، يو دولت، يو خليفه او يو د عدل اسلامي نظام شي او له دې نړۍ هر ډول ظلم، تېری، ناروا ، کړاوونه، حق تلفي او نا انصافي ورکه شي .

د اسلامي خلافت قائمول په مسلمانانو فرض دي تر څو دا واړه واړه دولتونه او دا بې عدالتي او ظلمونه ورک شي. اوس دې اوه پنځوسو کې هر يو سره بيعت ناروا دی ځکه چې دا ټول

[1]- فتح الباري : ١٣/١٩٠.

مرتد دي، دې ټولو وضعي قوانين نافذ کړي دي، دا ټول کافرو سره د اسلام په خلاف ملاتړ کې ولاړ دي.

خو که فرضاً دا ټول مسلمانان هم وګڼل شي د دوی په خلاف پاڅون او دوی سره جنګېدل ددې لپاره فرض دي چې يو دولت ،يو امام او يو خلافت شي.

اوس زمونږ د مسلمانانو مړينې جاهلي مړينې دي بايد له دې جاهلي مړينو نه ځانونه وباسو. رسول الله ﷺ فرمايي:

« من مات و ليس فى عنقه بيعة مات ميتة جاهلية ».[1]

« څوک چې ومړ او د هغه په غاړه کې د خليفه بيعت نه وُ نو هغه د جاهليت په مړينه ومړ ».

نو څوک چې د الله تعالى په لار کې د اسلامي خلافت د قيام لپاره راوتلي دي او جنګېږي هغوی ددغه جاهليت له مړينې نه ژغورل شوي دي ځکه چې امام نشته او د خلافت د قيام لپاره لګيا دي خپلې او د اسلام د دښمنانو وينې تويوي .......

خو څوک چې دې طاغوتانو سره ولاړ دي، پلوي او ملاتړ يې کوي او د جهاد او مجاهدينو خلاف دي هغوی د همدې مرتدو حکامو غوندې مرتد او واجب القتل دي.[1]

فقهي مسلمه قاعده داده چې فقهاء وايي:

« ما لا يتم الواجب إلا به فهو واجب ».

« چې د يو فرض کار کول د يو بل کار له کولو پرته نه

---

۱- رواه مسلم.

[۲]- زيات تفصيل لپاره زمونږ دا وروستنى د توحيد کتاب وګورئ.

کېږي نو د هغه بل کار کول هم فرض دي».

نو د اسلامي خلافت قیام او د الله تعالی په دې ځمکه د الله تعالی شریعت نافذول فرض دي او دا بې له جهاد في سبیل الله نه نه کېږي نو که د جهاد په هکله نور څرګند نصوص نه وای هم جهاد د همدې فقهي قاعدې په بنسټ فرض دی. حال دا چې د جهاد دفرضیت نصوص ډېر زیات، جوت، څرګند او صریح دي.

# د جهاد اداب او احکام

جهاد في سبیل الله کوم عشوائي او ګډوډ جنګ نه دی چې نه کوم قواعد او ضوابط لري او نه د اخلاقو او انسانیت له موازینو سره کوم تړاو، تړون او اړیکې لري بلکه جهاد هغه تادیبي او اصلاحي جنګ او د ادب ډب دی چې بشري نړۍ او انساني ټولنې ته خیر، ښېګڼې، عدالت او سمون وربښي او د هغو ادابو، بنسټونو او احکامو لاندې کېږي چې اسلام ورته ټاکلي دي.

د جهاد د ادابو، احکامو او قواعدو په هکله د تفاسیرو، احادیثو او فقهې نه په لنډه توګه د جهاد في سبیل الله ځینې اړین او مهم احکام او اداب رااخلو تر څو د اسلام د لارې په تودو سنګرونو کې د مېړنیو اتلانو لپاره د لارې چراغ او رڼا شي او د انحراف او ګډوډۍ نه وژغورل شي. جهاد هله فی سبیل

الله ګڼل کېږي چې په نړۍ نیت د الله د کلمې د لوړوالي لپاره وي او د الله تعالی کلمه هله لوړېږي چې د الله تعالی په دې ځمکه د همغه جل جلاله قانون او شریعت بشپړ او کره پوره پلی او نافذ شي او نور ټول وضعي قوانین او طاغوتي نظامونه بشپړ ړنګ او نسکور شي د همدې موخې د لاس ته راوړلو لپاره في سبیل الله جهاد مشروع شوی دی او ددې لپاره اداب، احکام، غښتلي ضوابط او پیاوړي بنسټونه ټاکل شوي دي چې په راتلونکو څېړنو او پلټنو کې څرګند شوي دي. په لاندیني حدیث کې د جهاد ځینې احکام او اداب داسې څرګند شوي دي:

عن سليمان بن بريدة عن أبيه قال: كان رسول الله ﷺ إذا أمر أميرا على جيش أو سرية أوصاه فى خاصته بتقوى الله عزوجل و من معه من المسلمين خيرا ثم قال: « أغزوا بسم الله، فى سبيل الله، قاتلوا من كفر بالله، أغزوا و لا تغلوا، و لا تغدروا و لا تمثلوا و لا تقتلوا وليدا وإذا لقيت عدوك من المشركين فادعهم إلى ثلاث خصال فايتهن ما أجابوك فاقبل منهم و كف عنهم : أدعهم إلى الإسلام فان هم أجابوك فاقبل منهم و كف عنهم ثم ادعهم إلى التحول من دارهم إلى دارالمهاجرين و أخبرهم أنهم إن فعلوا ذلك فلهم ما للمهاجرين و عليهم ما على المهاجرين فان أبوا أن يتحولوا منها فاخبرهم أنهم يكونون كأعراب المسلمين يجري عليهم حكم الله الذي

يجرى على المؤمنين ولا يكون لهم فى الغنيمة والفئ شئ إلا أن يجاهدوا مع المسلمين فان هم أبوا فسلهم الجزية فان هم أجابوك فاقبل منهم و كف عنهم فان هم أبوا فاستعن بالله و قاتلهم و إذا حاصرت أهل حصن فارادوك أن تجعل لهم ذمة الله و ذمة نبيه فلا تجعل لهم ذمة الله و لا ذمة نبيه و لكن اجعل لهم ذمتك و ذمة أصحابك فانكم إن تخفروا ذممكم و ذمم أصحابكم أهون من أن تخفروا ذمة الله و ذمة رسوله؛ و إذا حاصرت أهل حصن فارادوك أن تنزلهم على حكم الله فلا تنزلهم على حكم الله ولكن أنزلهم على حكمك فانك لا تدرى أتصيب حكم الله فيهم أم لا ؟ ».[١]

سلمان بن بریده رضي الله عنهما له خپل پلار نه روايت کوي هغه وايي: رسول الله ﷺ به چې په کوم لښکر یا کومې ډلې امير وټاکه نو د ځان په هکله به يې ورته له الله تعالى نه د وېرېدو او هغه سره د ملګور مسلمانانو سره د ښه سلوک کولو حکم وکړ بيا به يې وفرمايل: « د الله په نوم او د الله په لار کې جهاد وکړئ چا چې په الله کفر وکړ هغوی سره وجنګېږئ. جهاد وکړئ، خيانت مه کوئ، ژمنه مه ماتوئ، د چا غوږونه، پوزې اوغړې مه پرې کوئ، ماشوم مه وژنئ. کله چې له مشرکانو خپل دښمن سره مخ شوې نو درې خبرو ته يې راوبله چې هره يوه يې ومنله ترې قبوله

---

١- رواه مسلم و ابوداود والترمذي و ابن ماجه والدارمي و مالک و احمد.

يې کړه او جنګ ورسره مه کوه. لومړی يې اسلام ته راوبله که ويې منله نو ترې قبوله يې کړه او جنګ ورسره مه کوه. بيا يې خپلې سيمې نه د مهاجرينو سيمې ته د راتلو لپاره راوبله او خبر يې کړه چې که هغوی دا کار وکړ نو هغوی لپاره به هغه څه وي چې مهاجرينو لپاره دي او په هغوی به هغه مسئوليتونه وي چې په مهاجرو دي ؛که هغوی خپلې سيمې نه د هجرت کولو نه انکار وکړ نو په دې يې پوه کړه چې هغوی به دباندو د مسلمانانو غوندې وي؛ په هغوی به د الله هغه حکم عملي کېږي چې په مؤمنانو عملي کېږي او په غنيمت او فئ کې به هغوی لپاره هيڅ برخه نه وي. خو که د مسلمانانو په ملګرتيا کې يې جهاد وکړ نو بيا به يې پکې برخه وي . که هغوی د اسلام منلو نه انکار وکړ نو جزيه ترې وغواړه که هغوی جزيه درسره ومنله نو ترې قبوله يې کړه او جنګ ورسره مه کوه که د جزيې له منلو يې انکار وکړ نو الله تعالی نه مرسته وغواړه او ورسره وجنګېږه؛ او کله دې چې د کومې کلا خلک محاصره کړل او له تا يې دا وغوښته چې ته ورته د الله او د هغه د پېغمبر ضمانت او ذمه واري ورکړې نو مه ورته د الله ضمانت ورکوه او مه د هغه د پېغمبر؛ خو خپله او د خپلو ملګرو ضمانت ورته ورکړه ځکه چې تاسو که خپل او د خپلو ملګرو ضمانت مات کړئ دا له دې وړه ده چې د الله او د هغه د پېغمبر ضمانت مات کړئ؛ او کله دې چې د کومې کلا خلک محاصره کړل او له تا يې دا وغوښتل چې د الله په پرېکړې يې راښکته کړې نو د الله په پرېکړې يې مه راښکته کوه او په خپلې پرېکړې يې راښکته کړه، ځکه چې ته نه

پوهيږي چې د هغوی په هکله د الله حکم ته رسيږي او که نه؟ ».

همدارنګه رسول الله ﷺ به چې کله مجاهدين د جهاد لور ته ليږل نو نصحيت به يې ورته کاوه لکه چې په دې حديث کې راځي:

عن أنس أن رسول الله ﷺ قال: « إنطلقوا بسم الله و بالله و على ملة رسول الله؛ لا تقتلوا شيخا فانيا ولا طفلا صغيرا ولا إمرأة ولا تغلوا و ضموا غنائمكم و أصلحوا و أحسنوا فان الله يحب المحسنين ».[1]

انس رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: « د الله په نامه، د الله په مرسته او توفيق او د الله د پيغمبر په دين لاړ شئ؛ مه بې وسه بوډا وژنئ، مه کمکی ماشوم او مه ښځه، په غنيمت کې درغلي مه کوئ او غنيمتونه سره رايوځای کړئ، رغونه او ښيګړه کوئ. الله بې شکه ښيګړه کوونکي خوښوي ».

د هغو بوډاګانو وژل منع دي چې بېخي بې وسه وي او جنګ کې په هيڅ ډول شريک نه وي خو جنګيالي او تکړه بوډاګان به هم وژل کيږي.

حديث کې راځي:

عن سمرة بن جندب عن النبى ﷺ قال: « أقتلوا شيوخ المشركين واستحيوا شرخهم أى صبيانهم ».[2]

---

۱- رواه ابوداود.

۲- رواه الترمذي و ابوداود.

سمره بن جندب رضي الله عنه پېغمبر ﷺ نه روايت کوي چې هغه وفرمايل: «د مشرکانو بوډاګان ووژنئ او ماشومان (کوچنيان) يې پرېږدئ».

نو دا هغه بوډاګان دي چې په جنګ کې شريک دي.

بل حديث کې د جهاد اداب داسې راغلي دي:

و عن أبي بكر أنه قال ليزيد بن أبى سفيان: «إنك ستجد قوما زغموا أنهم حبسوا أنفسهم لله فذرهم وما زعموا أنهم حبسوا أنفسهم له وستجد قوماً فحصوا عن أوساط رؤسهم من الشعر فاضرب ما فحصوا عنه بالسيف و إني موصيك بعشر :

١. لا تقتلن إمرأة .
٢. ولا صبيا .
٣. ولا كبيرا هرما .
٤. ولا تقطعن شجرا مثمرا .
٥. ولا تخربن عامرا .
٦. ولا تعقرن شاة ولا بعيرا إلا لماكلةٍ .
٧. ولا تحرقن نخلا .
٨. ولا تفرقنه .
٩. ولا تغلل .

۱۰. ولا تجبن.[1]

ابوبکر رضي الله عنه نه روایت دی چې هغه یزید بن ابی سفیان ته وویل: «ته به داسې خلک وومومې چې هغوی دعوه لري چې خپل ځانونه یې الله ته وقف کړي دي، ته هغوی هغه څه سره پرېږده چې د څه لپاره یې ځانونه وقف کړي دي. او ځینې داسې خلک به وومومې چې د خپلو سرونو د منځونو وېښته یې خرېیلي دي نو هماغه ځای یې په توره ووهه چې کل کړی یې دی او زه تا ته د لسو کارونو وصیت کوم:

۱. مه ښځه وژنه.
۲. مه ماشوم.
۳. مه نرېدلی بوډا.
۴. مېوه لرونکې ونه مه پرې کوه.
۵. ودانۍ مه ړنګوه.
۶. مېږه اوزه یا اوښ له خوراک پرته مه وژنه.
۷. د خورما ونې مه سېځه.
۸. مه یې غوڅوه.
۹. د غنیمت په مال کې درغلي مه کوه
۱۰. بې زړه توب مه کوه

۱- رواه مالک.

# منظم مجاهدين د الله تعالى خوښ دي

د الله سبحانه و تعالى په لار کې منظم جهاد کول د الله تعالى د محبت لامل دى.
الله تعالى فرمايي:

(( إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلَّذِينَ يُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِهِۦ صَفًّا كَأَنَّهُم بُنْيَٰنٌ مَّرْصُوصٌ )).[1]

(( الله بې شکه هغه مجاهدين خوښوي چې د الله په لار کې په داسې منظم صف کې جنګېږي لکه چې دوى پوخ دېوال وي )).

(( صَفًّا كَأَنَّهُم بُنْيَٰنٌ مَّرْصُوصٌ )) نه مطلب دادى چې مجاهدين به په بشپړ نظم، نسق او اتحاد جنګېږي او بې اتفاقه به نه وي. که ګډوډ، غير منظم او بې اتفاقه وي نو بيا د الله تعالى د محبت مستحق نه دي. زمونږ هغه جهاد چې د کمونستانو او روسانو په خلاف ؤ د هغې د ښو او مطلوبو نتيجو د نيمګړتيا و نه يو لامل د نظم او نسق نيمګړتيا وه، د اسلام اتلان مجاهدين به تل د الله سبحانه و تعالى او د هغه د پېغمبر ﷺ اطاعت کوي او په هر قدم، هرې خبرې او هر کار کې

---

۱- سورة الصف: ۴.

به د اسلام د لارښوونو نه سرغړونه نه کوي او خپلو کې به تـل يـو موټی او ورونه ورونه وي الله تعالی فرمايي :

«وَأَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَلَا تَنَٰزَعُواْ فَتَفۡشَلُواْ وَتَذۡهَبَ رِيحُكُمۡۖ وَٱصۡبِرُوٓاْۚ إِنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلصَّٰبِرِينَ ».[1]

« د الله او د هغه د پيغمبر ومنئ او اختلاف مـه کـوئ چـې ناکام به شئ او قوت به مو لاړ شي. او صبر وکـړئ الله بـې شـکه د صبر کوونکو ملګری دی ».

افغانســتان کــې د روســانو او کمونســتانو د مــاتې نــه وروسته د ګډوډۍ او ناکامۍ مهم او د پـام وړ لاملونـه او اسـباب دا وو :

۱. د اسلام له لارښوونو نه سرغړونه .
۲. بې اتفاقي او د يووالي نشتوالی .
۳. په خارجيانو اعتماد او د هغوی لاسوهنه .
۴. نا اهلو ته د کارونو سپارل .
۵. د راتلونکي لپاره د اهل خبره او پوهو تيارولو او ښوونې او روزنې ته پام نه کول او بې غوري .
٦. د نظم او کوټليو سرشتو نشتوالی .
۷. د غنيمتونــو او د جهــاد پــه وســائلو کــې خيانــت او د غنيمت د تقسيم او نورو احکامو د بشپړ نفاذ نشتوالی .

د الله تعالی دښمنان تل غواړي چې د هغـه رڼـا مـړه کـړي او ديـن

---

۱- سورة الانفال : ۴٦.

یې له منځه یوسي خو الله تعاله خپله رڼا پوره کوي، دین لوړوي او د دین پتنګانو سره مرسته کوي.

الله تعالی فرمايي:

« يُرِيدُونَ أَن يُطْفِـُٔواْ نُورَ ٱللَّهِ بِأَفْوَٰهِهِمْ وَيَأْبَى ٱللَّهُ إِلَّآ أَن يُتِمَّ نُورَهُۥ وَلَوْ كَرِهَ ٱلْكَٰفِرُونَ ».[1]

« هغوی غواړي چې د الله رڼا په خپلو خولو مړه کړي، خو اګر که کافران یې بده ګڼي خو الله له دې پرته بل هیڅ نه مني چې خپله رڼا پوره کړي».

او فرمايي:

« هُوَ ٱلَّذِىٓ أَرْسَلَ رَسُولَهُۥ بِٱلْهُدَىٰ وَدِينِ ٱلْحَقِّ لِيُظْهِرَهُۥ عَلَى ٱلدِّينِ كُلِّهِۦ وَلَوْ كَرِهَ ٱلْمُشْرِكُونَ ».[2]

« الله هغه ذات دی چې خپل پیغمبر یې په هدایت او حق دین د دې لپاره لیږلی دی چې اګر چې مشرکان یې بده ګڼي حق دین په ټولو دینونو غالب کړي».

د الله تعالی د رڼا د پوره کولو او د هغه جل جلاله د دین د غلبې او لوړولو لپاره الله تعالی په مونږ جهاد فرض کړی دی.

---

۱- سورة التوبة: ۳۲.

۲- سورة توبه: ۳۳.

# د جهاد د مشروعیت پړاوونه

دجهاد في سبیل الله د مشروعیت او فرضیت تر پوړې ځو پړاوونه او مراحل تېر شوي دي چې په لاندې توګه یې څېړو:
هغه مرحلې چې په نبوي عهد کې د فرضېد تر بریده په جهاد تېرې شوې دي دادي:

**لومړی پړاو**: له هجرت مخکې مکي پېر.
**دویم پړاو**: له هجرت وروسته مدني پېر.

دا هر یو پړاو په درې درې ډولونو وېشل کېږي:

# د مکي پړاو درې ډوله جهاد

مکې مکرمې کې جهاد په درې ډولونو او پړاوونو داسې وېشل شوی دی:

١. **مبشر به**: (چې راتلونکي مهال لپاره یې زېری ورکول شوی ؤ).

٢. **مامور به**: (چې د کولو امر یې شوی ؤ).

٣. **ممنوع عنه**: (منع شوی).

# د مدني پړاو درې ډوله جهاد

مدینې منورې کې هم جهاد په درې ډولونو او پړاوو داسې وېشل شوی دی:

١. **ماذون فیه**: (چې د کولو اجازه یې وشوه).

٢. **مامور به لمن بدا بالقتال**: (د هغه چا په هکله پرې امر وشو چې چا په جنګ پیل وکړ).

٣. **مامور به لجمیع المشرکین والکفار**: (د ټولو مشرکانو او کافرانو په خلاف د جهاد حکم راغی).

## ١. مکي (مبشر به) جهاد

دمکې مکرمې په لومړي پړاو کې جهاد لا مشروع نه ؤ او د کولو اجازه او حکم یې نه ؤ شوی خو یو خبر او زېری یې ورکول شوی ؤ چې په راتلونکي وخت کې یو داسې وخت راروان دی چې تاسو به د الله په لار کې جنګېږئ.
الله تعالی فرمایي:

(( عَلِمَ أَن سَيَكُونُ مِنكُم مَّرْضَىٰ وَءَاخَرُونَ يَضْرِبُونَ فِي ٱلْأَرْضِ يَبْتَغُونَ مِن فَضْلِ ٱللَّهِ وَءَاخَرُونَ يُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ فَٱقْرَءُواْ مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ )).[١]

(( الله پوه دی چې په راتلونکي کې به تاسو کې ځینې ناروغان وي، نور به په ځمکه کې سفر کوي او د الله لورېنه (روزي) به لټوي او نور به د الله په لار کې جنګېږي نو له قران څخه دومره ولولئ چه درته اسان وي )).

## ٢. مکي (مامور به) جهاد

مکې مکرمې کې دوهم ډول هغه جهاد ؤ چې د کومو امر یې شوی ؤ او هغه وسله وال جهاد نه ؤ. مکي جهاد د رسول الله ﷺ

١- سورة المزمل: ٢٠.

د بعثت سره سم فرض شوی ؤ او هغه د دلیل او دعوت جهاد ؤ چې د الله سبحانه و تعالی توحید ته او د اسلام منلو ته خلک راوبلل شي ، د الله تعالی محبت او دلیل خلکو ته ورسول شي او غاړه پرې خلاصه شي چې د قیامت په ورځ یې دا بهانه ورکه شي چې مونږ ته حق نه ؤ رارسېدلی .

الله تعالی فرمایي :

(( فَلَا تُطِعِ ٱلْكَٰفِرِينَ وَجَٰهِدْهُم بِهِۦ جِهَادًا كَبِيرًا )).[1]

(( نو د کافرانو مه منه او په دې قران ورسره لوی جهاد وکړه )).

نو دا جهاد په حجت، بیان او د قران په رسولو او تبلیغ ؤ.

# ۳. مکي (ممنوع عنه) جهاد

مکي پړاو کې دریم ډول جهاد ممنوع ؤ او هغه د تورې او وسلې جهاد ؤ . مکې مکرمې کې مسلمانان کمزوري وو او ددې وس یې نه لاره چې وسله وال جنګ وکړي او د اسلام دښمنانو سره وجنګېږي. مکې مکرمې کې لمونځ، زکات ،چې بې وزلو سره ښېګړه ده، فرض شوي وو خو هغه زکات فرض نه ؤ

[1]- سورة الفرقان : ٥٢.

چې نصابونه ورته وتاکل شول هغه مدینې منورې کې وتاکل شوو.

د الله سبحانه و تعالی له حکمتونو څخه دا هم دی چې په خپلو بندګانو هغه څه فرض کوي او مشروع کوي چې وس یې پرې رسېږي او له وسه یې دباندې نه وي.

الله تعالی فرمایي:

(( فَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ مَا ٱسْتَطَعْتُمْ )).[1]

(( الله نه دومره ځانونه وژغورئ څومره چې کولی شئ )).

او فرمایي:

(( لَا يُكَلِّفُ ٱللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا )).[2]

(( الله یو څوک یوائې په هغه کچ مجبوروي چې وس یې وي )).

نو مکې مکرمې کې مسلح جهاد د مسلمانانو له وسه د باندې ؤ نو ځکه یې منع کړی ؤ. او که جهاد یې پرې فرض کړی وای نو دا به د اسلام او مسلمانانو د ناکامۍ او ماتې لامل جوړ شوی ؤ.

مکې کې د جهاد د منعې په هکله الله تعالی فرمایي:

(( أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ قِيلَ لَهُمْ كُفُّوٓا۟ أَيْدِيَكُمْ وَأَقِيمُوا۟

---

[1] - سورة التغابن : ١٦.

[2] - سورة البقرة : ٢٨٦.

ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا۟ ٱلزَّكَوٰةَ ....». [١]

«ايا ستا هغو خلكو ته پام نشته چې ورته وويل شول چې لاسونه مو در بند كړئ، كره پوره لمونځ وكړئ او زكات وركړئ».

دا ايت مدينې منورې كې نازل شوى دى او وروسته پكې د جهاد د فرضيت حكم دى خو «كفوا ايديكم» «لاسونه مودر بند كړئ» كې همغه مكي ممنوع جهاد ته اشاره ده.

# ۴. مدني ماذون فيه جهاد

څلورم پړاو د مدينې منورې د اجازې لومړى ډول جهاد دى چې مسلمانانو ته د جنګېدو اجازه وشوه الله تعالى فرمايي:

«أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَـٰتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا۟ ۚ وَإِنَّ ٱللَّهَ عَلَىٰ نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ ٱلَّذِينَ أُخْرِجُوا۟ مِن دِيَـٰرِهِم بِغَيْرِ حَقٍّ إِلَّآ أَن يَقُولُوا۟ رَبُّنَا ٱللَّهُ ۗ». [٢]

«هغو خلكو ته (د جنګېدو) اجازه وشوه چې جنګ ورسره كېږي او دا له دې امله چې په دوى ظلم شوى دى او الله دوى سره

---

[١] - سورة النساء: ٧٧.

[٢] - سورة الحج: ٣٩-٤٠.

په مرستې کولو بنه برلاسی دی دا هغه خلک دي چې له خپلو کورونو څخه په ناحقه ایستل شوي دي او ګونا یې یوائې دا ده چې وايي: زمونږ رب الله دی».

د مسلح جهاد او وسله وال جنګ په هکله دا لومړنی ایت دی چې نازل شوی دی په دې کې یوائې اجازه شوې ده لا فرض شوی نه ؤ د فرضیت په هلکه بیا نور ایاتونه راغلل.

# ۵. مدني مأمور به لمن بدأ بالقتال

د ماذون فیه نه وروسته د مدینې منورې دوهم ډول جهاد د فرض کېدو لومړۍ مرحله وه او هغه دا چې یوائې د هغو خلکو په خلاف جهاد فرض شو چې هغوی مسلمانانو سره جنګېږي.

الله تعالی فرمايي:

«وَقَٰتِلُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ ٱلَّذِينَ يُقَٰتِلُونَكُمۡ وَلَا تَعۡتَدُوٓاْۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ ٱلۡمُعۡتَدِينَ».[1]

«د الله په لار کې هغو خلکو سره وجنګېږئ چې هغوی تاسو سره جنګېږي او تېری مه کوئ الله بې شکه تېري کوونکي نه خوښوي».

---

۱- سورة البقرة: ۱۹۰.

نو په دې ايت کې يوائې هغو خلکو سره د جنګېدو حکم وشو چې هغوی مسلمانانو سره جنګېږي.

ځينې مفسرين مخکنی د سورة الحج ايت: «أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَـٰتَلُونَ ....» د جهاد په هکله لومړنی نازل شوی ايت ګڼي او ځينې دا د بقرې پاسنی ايت لومړنی ګڼي خو ددې دواړو تر منځ کوم منافات او تناقض نشته ځکه چې د اجازې په هکله لومړنی اية د سورة الحج دی او د فرضيت په هکله لومړنی اية د سورة البقرې دی.

# ٦. مدني مامور به لجميع المشركين والكفار

د مدينې منورې دريم ډول او د جهاد شپږم پړاو د ټولو مشرکانو او کافرانو سره د جهاد فرضيت دی چې الله تعالی مسلمانانو ته حکم وکړ چې اوس نو ټولو کافرانو سره جهاد وکړئ له دې ډول څخه يوائې هغه مشرکان او کافران مستثنا دي چې يا اهل ذمه وي او جزيه ورکوي يا ورسره تړون وي او يا يې مسلمانانو ته پنا راوړې وي چې مستامنين بلل کېږي خو هغوی هغه کمزوري کافران دي چې د جنګ وس يې نه وي او يا د خپلو دښمنانو له وېرې مسلمانانو نه پنا وغواړي. ځينې خلک په

افغانستان یرغلگر او تېري کوونکي امریکایان او د ناټو متحدین یې مستامنین ګڼي چې دا د اسلام په احکامو کې د ډالرو په زور تحریف دی مستامن د توپونو، ټینکونو، الوتکو او بمونو سره نه رائحي دا خو د دغه مفتیانو باداران دي. مستامن داسې وي چې هغوی تا ته اوامر صادروي؟ ستا کورونه، جوماتونه او مدرسې په بمبار رنګوي؟ ستا ورونه نیسي او بندیانوي یې؟ ستا او ستا د ښځې عورت تالاشي کوي؟ ته د هغه لاندې کار کوې .... ؟

بلکه مستامن دې ته وایي چې ستا د څادر او ستا د حکومت لاندې یې پنا اخیستې وي، جنګ نه کول درڅخه غواړي، له تا وېرېږي، ستا حکومت او باداري مني او ستا پرېکړو ته غاړه ږدي.

دا خو د اسلام او مسلمانانو د ځپلو او وژلو لپاره راغلي دي، دوی خو د قران، اسلام او مسلمانانو توهین او سپکاوی کوي ........ دوی ته مستامن ویل د اسلام نه وتل او ارتداد دی او دوی سره جنګېدل فرض عین دي. کله چې د جهاد د فرضیت او مشروعیت حکم نازل شو بیا دا نور ټول ډولونه له منځه ووتل.اوس مونږ ته دا اختیار نشته چې مونږ هم مکي او مدني پړاوونه جوړو کړو اوووایوو چې دا مکي دور دی او اوس جهاد فرض نه دی که داسې وکړو بیا خو به ډېر نور هغه احکام هم له منځه لاړ شي چې مدینې منورې کې نازل شوي دي.

کله چې اسلام بشپړ شو په دې کې اوس د هیچا اختیار نشته چې څه بدلون، څه تقسیم او څه ترمیم پکې وکړي.

# د فرض جهاد ډولونه

د اِذن او مشروعيت نه وروسته بيا جهاد في سبيل الله فرض شو او د فرضيت په هکله د قران کريم ډېر اياتونه او سورتونه وخت په وخت نازل شول چې وروسته يې تفصيل راروان دي.

# د فرضيت ډولونه

د جهاد د فرضيت دوه ډولونه دي:

١. فرض کفايي.
٢. فرض عين.

## ۱. فرض کفايي

کفـايي فـرض دا دی چـې کلـه د جهـاد لپـاره دومـره مجاهدين وتلي وي چې د ضرورت او اړتيا پـه ځـای کـې بـس وي او همغه شمېر چې وتلی دی کفايت کوي. نو بيا د نور امت غـاړه خلاصه ده, خو که د کفايت پـه شـمېر مجاهـدين نـه وي وتلـي نـو بيا د ټول امت غاړه تر هغه بنده ده چې د کفايت په کچ ووځـي. او دا هلـه وي چـې اسـلامي خلافـت قـائم وي. کلـه نـه چـې اسـلامي خلافت ړنګ شـوی دی لـه هغـه وختـه جهـاد پـه ټولـو مسـلمانانو فرض عين دی.

## ۲. فرض عين

کله چې نفير عام (د ټولو مسلمانانو د وتلو پرېکړه) وي يـا دښـمن سـره مـخ شـي او د جنـګ ډګـر وي او يـا چـې کلـه د مسلمانانو په خاوره د کافرو له پلوه يرغل وشي، يا خلافت ړنګ شي جهاد فرض عـين شـي. کـه لـه نـږدې خلکـو نـه دومـره خلک جهاد ته ووځي چې د يرغلګرو د ماتولو لپاره بس وي نو په هغـو وتلو فرض عين دی او په نورو لرې مسـلمانانو فـرض کفـايي دی او که نه وو وتلي يا نه بس کېدل نو په لرو هم فرض عين شي.

له هغه وخته چې اسلامي خلافت ړنګ شوی دی په ټول اسلامي امت تر هغه جهاد فرض عين دی تر څو چې اسلامي خلافت قائم شي، طاغوتي حکومتونه او دولتونه ړنګ شي، د مسلمانانو بشپړه خاوره ازاده شي او د الله تعالی نظام، قانون او شريعت (قران او سنت) د اسلام په خاوره عملي پلی او نافذ شي . اوس چې د يرغلګر او ترهګر امريکا په مشرۍ نړيوال کفر او استعمار په افغانستان، عراق او نورو يرغل کړی نو د فرض عين جهاد فرضيت لاغښتلی، ځواکمن او قوي شو .

اوس اسلامي امت ټوټه ټوټه دی، په (٥٧) اوه پنځوس د ولتونو وېشل شوی دی او دې ټولو وضعي( دانسان په لاس جوړ شوي) قوانين نافذ کړي دي، د ملګرو ملتونو د کفري اداري غړي دي، امريکا سره ولاړ دي، د اسلام او مسلمانانو سره دښمني کوي، د اسلامي شريعت د نفاذ مخنيوي کوي او د « خلافت على منهاج النبوة » د قيام په مخکې لوی خنډونه دي نو دا ټول طاغوتي خنډونه له منځه لرې کول اوړنګول غواړي .او دا بې له جهاد في سبيل الله څخه نه کېږي. نو په ټول اسلامي امت جهاد فرض عين دی ځکه چې هر ځای کې طاغوتان دي ، هر ځای کې طاغوتي نظامونه ړنګول غواړي او دا جهاد به تر هغې جاري او روان وي تر څو ټول اسلامي امت : عرب او عجم، تور او سپين، له مشرقه تر مغربه، له شماله تر جنوبه يو امت، يو خلافت او يو دولت شي ، نه پکې پاسپورټ وي او نه وېزه ، هر مسلمان نه په کابل کې پردی وي نه اسلام اباد کې، نه طهران کې او نه بغداد کې، نه رياض کې او نه انقرې کې، نه قاهرې کې

او نه خرطوم کې....... هر ځای چې اوسېږي، هر چېرته چې ځي او د ځمکې په هر ګوټ کې چې شاړه ځمکه اباد وي، کور جوړوي، تجارت کوي، حج ته ځي، عمرې ته ځي..... بې پاسپورټه او بې ویزې لاړ شي، دا تنګ سیاسي بریدونه ړنګ شي، تېل او نور طبیعي منابع د ټولو مسلمانانو شریک شي، د عدل، انصاف، سوکالۍ، وروروليۍ او ښېګړو ضامن نظام نافذ شي، عدالت او د هر چا حق د هغه د کور تروره و ړیا ور ورسېږي.......

نو هله به بیا جهاد فرض کفایي شي خو تر هغه جهاد فرض عین دی او په ټول اسلامي امت فرض عین دی، هر ځای طاغوتي نظام حاکم دی او دا ټول ړنګول غواړي ، هر چاسره چې کوم طاغوت نږدې وي د هغه په خلاف باید راپاڅېږي او جهاد ورسره وکړي.

او بیا چې د اسلام په بریدونو یرغل شوی دی نو جهاد فرض عین دی شیخ الاسلام رحمه الله وایي:

« و أما قتال الدفع فهو أشد أنواع دفع الصائل عن الحرمة والدين فواجب إجماعا، فالعدو الصائل الذي يفسد الدين والدنيا لا شئ أوجب بعد الإيمان من دفعه فلا يشترط له شرط بل يدفع بحسب الإمكان و قد نص على ذلك العلماء أصحابنا وغيرهم ».[1]

« د دفاع جنګ په پت، عزت او دین باندې د یرغل

١- الفتاوى الكبرى: ٥/٥٣٧.

کوونکي دمخنیوي جنګ دی، لـه پیـاوړیو ډولونـو څخـه دی او د مسلمانانو په اتفاق فـرض دی. هغـه یرغـل کـوونکی دښـمن چې دیـن او دنیـا دواړه ړنګـوي، لـه ایمـان څخـه وروسـته د هغـه لـه مخنیوي نه زیـات فـرض عمـل بـل نشـته نـو دې لپـاره هیڅ کـوم شرط نشته بلکه د امکان او وس مطابق به يې مخنیوی کېږي او جنګ به ورسره کېږي؛ زمـونږ ملګـرو او نـورو علمـاؤ دا خبـره ښـه ډاګیزه او جوته کړې ده ».

د دښمن د یرغل د دفاع، مخنیوي او ازادۍ په هکلـه دې ته هم نه کتل کېږي چې دښمن په کوم شمېر کې دی بلکـه پـه هـر حالت کې ورسره جهـاد کـول فـرض دي. امـام ابـن القـیم رحمه الله د داسې حالت په هکله وايي:

« ولا يشترط فى هذا النوع من الجهاد أن يكون العدو ضعفى المسلمين فما دون، فانهم كانوا يوم أحد و الخندق أضعاف المسلمين فكان الجهاد واجبا عليهم لأنه حينئذً جهاد ضرورة و دفع لا جهاد إختيار ».[1]

« په دې ډول جهاد کې دا شرط نشته چې ګنې دښـمن دې د مسلمانانو دوه چند یا له دې لږ وي ځکه چې د احد او خندق پـه ورځ کافران د مسلمانانو څو چند وو خو په هغوی جهـاد فـرض ؤ ځکـه چـې پـه دې وخـت کـې د ضـرورت ، اړتیـا او د دښـمن د مخنیوي جهاد دی د اختیار او د خوښې جهاد نه دی ».

---

۱- الفروسیة : ۱۸۸.

# ۳. ايا خليفه جهاد لپاره شرط دی

جهاد في سبيل الله د اسلام له فرائضونه يوه فريضه ده دا په عامو حالاتو کې فرض کفايي ده او کله چې د اسلام د دولت او خاورې په کوم گوټ يا ټولې دښمن غالب شي، يا دښمن مسلمانان ونيسي او بنديان يې کړي، يا اسلامي خلافت ړنګ شي، يا طاغوتي حکم او قانون نافذ وي، يا د مسلمانانو يو امت او يو دولت له يو نه په زياتو ټو ټو ووېشل شي، يا د مسلمانانو خليفه د نفير عام (د ټولو د وتلو) اعلان وکړي او يا د هر ډول جهاد په ورځ دښمن سره مخ شې نو بيا جهاد فرض عين شي.

خو د جهاد د هيڅ ډول لپاره خليفه شرط نه دی، که خلافت قائم ؤ او يو خليفه موجود ؤ نو بيا خو به د هغه په امر جهاد کېږي خو که هغه نه کاوه بيا هم جهاد فرض دی او هغه به يا جهاد کولو ته اړ ايستل کېږي او يا به معزولېږي. او يا کوم داسې ځای کې جهاد ته ضرورت وي چې خليفه نه لري وي او يا خبرنه وي هم جهاد به کېږي او که خليفه نه وي او خلافت قائم نه وي نو هم جهاد فرض دی او مسلمانان به جهاد کوي بلکه بيا خو فرض عين شي ځکه چې د خلافت قائمول فرض دي نو د خلافت د قائمولو او د اختلاف د ختمولو لپاره به جهاد کېږي او بيا چې څه مسلمانان جهاد ته وتلي وي او امير لري نو د هغوی په ملاتړ

**کې خو جهاد خامخا فرض دی. او په دې وخت کې د خليفه د نه موجوديت له کبله جهاد نه کول هسې بهانې دي، که دا شرط او قيد جهاد سره کېدو چې بې له خليفه نه کېږي نو بيا خو به د خلافت قيام ،د اسلام نفاذ او د مسلمانانو يووالی له منځه لاړ شي او د مسلمانانو خاوره، دين، پت، عزت او هر څه به رنګ شي. نو جهاد يوه داسې فريضه ده لکه نور فرائض ،د امام او خليفه هيڅ شرط نه لري بلکه د رسول الله ﷺ په وخت کې ابو بصير او ورسره د هغه اتو سوو ملګرو د سمندر په غاړه د جهاد سنګر جوړ کړی ؤ او د رسول الله ﷺ له اجازې پرته يې جهاد کاوه او رسول الله ﷺ نه منع کاوه.**

**صديق حسن خان رحمه الله د جهاد د فرضيت په هکله وايي:**

« هذه فريضة من فرائض الدين أوجبها الله تعالى على عباده المسلمين من غير تقييد بزمن أو مكان أو شخص أو عدل و جور.....».[1]

**« د جهاد دا فريضه د دين له فرائضو نه ده الله تعالی په خپلو مسلمانو بندګانو باندې فرض کړې دی او د هيڅ زمانې، ځای، شخص،عدل،ظلم ...شرطونه اوقيدونه يې ورسره نه دي ايښي» .**

١- الروضة الندية : ٢/ ٤٨٠.

**ابن قدامه رحمه الله وايي:**

« فان عدم الإمام لم يؤخر الجهاد لأن مصلحته تفوت بتأخيره». [1]

**« که امام نه ؤ نو جهاد به نه وروسته کېږي ځکه چې د جهاد په وروسته کېدو د جهاد مصلحت او موخه پاتې کيږي ».**

**تقی الدين نبهاني رحمه الله وايي:**

« الجهاد فرض مطلق ليس مقيدا بشئ ولا مشروطا بشئ فالآية مطلقة : «كتب عليكم القتال » فوجود الخليفة لا دخل له فی فرض الجهاد بل الجهاد فرض سواء كان هناك خليفة للمسلمين أم لم يكن .......». [2]

**« جهاد مطلق فرض دی نه څه شي پورې تړلی دی او نه څه پورې مشروط دی ځکه چې ايت مطلق دی چې : « کتب عليکم القتال » « په تاسو جنګېدل فرض شوي دي » نو د جهاد په فرضيت کې د خليفه د وجود هيڅ دخل نشته بلکه که د مسلمانانو خليفه وي او که نه ،جهاد پرې فرض دی .......».**

**زه وايم چې کله نه اسلامي خلافت رنګ شوی دی نو جهاد په ټول امت فرض عين دی تر څو اسلامي خلافت قائم شي.**

**نو اوس د نړۍ په هر ګوټ کې جهاد فرض دی ،د هر**

---

۱- المغنی لابن قدامة : ۱۰/ ۳۷۴.

۲- الشخصية الاسلامية . القسم الثالث : ۱۳۲.

ځای مسلمانان دي جهادي اميران وټاکي او جهاد دې کوي خو موخه به يوه وي چې کله هم د څو ډلو اتحاد کېدی شو بې له ځنډه به د يو امير لاندې اتحاد کوي او په يو ځای کې به څو اميران نه وي. دا اميران لکه دسفر اميران دي دا ټول به د اسلامي امت د يو امير لاندې راټولېږي . بې اتفاقي حرامه او ناروا ده .

د جهاد د فرضيت په هکله ډېر نصوص راغلي دي .
الله تعالی فرمايي :

« كُتِبَ عَلَيْكُمُ ٱلْقِتَالُ وَهُوَ كُرْهٌ لَّكُمْ ۖ وَعَسَىٰٓ أَن تَكْرَهُواْ شَيْـًٔا وَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۖ وَعَسَىٰٓ أَن تُحِبُّواْ شَيْـًٔا وَهُوَ شَرٌّ لَّكُمْ ۗ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ».[1]

« په تاسو جنګېدل فرض شوي دي او تاسو يې بد ګڼئ خو کېدی شي چې تاسو يو شی بد وګڼئ او هغه تاسو لپاره غوره وي او يو شی خوښ کړئ خو هغه تاسو لپاره بد وي الله پوهېږي او تاسو نه پوهېږئ ».

د انسان طبيعت او فطرت کړاوونه، ستونزې، ټپونه او مړينه ښه نه ګڼي او کرکه ترې کوي خود الله سبحانه و تعالی په لار کې جنګېدلو کې د انساني ټولنې د سمون او ښېګړو رازونه نغښتي دي نو ځکه د خير او ثواب کار دی او ځکه په مسلمانانو فرض دی .

[1]- سورة البقرة : ٢١٦.

**الله تعالی فرمايي:**

«وَقَٰتِلُواْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ٱلَّذِينَ يُقَٰتِلُونَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوٓاْ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ ٱلْمُعْتَدِينَ وَٱقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ وَأَخْرِجُوهُم مِّنْ حَيْثُ أَخْرَجُوكُمْ وَٱلْفِتْنَةُ أَشَدُّ مِنَ ٱلْقَتْلِ».[١]

**«او د الله په لار کې هغو خلکو سره وجنګېږئ چې تاسو سره جنګېږي او تېری مه کوئ الله بې شکه تېری کوونکي نه خوښوي، هر ځای مو چې وموندل ويې وژنئ او له هغه ځای يې اوباسئ چې تاسو يې ايستلي يئ او شرک له وژلو څخه ډېر سخت دی».**

**او فرمايي:**

«قَٰتِلُواْ ٱلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَلَا بِٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ وَلَا يُحَرِّمُونَ مَا حَرَّمَ ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥ وَلَا يَدِينُونَ دِينَ ٱلْحَقِّ مِنَ ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلْكِتَٰبَ حَتَّىٰ يُعْطُواْ ٱلْجِزْيَةَ عَن يَدٍ وَهُمْ صَٰغِرُونَ».[٢]

**«هغو خلکو سره چې نه په الله ايمان راوړي او نه د اخرت په ورځ او هغه څه حرام نه ګڼي چې الله او د هغه پېغمبر**

---

[١]- سورة البقرة: ١٩٠-١٩١

[٢]- سورة التوبة: ٢٩.

حرام کړي وي او د کتابیانو هغو خلکو سره چې د حق دین تابعداري نه کوي تر هغې وجنګېږئ چې له خپله لاسه جزیه ورکړي او هغوی ذلیل وي».

او فرمايي:

« وَقَٰتِلُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ وَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٞ ».[1]

«د الله په لار کې وجنګېږئ او په دې وپوهېږئ چې الله بې شکه اورېدنکی او ډېر پوه دی».

او فرمايي:

« فَإِمَّا تَثۡقَفَنَّهُمۡ فِي ٱلۡحَرۡبِ فَشَرِّدۡ بِهِم مَّنۡ خَلۡفَهُمۡ لَعَلَّهُمۡ يَذَّكَّرُونَ ».[2]

«که دوی په جنګ کې وموممې نو هغه خلک پرې وتروه چې له دوی وروسته راځي ښايي چې پند واخلي».

د اسلام سرتېري مجاهدين به د اسلام دښمنانو ته داسې ماتوونکی درس ورکوي چې راتلونکي نسلونه یې یاد لري او نور څوک په اسانۍ د اسلام او مسلمانانو دښمنۍ ته زړه ښه نه کړي.

---

[1] - سورة البقرة: ۲۴۴.

[2] - سورة الانفال: ۵۷.

**او الله تعالی فرمایي**:

«يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ خُذُواْ حِذۡرَكُمۡ فَٱنفِرُواْ ثُبَاتٍ أَوِ ٱنفِرُواْ جَمِيعًا».[1]

«**ای مؤمنانو پوره پام کوئ؛ ډلې ډلې او یا ټول په یو چغ ووځئ**».

**او فرمایي**:

«فَلۡيُقَٰتِلۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ ٱلَّذِينَ يَشۡرُونَ ٱلۡحَيَوٰةَ ٱلدُّنۡيَا بِٱلۡأٓخِرَةِۚ وَمَن يُقَٰتِلۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ فَيُقۡتَلۡ أَوۡ يَغۡلِبۡ فَسَوۡفَ نُؤۡتِيهِ أَجۡرًا عَظِيمًا وَمَا لَكُمۡ لَا تُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ وَٱلۡمُسۡتَضۡعَفِينَ مِنَ ٱلرِّجَالِ وَٱلنِّسَآءِ وَٱلۡوِلۡدَٰنِ ٱلَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَآ أَخۡرِجۡنَا مِنۡ هَٰذِهِ ٱلۡقَرۡيَةِ ٱلظَّالِمِ أَهۡلُهَا وَٱجۡعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ وَلِيًّا وَٱجۡعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ نَصِيرًا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ يُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِۖ وَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ يُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِ ٱلطَّٰغُوتِ فَقَٰتِلُوٓاْ أَوۡلِيَآءَ ٱلشَّيۡطَٰنِۖ إِنَّ كَيۡدَ ٱلشَّيۡطَٰنِ كَانَ ضَعِيفًا».[2]

«**هغه خلک دي د الله په لار کې وجنګېږي چې نړدي**

---

[1] - سورة النساء: ٧١.

[2] - سورة النساء: ٧٤-٧٦

ژوند په اخرت خرڅوي او څوک چې د الله په لار کې وجنګېږي او ووژل شي يا غالب شي نو هغه ته به ډېر زر لوی اجر ورکړو؛ او په تاسو څه شوي دي چې د الله په لار کې او د هغو کمزورو سړيو، ښځو او ماشومانو د خلاصون لپاره نه جنګېږئ چې وايي: ای زمونږ ربه! مونږ له دې سيمې اوباسه چې چاروا کي يې ظالمان دي او مونږ لپاره له خپل پلوه څوک سرکښ وټاکه او مونږ لپاره له خپل پلوه څوک مددګار پيدا کړه؛ مؤمنان د الله په لار کې جنګېږي او کافران د طاغوت په لار کې جنګېږي نو د شيطان ملګرو سره وجنګېږئ د شيطان مکر بې شکه کمزوری دی».

او الله تعالی خپل پيغمبر ته فرمايي:

« فَقَٰتِلۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ لَا تُكَلَّفُ إِلَّا نَفۡسَكَۚ وَحَرِّضِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَۖ عَسَى ٱللَّهُ أَن يَكُفَّ بَأۡسَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْۚ وَٱللَّهُ أَشَدُّ بَأۡسٗا وَأَشَدُّ تَنكِيلٗا ».[1]

« د الله په لار کې وجنګېږه ته يوازې خپل ځان مجبورولی شې او مؤمنان (جهاد ته) وهڅوه الله به د کافرانو جنګ مخ په شا کړي؛ الله په جنګ کې هم ډېر سخت دی او په عذاب ورکولو کې هم ».

١- سورة النساء: ٨٤.

**او فرمايي:**

« يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ حَرِّضِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ عَلَى ٱلۡقِتَالِۚ إِن يَكُن مِّنكُمۡ عِشۡرُونَ صَٰبِرُونَ يَغۡلِبُواْ مِاْئَتَيۡنِۚ وَإِن يَكُن مِّنكُم مِّاْئَةٞ يَغۡلِبُوٓاْ أَلۡفٗا مِّنَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ بِأَنَّهُمۡ قَوۡمٞ لَّا يَفۡقَهُونَ ٱلۡـَٰٔنَ خَفَّفَ ٱللَّهُ عَنكُمۡ وَعَلِمَ أَنَّ فِيكُمۡ ضَعۡفٗاۚ فَإِن يَكُن مِّنكُم مِّاْئَةٞ صَابِرَةٞ يَغۡلِبُواْ مِاْئَتَيۡنِۚ وَإِن يَكُن مِّنكُمۡ أَلۡفٞ يَغۡلِبُوٓاْ أَلۡفَيۡنِ بِإِذۡنِ ٱللَّهِۗ وَٱللَّهُ مَعَ ٱلصَّٰبِرِينَ ».[1]

**« اى پېغمبره! مؤمنان جنګ ته وهڅوه که له تاسو شل صبرناک شي نو په دوه سوو به غالب شي او که له تاسو شل شي نو د کافرانو په زرو به غالب شي داله دې کبله چې هغوی داسې خلک دي چې نه پوهېږي. اوس الله تاسو نه بار سپک کړ او پوه دی چې تاسو کې کمزوري ده نو که له تاسو سل صبرناک شي نو په دوه سوو به غالب شي او که له تاسو زر شي نو د الله په حکم به په دوه زرو غالب شي او الله د صبر کوونکيو سره دی ».**

**د کفر د مشرانو سره په جنګېدلو حکم کوي او فرمايي:**

« وَإِن نَّكَثُوٓاْ أَيۡمَٰنَهُم مِّنۢ بَعۡدِ عَهۡدِهِمۡ

---

١- سورة الانفال: ٦٥- ٦٦.

وَطَعَنُواْ فِي دِينِكُمْ فَقَاتِلُوٓاْ أَئِمَّةَ ٱلْكُفْرِ إِنَّهُمْ لَآ أَيْمَانَ لَهُمْ لَعَلَّهُمْ يَنتَهُونَ ».[1]

**« او که د خپله تړون نه وروسته یې خپل قسمونه مات کړل او ستاسو په دین یې تور ولګاوۀ نو د کفر مشرانو سره وجنګېږئ د هغوی قسمونه نشته ښايي چې منع شي ».**

**او فرمايي:**

« أَلَا تُقَاتِلُونَ قَوْمًا نَّكَثُوٓاْ أَيْمَانَهُمْ وَهَمُّواْ بِإِخْرَاجِ ٱلرَّسُولِ وَهُم بَدَءُوكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ أَتَخْشَوْنَهُمْ فَٱللَّهُ أَحَقُّ أَن تَخْشَوْهُ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ قَاتِلُوهُمْ يُعَذِّبْهُمُ ٱللَّهُ بِأَيْدِيكُمْ وَيُخْزِهِمْ وَيَنصُرْكُمْ عَلَيْهِمْ وَيَشْفِ صُدُورَ قَوْمٍ مُّؤْمِنِينَ وَيُذْهِبْ غَيْظَ قُلُوبِهِمْ وَيَتُوبُ ٱللَّهُ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ أَمْ حَسِبْتُمْ أَن تُتْرَكُواْ وَلَمَّا يَعْلَمِ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ جَٰهَدُواْ مِنكُمْ وَلَمْ يَتَّخِذُواْ مِن دُونِ ٱللَّهِ وَلَا رَسُولِهِۦ وَلَا ٱلْمُؤْمِنِينَ وَلِيجَةً وَٱللَّهُ خَبِيرٌۢ بِمَا تَعْمَلُونَ ».[2]

---

١- سورة التوبة: ١٢.

٢- سورة التوبة: ١٣ - ١٦.

«ايا تاسو هغو خلكو سره نه جنګېږئ چې خپل قسمونه يې مات كړي دي، د پېغمبر د ايستلو نيت يې كړى دى او هغوى په تاسو لومړى ځل پيل كړى دى؟! ايا تاسو هغوى نه وېرېږئ؟ كه مؤمنان يئ نو الله ددې زيات وړ دى چې ورڅخه ووېرېږئ. هغوى سره وجنګېږئ الله به هغوى ته ستاسو په لاس عذاب وركړي، رسوا به يې كړي ،تاسو سره به د هغوى په مقابل كې مرسته وكړي. د مؤمنانو خلكو سينې به يخې كړي، د هغوى د زړونو غوسه به لرې كړي ، الله چې چاته وغواړي مهرباني پرې كوي او الله ډېر پوه او د حكمت څښتن دى ايا تاسو ګمان كړى چې پرې به ښودل شئ او الله به له تاسو هغه خلک نه وي په نښه كړي چې جهاد يې كړى وي او له الله ،د هغه له پېغمبر او مؤمنانو نه پرته يې دوستي نه وي نيولې؟ او الله په هغو كړو ښه خبر دى چې تاسو يې كوى».

نو د الله تعالى دوستان او دښمنان، مجاهدين او منافقين دښندنې او توري په ورځ سره بيلېږي، څرګندېږي او معلومېږي نو ځكه الله تعالى په خپلو منونكيو بندګانو جهاد فرض كړى دى. تر څو چا ن شوي نږه او مخلص مؤمنان هم خلک وپېژني او دروغجن، منافقان او د رغلګر هم په نښه شي تر څو د الله تعالى حجت قائم شي، فساد له منځه لاړ شي او د الله تعالى د عدل نظام په پلي كولو او نافذولو د هغه جل جلاله كلمه لوړه او دين يې سر لوړى، څرګند، غالب او عملي شى او له خپلو مؤمنو اتلو مجاهدينو څخه راضي شي.

کافران او مشرکان ټول سره يو دي .

الله تعالی فرمايي :

«وَقَٰتِلُواْ ٱلۡمُشۡرِكِينَ كَآفَّةٗ كَمَا يُقَٰتِلُونَكُمۡ كَآفَّةٗۚ وَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلۡمُتَّقِينَ ».[1]

« او ټولو مشرکانو سره وجنګېږئ څکه چې هغوی ټول تاسو سره جنګېږي او وپوهېږئ چې الله بې شکه پرهېزګارانو سره دی ».

اوس په افغانستان باندې يرغل کې د امريکا په مشرۍ د ناټو او نورو ځواکونه يواځې کفر سره يوځای کړي دي. او د اسلامي نړۍ طاغوتان ، مرتدان او منافقان هم ددغه کفر ملاتړ کوي نو څکه ټول اسلامي امت باندې د ګردې نړۍ د بزدلو او کرغېړنو کافرو، مرتدو او منافقو چارواکو، حکومتونو، پوځونو او د هغوی پلويانو، لاسپوڅو، ګوډاګيانو په خلاف مسلح جهاد او قتال فرض عين دی او د اسلامي شامل خلافت کبری تر قيام به روان وي .

جهاد خپل وس سره سم فرض دی او دا بهانه سمه نه ده چې مونږ د کافرو شمېر، وسلو او وسائلو په کچ تياری او وس ونه لرونو ګنې جهاد به نه کوو ! .

---

١- سورة التوبة : ٣٦.

**الله تعالی فرمايي :**

«ٱنفِرُواْ خِفَافًا وَثِقَالًا وَجَٰهِدُواْ بِأَمۡوَٰلِكُمۡ وَأَنفُسِكُمۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِۚ ذَٰلِكُمۡ خَيۡرٌ لَّكُمۡ إِن كُنتُمۡ تَعۡلَمُونَ ».[1]

**« سپک او درانه واوځئ او د الله تعالی په لار کې په خپلو مالونو او خپلو ځانونو جهاد وکړئ که پوهېدئدا تاسو لپاره ډېر غوره دی » .**

**سپک او درانه دا معنا چې وسلې درسره ډېرې وي او کـه لږې، وسائل درسره ډېر وي او که لږ، شمېرمو ډېر وي او کـه لـږ .... د الله سبحانه و تعالی پـه لار کې پـه خپلـو مـالونو او ځـانونو جهاد وکړئ . د جهاد د حکم سره تـل د مـالونو او ځـانونو دواړو يادونه کېږي او مالونه له ځانونو مخکې يادېږي؛ دا ځکه چې د جهاد لپاره د مال لګول اړيـن او ضـروري دي څـوک چې مـال نـه لګوي ځان بـه څرنګـه وړانـدې کـړي؟! همدارنګـه مالـدار بـه بـې ماله مجاهدين تمويلوي او تياروي. نو هر څوک بـه د خپـل وس په کچ د مال او ځان دواړو ښندنه نـه سپموي او دا نـه ده چې کـه مونږ مال ولرو هم د جهاد لپاره به بل څوک مال راکوي .**

**مؤمنـا ن مجاهـدين بـه خپلـو منځـو کـې سره خـواږه او ورونه ورونه وي او په کافرانو به سخت وي .**

---

١- سورة التوبة : ٤١.

**الله تعالی فرمايي:**

﴿ مُّحَمَّدٌ رَّسُولُ ٱللَّهِۚ وَٱلَّذِينَ مَعَهُۥٓ أَشِدَّآءُ عَلَى ٱلۡكُفَّارِ رُحَمَآءُ بَيۡنَهُمۡۖ تَرَىٰهُمۡ رُكَّعٗا سُجَّدٗا يَبۡتَغُونَ فَضۡلٗا مِّنَ ٱللَّهِ وَرِضۡوَٰنٗاۖ سِيمَاهُمۡ فِي وُجُوهِهِم مِّنۡ أَثَرِ ٱلسُّجُودِۚ ﴾.[1]

**«محمد د الله پيغمبر دی او هغه مؤمنان چې هغه سره دي په کافرانو سخت دي او خپلو منځو سره مهربانه، ته به يې ګورې چې رکوع کوونکي او سجده کوونکي دي د الله مهرباني او رضا لټوي، په مخونو کې يې د سجدو نښې دي».**

**اوس نو وګورئ هغه خلک څرنګه مؤمنان کېدی شي چې کافرانو سره يې اتحاد کړی دی، هغوی سره نرمي کوي او د هغوی په اشارو، اوامرو او د هغوی د خوښې لپاره مسلمانانو سره سختي کوي؟!**

**او د ځان، مال، تورې، ژبې، قلم او د خپل وس هر شي باندې جهاد کول په کار دي حديث کې راځي:**

عن أنس عن النبي ﷺ قال: «جاهدوا المشركين بأموالكم وأنفسكم وألسنتكم».[2]

**انس رضي الله عنه نه روايت دی هغه له پيغمبر ﷺ نه روايت کوي چې فرمايلي يې دي: «مشرکانو سره په خپلو مالونو، خپلو**

---

١- سورة الفتح: ٢٩.

٢- رواه ابوداود والنسائي والدارمي.

**ځانونو او خپلو ژبو جهاد وکړئ ›› .**

# جهاد به تر قيامته جاري وي

**د الله په لار کې جهاد د کوم ځانګړي عصر، ځانګړې پېړۍ، ځانګړې سيمې او ځانګړيو خلکو پورې اړه نه لري بلکه د خپلو شروطو، شرائطو او ادابو سره به تر قيامته جاري وي نه يې کوم عادل خليفه منع کولی شي او نه يې کوم ظالم .**

**الله تعالی ددې دين د ساتلو او پاينښت لپاره تل داسې څوک پيداکوي چې هغوی د الله په لار کې د الله د دين د سر لوړۍ او عملي کولو لپاره د الله دښمنانو سره جنګېږي .**

**حديث کې راځي :**

عن جابر بن سمرة يقول: سمعت رسول الله ﷺ يقول: «‹ لا يزال هذا الدين قائما يقاتل عليه عصابة من المسلمين حتى تقوم الساعة ››.[1]

**جابر بن سمرة رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي : ما رسول الله ﷺ نه اورېدلي دي چې فرمايل يې : ‹‹ دا دين به تر هغې ژوندی وي ترڅو چې تر قيامته پورې يوه ډله مسلمانان ددې لپاره جنګېږي ›› .**

١- رواه مسلم و احمد و ابوداود الطيالسي والحاكم .

**او په يو روايت کې راځي چې رسول الله ﷺ وفرمايل**:

«لا تزال طائفة من أمتى يقاتلون على الحق ظاهرين إلى يوم القيامة». [١]

**«زما له امت څخه به څه خلک د حق لپاره جنګيږي او د قيامت تر ورځې به څرګند او غالب وي».**

عن أنس قال: قال رسول الله ﷺ: «**الجهاد ماض مذ** بعثنى الله إلى أن يقاتل آخر هذه الأمة الدجال لا يبطله جور جائر و لا عدل عادل». [٢]

**انس رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل**: «**له هغه وخته چې زه الله پيغمبر رالېږلى يم تر هغې جهاد جاري دى چې ددې امت اخري خلک دجال سره وجنګيږي نه د ظالم ظلم جهاد باطلولى شي او نه يې د عادل عادل**».

---

١- رواه مسلم و ابوداود و الدارمي.

٢- رواه ابوداود.

# د جهاد فضيلتونه

جهاد فی سبيل الله په ټولو عبادتونو او طاعتونو کې ممتاز، لوړ، سپېڅلی او پياوړی عمل دی. څرنګه به نه وي چې يو مجاهد يوائې د الله تعالی د رضا، د هغه د کلمې د لوړوالي او د هغه په ځمکه د هغه د شريعت د نفاذ او د هغه د تشريعي حاکميت د پلي کولو او دهغه د دين د غلبې لپاره خپل سر په لاس کې نيسي، خپل مال قربانوي، د دنيا د ژوند خوندونه او راحتونه پرېږدي، د الله سبحانه و تعالی دښمنانو ته د مقابلې او مبارزې لپاره خپل کورپرېږدي او په وينو لتاړ د ټپونو، دردونو او شهادتونو ډګر ته وردانګي.

په مرمرينو او پستو جوماتونو کې د قالينو له پاسه سجدې لګول او د نعمتونو کورونو کې روژې نيول هله لوبې او ټوکې وبرېښي چې د ښندنو، کړاوونو، ستونزوټپونو، دردونو، په ولږو، سړو او ګرمو سيمو کې دمزلونو او شهادتونو سنګرونه او ډګرونه وليدل شي.

الله تعالی د جهاد في سبيل الله د فضيلت په هکله فرمايي:

«لَّا يَسْتَوِى ٱلْقَٰعِدُونَ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ غَيْرُ أُو۟لِى ٱلضَّرَرِ وَٱلْمُجَٰهِدُونَ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ بِأَمْوَٰلِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ ۚ فَضَّلَ ٱللَّهُ ٱلْمُجَٰهِدِينَ

بِأَمْوَٰلِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ عَلَى ٱلْقَٰعِدِينَ دَرَجَةً ۚ وَكُلًّا وَعَدَ ٱللَّهُ ٱلْحُسْنَىٰ ۚ وَفَضَّلَ ٱللَّهُ ٱلْمُجَٰهِدِينَ عَلَى ٱلْقَٰعِدِينَ أَجْرًا عَظِيمًا دَرَجَٰتٍ مِّنْهُ وَمَغْفِرَةً وَرَحْمَةً ۚ وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ».[1]

**« د ناروغيو د خاوندانو پرته د مؤمنانو ناست خلک او د الله په لار کې په خپلو مالونو او ځانونو جهاد کوونکي سره نه برابريږي. په خپلو مالونو او ځانونوجهاد کوونکي الله په ناستو په درجې کې غوره کړي دي، ټولو سره الله د جنت وعده کړې ده او مجاهدين الله په ناستو په لوی اجر غوره کړي دي د الله له پلوه دوی لپاره درجې، بښنه او لورينې دي او الله ډېر بښونکی او خورا زيات لرونکي دي ».**

**او فرمايي:**

« ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَهَاجَرُوا۟ وَجَٰهَدُوا۟ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ بِأَمْوَٰلِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ أَعْظَمُ دَرَجَةً عِندَ ٱللَّهِ ۚ وَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْفَآئِزُونَ يُبَشِّرُهُمْ رَبُّهُم بِرَحْمَةٍ مِّنْهُ وَرِضْوَٰنٍ وَجَنَّٰتٍ لَّهُمْ فِيهَا نَعِيمٌ مُّقِيمٌ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًا ۚ إِنَّ ٱللَّهَ عِندَهُۥٓ أَجْرٌ عَظِيمٌ ».[2]

**« هغه خلک چې ايمان يې راوړی دی، هجرت يې کړی دی او د الله په لار کې يې په خپلو مالونو او ځانونو جهاد کړی**

---

۱- سورة النساء: ۹۵-۹۶.

۲- سورة التوبة: ۲۰-۲۲.

دى الله سره دوى د لويې درجې والا دي او همدوى بريالي دي. خپل رب ورته له خپله پلوه د لورينې، راضي کېدو او داسې جنتونو زېرى ورکوي چې هغوى لپاره به پکې تلپاتې نعمتونه وي تل ترتله به پکې وي الله سره بې شکه لوى اجر دى».
او فرمايي:

«يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ هَلۡ أَدُلُّكُمۡ عَلَىٰ تِجَٰرَةٖ تُنجِيكُم مِّنۡ عَذَابٍ أَلِيمٖ تُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَتُجَٰهِدُونَ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ بِأَمۡوَٰلِكُمۡ وَأَنفُسِكُمۡۚ ذَٰلِكُمۡ خَيۡرٞ لَّكُمۡ إِن كُنتُمۡ تَعۡلَمُونَ يَغۡفِرۡ لَكُمۡ ذُنُوبَكُمۡ وَيُدۡخِلۡكُمۡ جَنَّٰتٖ تَجۡرِي مِن تَحۡتِهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُ وَمَسَٰكِنَ طَيِّبَةٗ فِي جَنَّٰتِ عَدۡنٖۚ ذَٰلِكَ ٱلۡفَوۡزُ ٱلۡعَظِيمُ وَأُخۡرَىٰ تُحِبُّونَهَاۖ نَصۡرٞ مِّنَ ٱللَّهِ وَفَتۡحٞ قَرِيبٞۗ وَبَشِّرِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ».[۱]

«اى مؤمنانو! ايا داسې يو تجارت دروښيم چې له دردناک عذابه مو وژغوري؟ په الله او د هغه په پېغمبر به ايمان راوړئ او د الله په لار کې به په خپلو مالونو او ځانونو جهاد کوئ که پوهېږئ دا تاسو لپاره غوره ده. ګوناوې به مو دروبښي او داسې جنتونو ته به مو ننباسي چې ويالې پکې بهېږي. او په تل پاتې جنتونو کې به پاک کورونه در کړي. دا لويه بريا ده؛ او بله داسې لورېنه به درباندې وکړي چې خوښوئ يې او هغه د الله له پلوه مرسته او نږدې فتحه ده او مؤمنانو ته زېرى ورکړه».
زمونږ ځانونه او مالونه د الله تعالى دي نو بايد د هغه له

۱- سورة الصف: ۱۰- ۱۳.

**لارې يې ونه سپموو.**

**الله تعالی فرمايي:**

﴿ إِنَّ ٱللَّهَ ٱشۡتَرَىٰ مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ أَنفُسَهُمۡ وَأَمۡوَٰلَهُم بِأَنَّ لَهُمُ ٱلۡجَنَّةَۚ يُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ فَيَقۡتُلُونَ وَيُقۡتَلُونَۖ وَعۡدًا عَلَيۡهِ حَقّٗا فِي ٱلتَّوۡرَىٰةِ وَٱلۡإِنجِيلِ وَٱلۡقُرۡءَانِۚ وَمَنۡ أَوۡفَىٰ بِعَهۡدِهِۦ مِنَ ٱللَّهِۚ فَٱسۡتَبۡشِرُواْ بِبَيۡعِكُمُ ٱلَّذِي بَايَعۡتُم بِهِۦۚ وَذَٰلِكَ هُوَ ٱلۡفَوۡزُ ٱلۡعَظِيمُ ﴾.[۱]

**﴿ الله بې شکه د مؤمنانو نه د هغوی ځانونه او د هغوی مالونه په دې اخيستي دي چې هغوی لپاره جنت دی د الله پهلار کې به جنګېږي نو کافران به وژني او دوی به هم وژل کېږي. په تورات، انجيل او قران کې په دې حقه ژمنه ده او له الله څوک په خپله ژمنه ډېر وفا کوونکی کېدی شي؟! نو په خپلې هغې سوداګرۍ خوشحاله شئ چې معامله مو پرې کړې ده او همدا لويه بريا ده ﴾.**

**نو کله چې الله تعالی زمونږ ځانونه او مالونه اخيستي دي نو بايد ورېې کړو او د الله تعالی حق ور وسپارو د حق په دې سپارلو کې سستي، بې غوري او وروسته کول لويه ګونا ده. دا**

۱- سورة التوبة: ۱۱۱.

معامله د جنت په بدل کې شوې ده او الله تعالی ته د هغه حق ورکول د هغه په لار کې جنګېدلو باندې کېږي نو که جهاد او قتال فی سبیل الله ونه کړو څرنګه ویلی شوو چې مونږ د جنت مستحق یوو؟!

او د جهاد په فضیلت کې فرمایي:

«لَٰكِنِ ٱلرَّسُولُ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مَعَهُۥ جَٰهَدُواْ بِأَمْوَٰلِهِمْ وَأَنفُسِهِمْۚ وَأُوْلَٰٓئِكَ لَهُمُ ٱلْخَيْرَٰتُۖ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ أَعَدَّ ٱللَّهُ لَهُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَاۚ ذَٰلِكَ ٱلْفَوْزُ ٱلْعَظِيمُ». [۱]

«خو پېغمبر او هغه خلک چې هغه سره یې ایمان راوړی دی په خپلو مالونو او خپلو ځانونو یې جهاد کړی دی، دوی لپاره ښېګړې دي او همدوی بریالي دي. الله دوی لپاره داسې جنتونه تیار کړي دي چې اوبهٔ پکې بهېږي تل به پکې اوسېږي او دا لویه بریا ده».

جهاد د الله تعالی د رحمت او لورېنې لامل دی الله تعالی فرمایي:

---

[۱] - سورة التوبة: ۸۸-۸۹.

(( إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَٱلَّذِينَ هَاجَرُواْ وَجَٰهَدُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ أُوْلَٰٓئِكَ يَرۡجُونَ رَحۡمَتَ ٱللَّهِۚ وَٱللَّهُ غَفُورٞ رَّحِيمٞ )).[1]

(( **هغه خلک چې ایمان یې راوړی دی او هغه خلک چې د الله په لار کې یې هجرت او جهاد کړی دی هغوی د الله د رحمت هیله لري او الله ډېر ښښونکی او خورا زیات لوروونکی دی**)).

**نو څرګنده شوه چې څوک د الله تعالی د رحمت هیله لري هغه به د ضرورت په وخت کې د الله تعالی په لار کې هجرت او جهاد کوي.**

**د الله سبحانه و تعالی په لار کې هجرت، جهاد او نصرت د ایمان نښه او د ښښې او عزت لاملونه دي. الله تعالی فرمایي:**

(( وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَهَاجَرُواْ وَجَٰهَدُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ وَٱلَّذِينَ ءَاوَواْ وَّنَصَرُوٓاْ أُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُؤۡمِنُونَ حَقّٗاۚ لَّهُم مَّغۡفِرَةٞ وَرِزۡقٞ كَرِيمٞ )).[2]

(( **هغه خلک چې ایمان یې راوړی دی، د الله په لار کې یې هجرت او جهاد کړی دی او هغه خلک چې (مهاجرینو او**

---

[1] - سورة البقرة: ۲۱۸.

[2] - سورة الانفال: ۷۴.

مجاهد ينوته يې) ځای ورکړی دی او مرسته يې ورسره کړې ده دوی ريښتني مؤمنان دي دوی لپاره ښښنه او د عزت روزي ده ››.

او فرمايي:

‹‹ إِنَّمَا ٱلْمُؤْمِنُونَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوا۟ وَجَٰهَدُوا۟ بِأَمْوَٰلِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلصَّٰدِقُونَ ››.[1]

‹‹ ريښتيني مؤمنان هغه خلک دي چې په الله او د هغه په پېغمبر يې ايمان راوړی وي، بيا يې شک نه وي کړی او د الله په لار کې يې په خپلو مالونو او ځانونو جهاد کړی وي همدوی ريښتيني دي ››.

رسول الله ﷺ سره صحابه کرامو رضي الله عنهم د يوې ونې لاندې د جهاد بيعت وکړ او د الله تعالى دا بيعت خوښ شو او هغوی نه رضا شو الله تعالى فرمايي:

‹‹ لَّقَدْ رَضِىَ ٱللَّهُ عَنِ ٱلْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ ٱلشَّجَرَةِ فَعَلِمَ مَا فِى قُلُوبِهِمْ فَأَنزَلَ ٱلسَّكِينَةَ عَلَيْهِمْ وَأَثَٰبَهُمْ فَتْحًا قَرِيبًا وَمَغَانِمَ كَثِيرَةً يَأْخُذُونَهَا ۗ وَكَانَ ٱللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ››.[2]

‹‹ الله له هغو مؤمنانو راضي شو چې کله يې د ونې

---

[1]- سورة الحجرات: ۱۵.

[2]- سورة الفتح: ۱۸-۱۹.

لاندې تاسره بیعت کاوۀ الله د هغوی د زړونو په خبرو پوه ؤ نو اطمینان یې پرې نازل کړ او نږدې فتحه، او ډېر غنیمتونه یې ور په برخه کړل چې اخلي یې او الله غالب او د حکمت څښتن دی ».

او الله تعالی مؤمنان مجاهدین داسې ستایي:

« يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مَن يَرۡتَدَّ مِنكُمۡ عَن دِينِهِۦ فَسَوۡفَ يَأۡتِي ٱللَّهُ بِقَوۡمٖ يُحِبُّهُمۡ وَيُحِبُّونَهُۥٓ أَذِلَّةٍ عَلَى ٱلۡمُؤۡمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى ٱلۡكَٰفِرِينَ يُجَٰهِدُونَ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ وَلَا يَخَافُونَ لَوۡمَةَ لَآئِمٖۚ ذَٰلِكَ فَضۡلُ ٱللَّهِ يُؤۡتِيهِ مَن يَشَآءُۚ وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ ».[١]

« ای مؤمنانو! له تاسو چې څوک له خپل دین څخه واوښت نو الله به نور داسې خلک راولي چې الله هغوی خوښوي او هغوی الله خوښوي، په مؤمنانو به مهربانه وي او په کافرانو سخت؛ د الله په لار کې به جهاد کوي او د هیڅ کوم پړکوونکي له پړې به نه وېرېږي ؛ دا د الله لورېنه ده چې چاته یې وغواړي ورکوي یې او الله پراخوونکی او ډېر پوه دی ».

د جهاد او مجاهد دومره زیات فضلیت دی چې رسول الله ﷺ مجاهد اتل نه خپل مور او پلار قربانوي.

حدیث کې راځي:

عن علی یقول : ما رأیت النبی ﷺ یُفدی رجلا بعد

---

١- سورة المائدة : ٥٤.

سعد سمعته يقول : (( إرم فداك أبى و أمي )).[١]

د علی رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي چې: ما نبي کريم ﷺ نه دی ليدلی چې د سعد نه پرته يې له چا څوک قربان کړی وي ما له هغه واورېدل چې سعد ته يې فرمايل: (( زما پلار او مور دې درنه قربان شي وله ! )).

جهاد دومره پياوړی، لوړ او نېک عمل دی چې جنت د تورو د سيوري لاندې ګڼل شوی دی . حديث کې راځي :

عن عبدالله بن أبى أوفى أن رسول الله ﷺ قال : (( واعلموا أن الجنة تحت ظلال السيوف )).[٢]

عبدالله بن أبى أوفى رضي الله عنهما نه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي :

(( په دې وپوهېږئ چې جنت بې شکه د تورو د سيوري لاندې دی)).

بل حديث کې راځي :

عن عتبة بن عبدالسلمى قال: قال رسول الله ﷺ :

((......إن السيف محاء للذنوب ........)).[٣]

عتبه بن عبدالسلمی رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: رسول الله ﷺ وفرمايل : ((.......... توره بې شکه د ګناهونو محوه کوونکې (له منځه وړونکې) ده ..........)).

---

١- رواه البخاري .

[٢]- رواه البخاري و مسلم .

[٣]- رواه الدارمي .

**اسلام کې ګوښه کېناستل او رهبانيت نشته بلکه اسلام کې ټولنه کې اوسېدل او د ټولنې اصلاح، خدمت او جهاد کول دي.**

**حديث کې راغې:**

عن أبی هريرة قال: مر رجل من أصحاب رسول الله ﷺ بشعب فيه عيينة من ماء عذبة فأعجبته قال : لو اعتزلت الناس فأقمت فی هذا الشعب فذکر ذلك لرسول الله ﷺفقال : «لا تفعل فان مقام أحدکم فی سبيل الله أفضل من صلاته فی بيته سبعين عاما، ألا تحبون أن يغفر الله لکم و يدخلکم الجنة؟ أغزوا فی سبيل الله؛ من قاتل فی سبيل الله فواق ناقة وجبت له الجنة».[1]

**ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: د رسول الله ﷺ له صحابه و يو سړی په يو ناو تېرېده چې هلته يکې د اوبو يوه خوږه چينه وه، د هغه خوښه شوه او ويې ويل: که له خلکو ګوښی شم او دې ناو کې واوسېږم (نو ښه به وي)، دا خبره يې رسول الله ﷺ ته ياده کړه هغه وفرمايل: «دا کار مه کوه ځکه چې د الله په لارکې جهاد کې ستاسو د يو کس ودرېدل ، په خپل کور کې اوياکلونو لمانځه کولو نه غوره دي. ايا دا نه خوښوئ چې الله درته بښنه وکړي؟ د الله په لارکې جهاد وکړئ؛ څوک چې د الله په لار کې د اوښې د لوشلو منځ کې د وقفې په اندازه**

[1]- رواه الترمذي واحمد.

**وجنګېد نو هغه لپاره جنت لازم شو ».**

بل حديث کې راځي :

**عن أبی أمامة قال : خرجنا مع رسول اللهﷺ فی سرية فمر رجل بغار فيه شئ من ماء و بقل فحدث نفسه بأن يقيم فيه و يتخلی من الدنيا فاستأذن رسول الله ﷺ فی ذلك فقال رسول الله ﷺ: « إنی لم أبعث باليهودية ولا بالنصرانية و لكنی بعثت بالحنيفية السمحة، والذي نفس محمد بيده لغدوة أو روحة فی سبيل الله خير من الدنيا و ما فيها ولمقام أحدكم فی الصف خير من صلاته ستين سنة ».[1]**

**ابو امامه رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: مونږ رسول الله ﷺ سره په يوې ډلې کې ووتو نو يو سړی په يو غار تېر شو چې اوبه او څه سابه ورسره وو؛ زړه کې يې دا خبره تېره شوه چې هلته واوسېږي او له دنيا کوښې شي، نو رسول الله ﷺ نه يې اجازه وغوښته، رسول الله ﷺ وفرمايل : « زه نه په يهوديت رالېږل شوی يم او نه په نصرانيت بلکه زه په اسانه حقپلوۍ رالېږل شوی يم، زما دې په هغه ذات قسم وي چې د محمد ځان د هغه په لاس کې دی چې د الله په لار جهاد کې يو سهار يا يو مازيګر له دنيا او هغو ټولو شيانو نه غوره دي چې په دې کې دي او د جهاد په صف کې ستاسو د يو کس ودرېدل د هغه د شپېتو کلونو لمانځه نه غوره دي ».**

---

[1]- رواه احمد.

مجاهد بـه يـوائحې د الله د لارې مجاهـد وي، جهـاد بـه د الله تعالى د رضا لپاره كوي چې د الله تعالى د يـن سرلوړى او پـه ځمكه كې پلى (نافـذ) شـي؛ مجاهـد د دنيـوي اغراضـو او ګټونـه بې پروا او مستغني وي هغه نه د غنيمت د مطلب لپاره جنګيږي او نه دكوم سياسي منصب لپـاره نـو لـه همـدې املـه د الله پـه لار كې هر خدمت ته تيار وي. حديث كې راځي:

عن أبى هريرة عن النبىﷺ قال : «تعس عبدالدينار و عبـد الـدرهم و عبدالخميصـة إن أعطـى رضـى و إن لـم يعـط سـخط تعـس وانـتكس وإذا شـيك فلاانـتقش طـوبى لعبـد أخـذ بعنان فرسه فى سبيل الله أشعث رأسه مغبرة قدماه إن كان فى الحراسة كان فى الحراسة و إن كان فى الساقة كان فى الساقة و إن استأذن لم يؤذن له و إن شفع لم يشفع».[1]

ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دى هغه نبى كريم ﷺ نه روايـت كوي چې فرمايلي يې دي: «د دينار، درهم او شړى بنـده دې پـر مخه پرېوځي كه وركول شي خوشحاله شي او كـه ورنـه كـول شـي غوسه وي؛ هلاک اوسر ټيټى دې شي او كه اغـزى پكـې لاړ شـي نو ودې نه ايستل شي. هغه بنـده تـه دې خوښـي وي چـې د الله پـه لار كې يې د خپل اس واګې نيولې وي، بيرسر يـې وي، ګردجنـې پښې يې وي، كه په څوكيـدارۍ وټاكـل شـي پـه څوكيـدارۍ كـې وي او كـه د لښـكر پـه اخر كـې وټاكـل شـي هلتـه وي، كـه اجازه

[1]- رواه البخاري وابن ماجه .

وغـواړي نـو اجازه ورتـه نـه کېږي او کـه د څا سپارښـتنه وکـړي سپارښتنه يې نه منل کېږي ».

معنا دا چې د هر ډول دنيوي تمې نـه پـاک وي، منـونکی وي او د خلکو له نظره پرېـوتی وي خـو د الله تعـالی پـه لار کـې د سوچه او نړه جهاد له امله هغه جل جلاله ته ډېر نږدې وي .

د الله په لار کې د جهاد مزله کې چې کـومې پښـې ګردجنې شـي هغه د دوزخ له اوره وژغول شي .

حديث کې راځي :

عـن أبی عـبس عبـدالرحمن بـن جبـر أن رسـول الله ﷺ قال : « ما اغبرت قدما عبد فی سبيل الله فتمسه النار ».[1]

د ابو عـبس عبـد الرحمن بـن جبـر رضي الله عنه نـه روايـت د ی چـې رسول الله ﷺ فرمايلي دي : « د الله په لار کې جهاد کې چې کـوم قدمونه ګردجن شي هغو ته اور نه رسېږي ».

بل حديث کې د جهاد فضيلت او لـوړوالی داسې راغلـی دی :

عــن أبــی هريــرة أن رســول الله ﷺ ســئل أی العمــل أفضل؟ فقال : « إيمان بالله ورسوله » قيـل : ثـم ما ذا ؟ قال : « الجهاد فی سبيل الله » قيـل : ثـم ما ذا ؟ قال : « حـج مبرور ».[2]

---

[1]- رواه البخاري .

[2]- رواه البخاري .

د ابـو هريـرة ﷺ نـه روايـت دی چـې رسـول الله ﷺ نـه پوښتنه وشوه چې کوم عمل ډېر غوره دی؟ هغه فرمايل: «پـه الله او د هغه په پېغمبر ايمان راوړل» بيا وويـل شـول: بيـا څه دي؟ هغه وفرمايل: «د الله په لار کې جهاد» چا ورتـه وويـل: بيـاکوم دی؟ هغه وفرمايل: «پاک سوچه حج».

عـن أبـي هريـرة قـال: جـاء رجـل إلـى رسـول الله ﷺ فقال: دلني على عمل يعدل الجهاد. قال: «لا أجده» قال: «هل تستطيع إذ خرج المجاهد أن تدخل مسجدك فتقوم و لا تفتر و تصوم ولا تفطر؟» قال: ومن يستطيع ذلك؟!.[۱]

د ابو هريره ﷺ نه روايت دی هغـه وايـي چې رسـول الله ﷺ ته يو سړی راغی او ويې ويل: داسې عمـل راتـه وښـيه چې د جهاد سره برابرېږي. هغه ورته وفرمايل: «نه يې مـومم» بيـا يـې وفرمايل: «ايا دا کولای شې چې کله مجاهد جهاد ته ووځي نـو ته خپل جومات ته ننوځې او پرله پسې په لمانځه ولاړ يې او ترې نـه سستېږې او پرلـه پسې روژې نيسې او نـه يې مـاتوې؟ هغـه وويل څوک داسې کولی شي؟!».

نـو معلومـه شوه چې کـه څـوک د مجاهـد د وتلـو نـه تـر راتللـو پـورې شـپه او ورځ پـه لمانځـه ولاړ وي او هـره ورځ روژې نيسي هم د مجاهد درجې ته نه شي رسيدلی حال دا چې دا کـار ممکن هم نه دی او د چاله وسه پوره هم نه دی نو د جهاد فضيلت

۱- رواه البخاري.

لپاره دا يو حديث هم بس دی .

**په خپل ځان او مال د الله په لار کې د مجاهد په فضيلت کې بل حديث کې داسې راځي :**

عن أبی سعيد قال : قيل يا رسول الله أی الناس أفضل؟ فقال رسول الله ﷺ : « مؤمن يجاهد فی سبيل الله بنفسه و ماله » قالوا : ثم من؟ قال : « مؤمن في شعب من الشعاب يتقی الله و يدع الناس من شره ».[1]

**د ابو سعيد رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: چا وويل: ای د الله پيغمبره په خلکو کې څوک ډېر غوره دی؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: « هغه مؤمن چې د الله په لار کې په خپل ځان او خپل مال جهاد کوي » صحابه ؤ وويل: بيا څوک دی؟ هغه وفرمايل: « هغه مؤمن دی چې په کومه دره کې اوسېږي الله نه وېرېږي او خلک له خپل شر نه ساتي ».**

**نو په خپل مال او خپل ځان جهاد کول تر ټولو ښه شو.**

**بل حديث کې راځي :**

عن أبی هريرة قال : سمعت رسول الله ﷺ يقول : « مثل المجاهد فی سبيل الله والله أعلم بمن يجاهد في سبيله كمثل الصائم القائم و توكل الله للمجاهد فی سبيله بان يتوفاه أن يدخله الجنة أو يرجعه سالما مع أجر و غنيمة ».[2]

---

۱- رواه البخاري .
۲- رواه البخاري و مسلم .

د ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دى هغه ويلي چې ما رسول الله ﷺ نه اورېدلي دي چې فرمايل يي: «الله هغه څوک ښه پېژني چې د هغه په لاركې جهاد كوي نو د الله په لاركې د مجاهد مثال د هغه چا غوندې دى چې تل يې روژې نيولې وي او تل په لمانځه ولاړوي او الله تعالى د هغه په لاركې مجاهد لپاره ددې ذمه وهلې ده چې يا يې مړ كړي او جنت ته يې ننه باسي او يا يې د اجر او غنيمت سره روغ رمټ خپل كور ته ستون كړي».

د مجاهد په فضيلت كې بل حديث داسې راغلى دى:

عن أبى هريرة قال: إن رسول الله ﷺ قال: «لا يجتمع كافر و قاتله فى النار أبدا».[١]

ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي: رسول الله ﷺ وفرمايل: «كافر اود هغه وژونكى هيڅكله په اوركې سره نه يوځاى كېږي».

بل حديث كې د مجاهد فضيلت داسې راغلى دى:

عن أبي هريرة قال: قال رسول الله ﷺ: «من خير معاش الناس لهم رجل ممسك عنان فرسه فى سبيل الله يطير على متنه كلما سمع هيعة أو فزعة طار عليه يبتغى القتل والموت مظانه أو رجل فى غنيمة فى رأس شعفة من هذه الشعف أو بطن واد من هذه الأودية يقيم الصلاة و يؤتى الزكاة

---

١- رواه مسلم.

و يعبد ربه حتى يأتيه اليقين ليس من الناس إلا في خير )).[1]

**ابو هريره** رضي الله عنه **نه روايت دى هغه وايي : رسول الله** ﷺ **وفرمايل :** (( **خلكو لپاره له ښه ژوند نه دا دى چې يو سړي د خپل اس واګې د الله په لار كې د جهاد لپاره نيولې وي د هغه په شا الوځي؛ هر ځل چې كومه چيغه او د وېرې غږ واوري نو په خپل اس ورالوځي د وژلو او مړينې ځايونه لټوي. ياهغه سړى دى چې د غرونو له دې سرونو نه د يو غر په سر كې په خپله رمه كې يا لـه دې درونه د يوې درې په منځ كې اوسېږي كره پوره لمونځ كوي، زكات وركوي او تر هغه د خپل رب عبادت كوي چې مړينه ورته راشي او له خلكو نه په خير كې وي** )).

**دا دوهم هغه څوک دى چې د مسلمانانو خپلمنځي جګړو او فتنو وخت وي او د جهاد فرصت ورته برابرنه وي لكه چې همدا معنا يې په يو بل حديث كې راغلې ده.**

**د جهاد د سنګر فضيلت په بل حديث كې داسې راغلى دى :**

عن سهل بن سعد قال: قال رسول الله ﷺ : (( رباط يوم في سبيل الله خير من الدنيا و ما عليها )).[2]

**سهل بن سعد** رضي الله عنه **نه روايت دى هغه وايي : رسول الله** ﷺ **فرمايلي دي :** (( **د الله په لار كې يوه ورځ سنګر كې تېرول له دنيا او هغو ټولو شيانو غوره دي چې په دې دنيا كې دي** )).

---

١- رواه مسلم.

٢- رواه البخاري و مسلم.

**بـــل حـــديث كـــې د جهـــاد او ســـنګر فضـــيلت داســـې ځرګند يږي:**

عن سلمان الفارسي قال: سمعت رسول الله ﷺ يقول: « رباط يوم و ليلة فى سبيل الله خير من صيام شهر و قيامه و إن مات جرى عليه عمله الذى كان يعمله و أجرى عليه رزقه و أمن من الفتان ».[1]

**سلمان فارسي رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: ما رسول الله ﷺ نه اورېدلي دي چې فرمايل يې: « د الله د لارې د جهاد په سنګر کې يوه ورځ يا يوه شپه تېرول د يوې مياشتې له روژې او تهجدونه غوره دي او که ومري نو د هغه د هغه عمل ثواب به ورته جاري وي چې هغه کاوه روزي به ورکول کېږي او له عذابه به په امن وي ».**

**بل حديث کې داسې دي:**

عن عثمان عن رسول الله ﷺ قال : « رباط يوم فى سبيل الله خيرمن ألف يوم فيما سواه من المنازل ».[2]

**عثمان رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: « د الله په لار جهاد کې يوه ورځ تېرول د عبادت د نورو پړاوونو د زرو ورځو نه غوره دي ».**

**بل حديث کې په جنت کې د مجاهدينو لپاره ډېرې لويې**

---

۱- رواه مسلم.
۲- رواه الترمذي والنسائي.

**سل درجې داسې راغلې دي :**

عن أبى هريرة قال : قال رسول الله ﷺ : « إن فى الجنة مائة درجة أعدها الله للمجاهدين فى سبيل الله ما بين الدرجتين كما بين السماء والأرض ».[1]

**ابو هريرة رضي الله عنه نه روایت دی هغه وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي : « په جنت کې سل داسې درجې دي چې د الله په لار کې مجاهدينو لپاره الله تعالى تيارې کړې دي او د دوه درجو تر منځ دومره فاصله ده لکه د اسمان او د ځمکې ترمنځ چې ده ».**

**بل حديث کې د جهاد په سنګر کې د وخت تېرولو او جهاد ته تللو فضيلت داسې راځي :**

عن أنس بن مالك عن النبى ﷺ قال : « لغدوة فى سبيل الله أو روحة خير من الدنيا و ما فيها ».[2]

**د انس بن مالک رضي الله عنه نه روایت دی هغه له نبی کریم ﷺ نه روایت کوي چې هغه فرمايلي دي : «د الله په لار کې يو سهار يا يو مازيګر تلل له دنيا او هغو ټولو شيانو نه ښه دي چې په دې دنيا کې دي».**

**بل حديث کې د جهاد او جنت فضيلت داسې ځرګند شوی دی :**

---

١- رواه البخاري .
٢- رواه البخاري .

عن حميد قال: سمعت أنس بن مالك عن النبى ﷺ قال: ما من عبد يموت له عندالله خير يسره أن يرجع إلى الدنيا و أن له الدنياو ما فيهاالا الشهيد لما يرى من فضل الشهادة فانه يسره أن يرجع إلى الدنيا فيقتل مرة أخرى قال: و سمعت أنس بن مالك عن النبى ﷺ : «لروحة فى سبيل الله أو غدوة خير من الدنيا و ما فيها و لقاب قوس أحدكم من الجنة أو موضع قيده يعنى سوطه خير من الدنيا و ما فيها و لو أن امرأة من أهل الجنة إطلعت إلى أهل الأرض لأضاءت ما بينهما و لملا ته ريحا و لنصيفها على رأسها خير من الدنيا و ما فيها».[1]

د حميد رحمه الله نه روايت دى هغه وايي چې ما انس بن مالک رضي الله عنه نه اورېدلي دي هغه د پېغمبر ﷺ نه روايت کوي چې فرمايلي يې دي: «هيڅ يو بنده داسې نشته چې هغه ومري او الله سره هغه لپاره جنت وي او هغه په دې خوشحاله شي چې دنيا ته ستون شي او هغه لپاره دنيا او په دنيا کې چې څه دي هغه دې ټول هغه لپاره وي، پرته له شهيد څخه چې هغه د شهادت فضيلت ګوري نو دا خوښوي چې دنيا ته ستون شي او بيا د الله په لار کې جهاد کې ووژل شي». حميد وايي: او ما د انس بن مالک نه اورېدلي دي چې پېغمبر ﷺ فرمايلي دي: «د الله په لار

١- رواه البخاري.

جهاد کې یو ماز یګر یا یو سهار تېرول دنیا او هغو ټولـو نـه ښـه دي چې په دنیا کې دي. او ستاسو یـو کـس لپـاره پـه جنت کـې د یوې لیندۍ یا یوې مترو کې پـه اندازه ځـای دنیـا او هغـو ټولـو شیانو نه غوره دی چې په دنیا کې دي؛ او کـه د جنت د ښـځو نـه یوه ښځه د ځمکې اوسېدونکو تـه راښـکاره شي نـو د ځمکـې او اسمان تر منځ هر څه به روښانه کړي او خوشبویې نـه بـه یـې ډک کړي او د سرپوړنۍ یې له دنیـا او هغـو ټولـو شـیانو نـه غـوره دی چې په دې کې دي )).

بل حدیث کې راځي:

عـن أنـس أن أم الربيـع بـن البـراء و هـى أم حارثـة بـن سراقة أتت النبى ﷺ فقالت: يا نبى الله ألا تحدثنى عن حارثة – و كان قتل يوم بدر أصابه سهم غرب – فاِن كان فى الجنة صبرت و إن كان غير ذلك اجتهدت عليه فى البكاء. قال: ((يا أم حارثـة إنهـا جنـان فـى الجنـة و إن إبنـك أصـاب الفـردوس الأعلى )).[1]

انس رضي الله عنه نه روایت دی چې د براء لور او د ربیـع مـور چـې د حارثه بن سراقه مورده هغه پیغمبر ﷺ ته راغله او ویـې ویـل: ای د الله پیغمبره! ایا ماته د حارثه په هکله خبره نه کـوې؟ - هغـه د بدر په ورځ وژل شوی ؤ په نا معلوم غشي لګېدلی ؤ – که جنت کې وي نوصبر به وکړم او کـه داسـې نـه وي نـو پـه ژړا کـې بـه ښـه

---

۱- رواه البخاري.

خواري وکړم. هغه وفرمایل : ((ای د حارثه مورې! جنت کې ډېر باغونه دي او ستا زوی اوچت فردوس ته رسېدلی دی)).

نو څرګنده شوه چې د الله د لارې مجاهد ته چې په سنګر کې هره پېښه وشوه هغه شهید دی. تر ټولو ښه او بې شکه حلال رزق او روزي د جهاد في سبیل الله له لارې لاس ته راغلي غنیمتونه دي .

حدیث کې راځي :

عن ابن عمر عن النبی ﷺ قال: (( بعثت بین یدی الساعة مع السیف و جعل رزقی تحت ظل رمحی و جعل الذلة والصغار علی من خالف أمري و من تشبه بقوم فهومنهم )).[1]

عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روایت دی هغه نبي کریم ﷺ نه رویت کوي چې فرمایلي یې دي : ((زه د قیامت مخکې د تورې سره لېږل شوی یم، زما روزي زماد نېزې د سیوري لاندې ټاکل شوې ده او سپکاوی او خواري په هغه چا ټاکل شوي دي چې زما د امر مخالفت یې وکړ او چا چې د کومو خلکو سره ځان ورته کړ نو هغه له هغوی وګڼل شو)).

د الله سبحانه و تعالی په لار کې د جهاد لپاره چې چا خپله ملا وتړله او بیا ومړ نو تر قیامته ورته نېک عمل لیکل کېږي او الله تعالی یې د قبر له عذابه ژغوري .

---

۱- رواه البخاري معلقا و احمد متصلا .

**حدیث کې راغلي:**

عن فضالة بن عبيد عن رسول الله ﷺ قال: ((كل ميت يختم على عمله إلا الذى مات مرابطا فى سبيل الله فإنه يُنمى له عمله إلى يوم القيامة و يأمن فتنة القبر)).[1]

**فضاله بن عبید رضي الله عنه رسول الله ﷺ نه روایت کوي چې هغه فرمایلي دي: ((د هر مړه عمل باندې مهرلګول کېږي او نور نه زیاتېږي خو چا چې د الله په لار کې د جهاد لپاره ملاتړلې وي او ومړ نو د هغه نېک عمل تر قیامته پورې ورته زیاتېږي او د قبر له عذابه ژغورل کېږي)).**

عن أبى هريرة قال: قال رسول الله ﷺ: (( لا يجتمع على عبد غبار فى سبيل الله و دخان جهنم )).[2]

**ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی هغه وایي: رسول الله ﷺ فرمایلي دي: ((په یو بنده د الله په لار کې د جهاد ګردونه او د دوزخ لوګی نه یوځای کېږي)).**

**یعنې په کوم مجاهد چې د الله د لارې جهاد کې ګردونه او دوړې پرېوتې په هغه د دوزخ لوګی نه لګېږي معنا دا چې دوزخ ته نه ځي او الله تعالی یې د دوخ له اوره ژغوري.**

**د سنګرونو او ډګرونو مېړنی، ننګیالی، توریالی او اتل مجاهد عبدالله بن المبارک رحمه الله د حرمینو د عبادت کوونکي**

۱- رواه الترمذي و ابوداود والدارمي عن عقبة بن عامر.

۲- رواه الترمذي والنسائي.

نه هم مجاهد ډېر ښه ګڼي هغه عابد، زاهد فضيل بن عياض رحمه الله ته دا شعر ليږي:

يَا عَابِدَ الْحَرَمَيْنِ لَوْ أَبْصَرْتَنَا لَعَلِمْتَ أَنَّكَ فِي الْعِبَادَةِ تَلْعَبُ

مَنْ كَانَ يَخْضَبُ خَدُّهُ بِدُمُوْعِهِ فَنُحُوْرُنَا بِدِمَائِنَا تَتَخَضَّبُ

أَوْكَانَ يَتْعَبُ خَيْلُهُ فِيْ بَاطِلٍ فَخُيُوْلُنَا يَوْمَ الصَّبِيْحَةِ تَتْعَبُ

رِيْحُ الْعَبِيْرِ لَكُمْ وَ نَحْنُ عَبِيْرُنَا رَهْجُ السَّنَابِكِ وَ الْغُبَارُ الأَطْيَبُ

وَ لَقَدْ أَتَانَا مِنْ مَقَالِ نَبِيِّنَا قَوْلٌ صَحِيْحٌ صَادِقٌ لاَ يَكْذِبُ

لاَ يَسْتَوِيْ غُبَارُ خَيْلِ اللهِ فِيْ أَنْفِ امْرِئٍ وَ دُخَانُ نَارٍ تَلْهَبُ

هَذَا كِتَابُ اللهِ يَنْطِقُ بَيْنَنَا لَيْسَ الشَّهِيْدُ بِمَيِّتٍ لاَ يَكْذِبُ

«ای د مکې مکرمې او مدينې منورې په حرمينو کې عبادت کوونکيه! که چېرته تا مونږ (مجاهدين) ليدلي وای نو په دې به پوهېدلی وې چې ته په عبادت کې لوبې کوې. که څوک خپل اننګي په اوښکو لمدوي او رنګوي نو زمونږ سينې زمونږ په وينو رنګېږي او که څوک خپل اس په باطلو کې ستړی کوي نو زمونږ اسونه د بريد په ورځ ګهيځ (سهار) کې ستړي کېږي. د عنبرو خوشبويي دې ستاسو وي زمونږ خوشبو يي د اسونو د سومانو سپرغۍ او پاک ګردونه او د وړې دي. مونږ ته زمونږ د پيغمبر صحيح او ريښتيني وينا راغلې ده چې هغه دروغ نه وايي: هغه وايي: «د يو مجاهد سږي په پوزه کې د الله د لارې د جهاد د اسونو د پښو ګردونه او د دوزخ د اور د لمبو لوږی نه

یوځای کیږي. او دا قران د الله کتاب دی زمونږ منځ کې دا وایي چې شهید مړ نه دی، دا دروغ نه وایي )).

محمد بن ابراهیم بن ابی سکینه رحمه الله وایي : زه فضیل بن عیاض رحمه الله سره مسجد الحرام کې مخ شوم د عبد الله بن مبارک رحمه الله دا شعر مې ورکړ هغه چې کله ولوست نو له سترګو یې اوښکې وځښېدې او ویې ویل : ابو عبد الرحمن (عبد الله بن المبارک) ریښتیا ویلي دي. بیا یې راته وویل دا حدیث ولیکه او هغه ته یې ورکړه :

عن أبى هريرة أن رجلا قال : يا رسول الله علمنى عملا أنال به ثواب المجاهدين فى سبيل الله فقال : (( هل تستطيع أن تصلى فلا تفتر و تصوم فلا تفطر؟ )) فقال: يا رسول الله أنا أضعف من أن أستطيع ذلك ثم قال النبى ﷺ : (( فوالذى نفسي بيده لو طوقت ذلك ما بلغت فضل المجاهدين فى سبيل الله أما علمت أن فرس المجاهد فى سبيل الله ليستن فى طوله فيكتب له بذلك حسنات )).[1]

ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی چې یو سړي وویل : ای د الله پېغمبره! ما ته یو داسې عمل راوښیه چې د الله په لار کې د مجاهدینو ثواب پرې وګټم هغه وفرمایل : (( ایا کولی شې چې تل لمونځو نه کوې او نه یې پرېږدې او تل روژې نیسې او نه یې

---

۱- روى القصة ابن عساكر وغيره. والحديث رواه البخارى و مسلم والنسائى و ابن حبان والبيهقى و ابى ابي شيبة و ابو عوانة والترمذى و عبدالرزاق و ابو يعلى .

ماتوي؟ )) هغه وویل : ای د الله پیغمبره! زه خو ددې وس نه لرم چې دا کار وکړم. نبی کریم ﷺ ورته وویل : (( زما دې په هغه ذات قسم وي چې زما ځان د هغه په لاس کې دی، که ددې وس هم ولرې د الله په لار کې د مجاهدینو فضیلت ته نه شې رسېدی، ایا ته خبر نه یې چې د الله په لار کې د مجاهدینو اس خپل پړي کې څرېږي هم الله تعالی ورته په دې نیکی لیکي؟ )).

مجاهد لا څه چې د مجاهد خدمت کوونکی هم ډېر لوړ مقام او وقار لري د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما شاګرد مجاهد رحمه الله جهاد ته روان ؤ نو عبدالله بن عمر رضي الله عنهما سره له دې چې د هغه استاذ ؤ خو جهاد ته د تلونکي مجاهد احترام داسې کوي :

عن مجاهد قال : أردت الجهاد فأخذ ابن عمر بركابي فأبيت ذلك عليه فقال : أتكره لي الأجر؟ فقد بلغنا أن خادم المجاهدين فى أهل الدنيا بمنزلة جبريل فى أهل السماء.[1]

مجاهد رحمه الله نه روایت دی هغه وایي : ما جهاد ته د تللو اراده وکړه چې اس ته ور پورته کېدم عبدالله بن عمر رضي الله عنهما را ته د اس رکاب ونیو چې پښه پکې کېدم ما انکار وکړ، هغه راته وویل : (( ایا ما لپاره دې اجر خوښ نه دی؟ مونږ ته دا خبره رارسېدلې ده چې څوک د مجاهدینو خدمت کوي هغه د دنیا په

---

١- السیرالکبیر : ١ / ٢٢-٢٣ .

خلکو کې دومره فضیلت لري لکه د اسمان په اوسېدونکو کې چې د جبرائیل مقام دی)).

سبحان الله ! جهاد څومره لوړ مقام لري؟ او مجاهد دویاړونو اوارز ښتونو د غره په څو مره لوړه څوکه ولاړ دی؟!
ولې به نه وي چې له جهاده ناست خلک او دنیا پرست په پستو بسترو د ارام خوبونه کوي، خپلې ښځې، بچو، خپلوانو او دوستانو سره د ژوند نه خوند اخلي، ...... او د الله د لارې مجاهد خپل سر په لاس کې نیولی دی او په دې ځمکې د الله تعالی د رالېږلي شریعت او عدالت د پلي کولو او د نړیوالو د سعادت او امنیت لپاره د الله تعالی د رضا لپاره په تودو سنګرونو کې د وینو ، ټپونو ، تناکو، خولو، تیندکونو ، اورونو او لوږیو، بمونواو بارودو په منځ کې په بشپړې مېړانې، غیرت او جرات جنګېږي، څرنګه به په لوړ مقام نه وي ولاړ چې د شلېدلوغړو، شیندلو غوښو، زګېرویو او اوښکو منځ کې په وینو لتاړو سنګرونو کې د کبرجنو طاغوتانو د وحشي جنګي الوتکو د غړمبار او بمبار لاندې د ټینکونو او توپونو د ګولیود باران لاندې د الله تعالی په دښمنانو مېړنې، ننګیالي، پتیالي او توریالي بریدونه او ګوزارونه کوی، د اسلامي امت له دین، وطن، ناموس، پت، عزت، عفت او عصمت نه په بشپړ شهامت

دفاع کوي؟! د خپل امت شمله هسکوي، ویاړونه او ارزښتونه ساتي، د الله تعالی سپېڅلې کلمه لوړ وي، او کبرجن دښمن ته داسې ماتې ورکوي چې نسلونه او تاریخو یې یادوي. تاریخونه جوړوي، انقلابونه راپاڅوي، او د سمون د بدلون په لور د خپلو وینو په بدل په زغر ده زغرده توره په لاس د تکبیرونو او ولولو سره یون کوي.

هو! په سنګرونو کې هغه خوند او لذت دی چې په کورونو کې نشته. دسنګرونو ژوند د ناریتوب، پت او عزت ژوند دی. د سنګرونو ژوند د مېړنیو، ننګیالیو او غیرتمنو ژوند دی. دسنګرونو ژوند د جرات، عفت، شهامت او شجاعت ژوند دی. د سنګرونو ژوند د صداقت ورولۍ، ښندنې او حریت ژوند دی. د سنګرونو ژوند د ایمان،دیانت، پرهېزګارۍ او عبادت ژوند دی. د سنګرونو ژوند د وفاء، همت، عزیمت او سپېڅلتیا ژوند دی.

# د کورونو او سنګرونو توپیر

په کورونو کې غمونه اند یښنې دي — سنګرونو کې د ډاډ ښې ترانې دي
د کورونو ژوند سراب او اضطراب دی — سنګرونو کې ثواب او انتخاب دی
په کورونو کې حسرت او کدورت دی — سنګرونو کې ښادي او شرافت دی
په کورونو کې غیبت او معصیت دی — سنګرونو کې رحمت او مغفرت دی
په کوروکې بخل، حرص اوکسالت دی — سنګرونو کې نشاط او قناعت دی
په کورو کې اختلاف او جهالت دی — په سنګر کې اتفاق او بصیرت دی
په کورونوکې حرمان خواري ذلت دی — په سنګر کې برکت او سعادت دی
په کوروکې کېناستل شرم او عار دی — سنګرونو کې ژوندون ویاړا و وقار دی
په کورونو کې رواج او احتیاج دی — سنګرونه د معیار یو لوړ معراج دی
په کورونو کې صیاح د سپو نباح دی — سنګرونو کې صلاح، فلاح کفاح دی
په کورونو کې د هیلو تش دریغ دی — سنګرونه د بریا فتحې ګهیځ دی
د کورونو د خوښۍ انتظار پڅ دی — د سنګر دمې غښتلی ګوزار غوڅ دی
په کورونو کې فریاد شک اوعناددی — په سنګر کې انقیاد او اعتماد دی
په کوروکې احتمال د تور پېغور دی — سنګرونه د نثار ایثار انځور دی
په کورونو کې اقرار کله انکار دی — سنګرونو کې د مینې ابتکار دی
په کورو پاتې کېدل تذلیل تحقیر دی — سنګرونوکې درنښت دی اوتوقیر دی
د کورونو ژوند لتاړ ککړ وکړ دی — سنګرونو کې یو بل سره ملاتړ دی
په کورونو کې خوړل څښل لباس دی — په سنګرکې ولولې دي اواحساس دی
په کورونوکې تفریط دی یا افراط دی — سنګرونو کې ښندنې او رباط دی
په کورونوکې شقاق دی هم نفاق دی — سنګرونو کې الله سره میثاق دی
په کوروکې احتمال او اضمحلال دی — سنګرونو کې جمال او استقلال دی
په کورونو کې ګیدړ او یا غلام وي — سنګرونو کې اتل باز اوضرغام وي
په کورونو کې بې زړه او خړوسان وي — سنګرونو کې پتمن او اتلان وي

پـه کورو کې ډکـېدل او تـشـېدل دي　　سنګرونو کې دښمن راپـرځـول دي
پـه کـورونو کې لـړل تـپل رټـل دی　　سـنګرونو کې د پت عـزت ګـټل دي
پـه کوروکې جونې ښځې ماشومان وي　　سنګرونو کې تکړه تکړه ځـوانان وي
دوست لـه کـوره و سنګر ته راوتـلی　　ژوند او مرګ یې له اسلام سـره تړلی

# په سنګر کې د څوکۍ فضیلت

د الله سبحانه و تعالی په لار کې دجهاد په سنګر او مورچل کې د شپې پیره کول او د څوکۍ لپاره ویښ پاتې کېدل ډېر زیات فضیلت لري او مجاهدین باید کوښښ وکړي چې له دې فضیلت نه محروم او بې برخې پاتې نه شي.

حدیث کې راځي:

عن ابن عباس قال: قال رسول الله ﷺ : «عینان لا تمسهما النار : عین بکت من خشیة الله و عین باتت تحرس فی سبیل الله».[1]

عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روایت دی هغه وایي: رسول الله ﷺ فرمایلي دي: «دوه ډوله سترګې دي چې اور ورته نه رسېږي: یو ډول هغه سترګې دي چې د الله له وېرې یې ژړلي وي او بل هغه سترګې دې چې د شپې یې د الله په لارکې شوګیر او څوکۍ وکړه».

۱- رواه الترمذي.

# د وسلې ساتل

مجاهد بـه تـل خپلـه وسـله پـه غـاړه لـري مـلا بنـد بـه نـه خلاصوي او له ټوپک او نورو وسلو څخه به نه بې غـوره کيـږي تـر دې چې د لمانځه په وخت کې هم الله سبحانه و تعالی مجاهدينو ته حکم کوي او فرمايي :

«وَلۡيَأۡخُذُوٓاْ أَسۡلِحَتَهُمۡ».[1]

« وَلۡيَأۡخُذُواْ حِذۡرَهُمۡ وَأَسۡلِحَتَهُمۡ ».[2]

« خپله وسله دې واخلي ».

« ويښ او چمتو دې اوسي او خپله وسله دې واخلي ».

نو د وسلو نه غفلت او بې غوري ناروا ده.

الله تعالی فرمايي :

« وَدَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ لَوۡ تَغۡفُلُونَ عَنۡ أَسۡلِحَتِكُمۡ وَأَمۡتِعَتِكُمۡ فَيَمِيلُونَ عَلَيۡكُم مَّيۡلَةٗ وَٰحِدَةٗۚ وَلَا جُنَاحَ عَلَيۡكُمۡ إِن كَانَ بِكُمۡ أَذٗى مِّن مَّطَرٍ أَوۡ كُنتُم مَّرۡضَىٰٓ أَن تَضَعُوٓاْ

---

۱- سورة النساء : ۱۰۲.

۲- سورة النساء : ۱۰۲.

أَسۡلِحَتَكُمۡۖ وَخُذُواْ حِذۡرَكُمۡۗ إِنَّ ٱللَّهَ أَعَدَّ لِلۡكَٰفِرِينَ عَذَابٗا مُّهِينٗا ».[۱]

« **کافران دا خوښوي چې کاشکې تاسو د خپلو وسلو او خپلو سامانونو نه بې غوري وکړئ او هغوی درباندې يو ناځاپي برید وکړي. او که تاسو ته د باران له کبله کومه ستونزه وه یا ناروغان وئ نو څه باک درباندې نشته چې خپله وسله کېدئ خو ویښ او چمتو اوسئ الله بې شکه کافرانو لپاره سپکوونکی عذاب تیار کړی دی** ».

۱- سورة النساء : ۱۰۲.

# د امیر طاعت

په عامو حالاتو او په ځانکړې توګه په جهاد کې د امیر طاعت او د هغه د خبرې منل په مسلمانانو فرض دي.
الله سبحانه و تعالی فرمايي:

(( يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُواْ ٱلرَّسُولَ وَأُوْلِي ٱلْأَمْرِ مِنكُمْۖ فَإِن تَنَٰزَعْتُمْ فِي شَيْءٖ فَرُدُّوهُ إِلَى ٱللَّهِ وَٱلرَّسُولِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْأٓخِرِۚ ذَٰلِكَ خَيْرٞ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا )).[1]

(( ای مؤمنانو! د الله ومنئ، د پیغمبر ومنئ او د هغو امیرانو چې له تاسو دي؛ که په څه شي کې مو لانجه پیدا شوه نو که په الله او د قیامت په ورځ ایمان لرئ نو الله او پیغمبر ته یې ورستنه کړئ دا غوره ده او ښه نتیجه لري )).

نو په دې ایت کې الله سبحانه و تعالی مونږ ته حکم کوي چې د الله او د هغه د رسول اطاعت وکړو او د هغو امیرانو ومنو چې له مونږ څخه وي معنا دا چې مسلمانان وي په دې کې اوسني مرتد حاکمان او د وضعي قوانینو نافذوونکی طاغوتان داخل نه دي د دوی طاعت نه بلکه دوی سره جهاد په مونږ فرض

١- سورة النساء : ٥٩ .

دى خوكله چې يو اسلامي امت او يـو خليفـه وي د هغـه منـل ييـا فرض دي او تر هغې پورې د هغه مجاهد امير منل په مونږ فـرض دي چې د جهاد سنګر کې په مونږ تاكل شوى وي او د نېكيو امـر راته كوي، د بديو امر منل ناروا دي .

حديث كې رائحي :

عن ابن عمر عن النبىﷺ قال : « السمع والطاعة حق ما لم يؤمر بمعصية فإذا أمر بمعصية فلا سمع ولا طاعة ».[1]

عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دى هغه لـه پېغمبر ﷺ نـه روايت كوي چې هغه فرمايلي دي: « د امير خبـره اورېـدل او منـل تر هغه حق دى چې ترڅو په ګونا امر نه وي شوى كله چې په ګونـا امر وشي نو بيا نه اورېدل شته او نه منل ».

او بل حديث كې داسې رائحي :

عـن أبـى هريـرة أنـه سـمع رسـول الله ﷺ يقـول: « مـن أطاعني فقد أطاع الله و من عصانى فقد عصى الله و من يطع الأمير فقد أطاعني و من يعص الأمير فقد عصاني و إنما الإمام جنة يقاتل من ورائه و يتقى به فان أمر بتقوى الله و عدل فان له بذلك أجر و إن قال بغيره فإن عليه منه ».[2]

ابو هريـرة رضي الله عنه نـه روايـت دى چـې هغـه رسـول الله ﷺ نـه

---

۱- رواه البخاري و مسلم .
۲- رواه البخاري و مسلم .

اوربډلي دي چې فرمايل يې : «چا چې زما ومنل نو هغه بې شکه د الله ومنل او چا چې له ما سرغړونه وکړه نو هغه بې شکه لـه الله سرغړونه وکړه او چا چې د امير ومنل نو هغه بې شکه زما ومنـل او چا چې لـه اميـر څخـه سرغړونه وکـړه نـو هغـه بـې شکه لـه مـا سرغړونه وکړه او امام سپر دی چې د هغه تر شا جنګ کېـږي او پـه هغه ځانونه ژغورل کېږي که د الله په وېـرې او عـدل يـې امـر وکـړ نو هغه لپاره په دې اجر دی او که له دې پرته يې وويل نو پـه هغـه يې بې شکه ګونا ده» .

# اتحاد

ټول مسلمانا ن او بيـا پـه ځـانګړې توګـه د الله سبحانه و تعالی د لارې مجاهدين به تل دا کوښښ کـوي چې خپـل اتحـاد او يووالی کره پوره وساتي. اسلامي امت ټول يو مـوټی او ورونـه ورونه دي نه يې دا اوسني ناروا تنګ سياسي حدود بيلـولی شـي، نـه يـې قومي،نسـلي، د رنګ او ژبـې تـوپير او نـه بلـه انتمـاء او نسبت ،دټول اسلامي امت يوه لويه ستونزه او د اسلامي خلافت په لار کې لوی خنډ د امت ټوټه ټوټه کېدل او اخـتلاف دی چې د اسـلام دښـمنانو يـو اسـلامي امـت پـه (۵۷) اوه پنځـوس ټوټـو وېشلی دی او بيا نور قومي، سياسي، حزبـي، نسـلي او ډول ډول

تعصبونو او اختلافونو ته د اسلام دښمنان لمن وهي،او دا د بدمرغۍ اور لا نور هم تازه کوي او زیاتوي........

د روس په خلاف د جهاد یوه لویه نیمګړتیا هم اختلاف ؤ چې بیلې بیلې ډلګۍ او ګوندونه جوړ شول، هر چا خپل ګوند ته دعوت ورکاوه کارتونه یې وېشل او نورو ته یې په سپکه کتل، د هر ګوند مشر دا غوښتل چې زه دې فاتح وګڼل شم. دغه انحصار طلبۍ، درایې استبداد ، اعجاب المرء بنفسه (ځان غوښتنې) او ګوندي تعصبونو زموږ جهاد او قربانیو ته ډېر لوی تاوان ورړاوه.

اتحاد او یووالی لوی نعمت دی او په موږ فرض دی خو داسې اتحادونه نه لکه د مجاهدینو په نامه د ګوندونو نا مخلص اتحادونه چې څو ځل وشوو او هر ځل یې د بیرته رنګېدول په وخت کې نوی ګوند او نوی بچی وزېږاوه! په اسلام کې داګڼ دولتونه او ګڼ حکومتونه نه ځایږي نو ګڼ ګوندونه چې د اسلام په نامه له خلکو ووټونه غواړي او بیا طاغوتي نظامونو سره د وضعي قوانینو په نفاذ کې شریکېږي او د اسلام دغه دروغجن او یرغلګر دعوه داران د اسلام په نامه کفر ته خدمت کوي او د ارتداد مرتکب کېږي او بیا ځینې خو یې لا داسې هم دي چې زیړ دسمال یې هم له سره تړلی، داسلام په نامه د اتحاد مشري هم ورتر غاړې ده، د امریکا مرده بادنعرې هم وهي خو عمل کې د امریکا ګوډاګیانو سره کلک ولاړ دی، عمل یې امریکا زنده باد وایي، یوه سترګه مسلمانانو ته وهي او بله د اسلام دښمنانو ته، د طاغوتي نظام د رنګولو د مخنیوي لپاره

عمرې ته ځي او حرم شريف ته د ګند ه نيت سره ورننوځي! د اسلام اباد د لال مسجد او حفصې مدرسې بې وسه او بې دفاع طالباتې او طالبان د بزدلواو وحشي پوځيانو تر وحشي او خونړۍ محاصرې او بريد لاندې وو ملا نما اسلام دښمن مولانا صاحب لندن ته لاړ ، کمکي طالبان او طالباتې د هغه په خوښه د جومات او مدرسې په منځ کې د قران د نسخو سره په امريکايي وسلو وسېځل او ووژل شول. او بيا الحمدلله د همدې طاغوتې جمهوريت له لاسه داسې ماتې خوري چې ټول غاښونه يې ماتېږي...... دا د بلعام باعورسکني ورونه دي. مجاهدين بايد د اسلام د مخلصو، مجاهدو، پاکلمنو او پرهېزګارو علماؤ ومني او الحمدلله په اسلامي امت کې تر اوسه داسې مخلص علماء ډېر دي چې هيڅ طاغوت ته سر نه ټيټوي او بې ګرده او ډاګيز حق وايي. د بلعام باعور د انديوالانو تحريفونه او تاويلونه مه منئ بلکه جهاد ورسره وکړئ .

مجاهدين به ټل متحد ، متفق او ورونه ورونه وي . الله تعالی مونږ ته د اتحاد حکم کوي او فرمايي :

(( وَٱعۡتَصِمُواْ بِحَبۡلِ ٱللَّهِ جَمِيعٗا وَلَا تَفَرَّقُواْۚ )).[1]

(( ټول په يو ځای د الله په دين کلکې منګولې ولګوئ او مه بېلېږئ )).

---

١- سورة ال عمران :١٠٣ .

او فرمايي :

(( وَلَا تَنَٰزَعُواْ فَتَفۡشَلُواْ وَتَذۡهَبَ رِيحُكُمۡۖ )).[۱]

(( اختلاف او لانجې مه کوئ چې ناکام به شئ او قوت به مو له منځه لاړ شي )).

قتاده وايي : (( الريح الحرب )) (( باد او قوت نه مراد جنګ دی )) معنا دا چې جنګ کې به له ماتې سره مخ شئ .[۲]

# مشوره

مسلات او مشوره کول د خير او برکت لامل ګرځي مسلمانان اميران، مسئولين، مجاهدين او هر مسلمان بايد د خپلوهوښيارو، خواخوږو او تجربه کارو ورونو سره مشوره وکړي؛ مشوره ښې پايلې لري. ډېر ځله د يوې قضيې، پېښې او ستونزې د حل په هکله د يو چا يوارخ ته پام نه وي خو د مشورې په وخت کې د ګڼو رايواو اندونو نه داسې يوه رايه، اړخ او تصميم ځرګند شي چې د خيراو ښېګړې لامل شي .

الله تعالى خپل پېغمبر ته فرمايي چې صحابهؤ سره مشوره وکړه :

---

۱- سورة الانفال : ۴۶ .

۲- رواه البخاري .

﴿ وَشَاوِرۡهُمۡ فِي ٱلۡأَمۡرِۖ فَإِذَا عَزَمۡتَ فَتَوَكَّلۡ عَلَى ٱللَّهِۚ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلۡمُتَوَكِّلِينَ ﴾.[1]

**((او دوی سره د هر کار په هکله مشوره وکړه، کله دې چې هوډ وکړ نو په الله ځان وسپاره الله بې شکه توکل کوونکي خوښوي)).**

**او د مؤمنانو د کره ځانګړتیاو او ښو صفتونو په هکله فرمايي:**

﴿ وَٱلَّذِينَ ٱسۡتَجَابُواْ لِرَبِّهِمۡ وَأَقَامُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَأَمۡرُهُمۡ شُورَىٰ بَيۡنَهُمۡ وَمِمَّا رَزَقۡنَٰهُمۡ يُنفِقُونَ ﴾.[2]

**((او (مؤمنان) هغه خلک دي چې د خپل رب يې منلې دي، کره پوره لمونځونه يې کړي دي، کارونه يې په خپلو منځو کې په مشوره وي او د هغو مالونو نه لګوي چې مونږ ورکړي دي)).**

---

۱- سورة ال عمران : ۱۵۹ .

۲- سورة الشورى : ۳۸ .

# عدل او انصاف

عـدل او انصـاف كـول پـه هـر وخـت كـې الله تعـالى پـه مسلمانانو فرض كړي دي خو په مجاهدينو يې په ځانګړې توګـه د عدل په هكله زيات ټينګار كړى دى او ورتـه يـې فرمـا يلي دي چې دښمن سره بـه هم د عـدل نـه كـار اخلئ، جهـاد كـوم ګـډوډ، عشـوائي اودعصبت جنګ نـه دى چې نـه كـوم شـرطونه او اداب لري، او نه دښمن سره عدل كوي، بلكه الله تعالى دښمن سره هم دعدل كولو امر كوي. لكه چې فرمايي :

(( يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُونُوا قَوَّامِينَ لِلَّهِ شُهَدَاءَ بِالْقِسْطِ ۖ وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ عَلَىٰ أَلَّا تَعْدِلُوا ۚ اعْدِلُوا هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَىٰ ۖ وَاتَّقُوا اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ))[1]

(( اى مؤمنـانو! الله لپـاره د انصـاف پـه ګـواهۍ ټينـګ ودرېږئ او د يـو قـوم دښـمني دې ددې باعـث نـه شي چې تاسـو انصاف ونه كړئ، انصاف وكړئ دا پرهېزګارۍ تـه ډېـره نـږدې ده او الله نه ځانونه وژغورئ الله بې شـكه پـه هغـو كـړو ښـه خبـر دى چې تاسو يې كوئ )).

---

۱- سورة المائدة : ۸ .

**او فرمايي:**

(( وَقَٰتِلُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ ٱلَّذِينَ يُقَٰتِلُونَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوٓاْۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ ٱلْمُعْتَدِينَ )).[1]

**(( د الله په لار كې هغو سره وجنګېږئ چې تاسو سره جنګېږي او تېرى مه كوئ الله بې شكه تېرى كوونكي نه خوښوي )).**

---

۱- سورة البقرة: ۱۹۰.

# اعداد

د الله سبحانه و تعالى په لار کې د جهاد لپاره اعداد (تیاری) په هر مسلمان د خپل وس سره د لمانځۀ غوندې فرض دی ځکه چې جهاد کله فرض عین او کله فرض کفایي وي خو اوس فرض عین دی او معلومه نه ده چې مخې ته کوم ډول راځي نو مؤمن به تل د جهاد لپاره تیاري کې وي او هر وخت به دې ته چمتو وي چې کله وریاندې غبږ وشي نو بې له ځنډه به میدان ته وردانګي او هیڅ بهانه به نه کوي اوس جهاد فرض عین دی نو اعداد هم فرض عین دی او کله چې اسلامي خلافت قائم شي نو بیا د ځینو علماؤ په رایه اعداد فرض کفایي هم کېدی شي خو د نصوصونه داسې برېښي چې اعداد هر وخت فرض عین دی.

الله تعالى فرمايي:

«يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱصْبِرُواْ وَصَابِرُواْ وَرَابِطُواْ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ»[1]

«اى مؤمنانو صبروکړئ، خپلو منځو کې يو تر بله د صبر بلنه ورکړئ، د جهاد تیاری ونیسئ او الله نه ووېرېږئ ښایي چې بریالي شئ».

---

۱- سورة ال عمران: ۲۰۰.

**او فرمايي:**

(( وَأَعِدُّواْ لَهُم مَّا ٱسۡتَطَعۡتُم مِّن قُوَّةٖ وَمِن رِّبَاطِ ٱلۡخَيۡلِ تُرۡهِبُونَ بِهِۦ عَدُوَّ ٱللَّهِ وَعَدُوَّكُمۡ وَءَاخَرِينَ مِن دُونِهِمۡ لَا تَعۡلَمُونَهُمُ ٱللَّهُ يَعۡلَمُهُمۡۚ وَمَا تُنفِقُواْ مِن شَيۡءٖ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ يُوَفَّ إِلَيۡكُمۡ وَأَنتُمۡ لَا تُظۡلَمُونَ )).[1]

(( **او څومره چې کولی شئ دښمنانو ته د قوت او د اسونو د ساتلو تياری ونيسئ چې د الله دښمن او خپل دښمن او په دوی سربېره نور هغه خلک پرې ووېروئ چې تاسو يې نه پېژنئ او الله يې پېژني او د الله په لار کې چې کوم شی ولګوئ نو پوره به درکول شي او په تاسو به ظلم ونه شي** )).

**او حديث کې راځي:**

**رسول الله ﷺ د** (( مِّن قُوَّةٖ )) **په تفسير کې د منبر په سر داسې وفرمايل:**

(( ألا إن القوة الرمى ألا إن القوة الرمى ألا إن القوة الرمي )).[2]

(( **خبردار قوت (نښه) ويشتل دي، خبردار قوت (نښه) ويشتل دي خبر قوت (نښه) ويشتل دي** )).

---

١- سورة الانفال: ٦٠.

٢- رواه مسلم و ابوداود والترمذي و ابن ماجه والدارمي واحمد.

او د نښو ويشتلو د زده کړې پرېښودل او هېرول لويه ګونا ده.

حديث کې د ويشتلو د پرېښودلو په هکله داسې راځي:

عن عقبة بن عامر قال: قال رسول الله ﷺ: «من علم الرمی ثم ترکه فليس منا أو قد عصی».[1]

عقبه بن عامر رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «چاچې د نښو ويشتل زده کړل او بيا يې پرېښودل نو هغه له مونږ نه دی يا هغه ګونا وکړه».

همدارنګه د لامبو زده کول هم د جهاد تياري کې راځي لکه چې يو روايت کې راځي:

عمر رضي الله عنه ابو عبيده بن الجراح رضي الله عنه ته وليکل:

«علموا صبيانکم العوم ومقاتلتکم الرمی» فکانوا يختلفون إلى الأغراض.[2]

«خپلو ماشومانو ته لامبو زده کړئ او جنګيالو ته د نښو ويشتل» نوله همدې امله به هغوی د نښوويشتلو ته تلل راتلل.

او عامر رضي الله عنه به په بوډاتوب کې هم نښې ويشتې؛ او دا ځکه چې د رسول الله ﷺ نه يې اورېدلي وو چې د نښو د ويشتلو

---

۱- رواه مسلم و ابوداود والنسائی وابن ماجه والدارمي.

۲- رواه احمد.

پرېښودل ګونا ده .[۱]

بل روايت کې راځي :

عن مصعب بن سعد عن أبيه قال : قال رسول الله ﷺ : «عليكم بالرمى فإنه خير لعبكم».[۲]

مصعب بن سعد رحمه الله د خپل پلار سعد رضي الله عنه نه روايت کوي هغه وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «د ښښو ويشتل کوئ ځکه چې دا تاسو لپاره ښه لوبه ده».

بل حديث کې په غشو د ښښو د ويشتلو په هکله داسې راځي :

عن عقبة بن عامر قال: سمعت رسول الله ﷺ يقول : «ستفتح عليكم الروم ويكفيكم الله فلايعجز أحدكم أن يلهوبأسهمه».[۳]

عقبه بن عامر رضي الله عنه وايي : ما رسول الله ﷺ نه اورېدلي دي چې فرمايل يې : «په تاسو به روم فتحه شي او الله به تاسو نه د هغوی شر دفع کړي نو ستاسو هيڅوک دې له دې عاجز نه شي چې په خپلو غشو لوبې وکړي» يعني ښښې پرې وولي .

بل حديث کې راځي :

عن عقبة بن عامر قال: سمعت رسول الله ﷺ يقول :

---

۱- رواه مسلم .

۲- رواه البزار والطبرانی فی الاوسط والکبیر .

۳- رواه مسلم .

« إن الله تعالى يدخل بالسهم الواحد ثلاثة نفرالجنة: صانعه يحتسب فى صنعته الخير والرامي به و منبله وارموا واركبوا وأن ترموا أحب إلى من أن تركبوا كل شئ يلهو به الرجل باطل إلا رميه بقوسه و تاديبه فرسه و ملاعبته إمرأته فإنهن من الحق ».[1]

**عقبه بن عامر رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي : ما رسول الله ﷺ نه اورېدلي دي چې فرمايل يې: « الله تعالى په يو غشي درې كسه جنت ته ننباسي :**

**۱- د غشي هغه جوړوونكى چې په جوړولو كې يې د جهاد هيله لري .**

**۲- د غشي ويشتونكى .**

**۳- ويشتونكي ته د ويشتلو په وخت كې د غشو وركوونكى. نښې ولئ او سپرلي زده كړئ او چې نښه وولئ نو دا د سپرلۍ كولو نه زما ډېر خوښېږي. هر هغه شى چې انسان پرې لوبې كوي ټول عبث (بې ثوابه) دي خو درې لوبې حق او ثواب دى: په خپلې لينده نښه ويشتل، خپل اس تربيه كول او خپلې ښځې سره لوبې كول ».**

**پخوا وختونو كې د توري وهل او د غشوويشتل ښه تيارى ؤ. خو د هر وخت او عصر د غوښتنو سره سم تيارى په مسلمانانو فرض دى په اوسني عصر كې د عصري وسلو د**

---

۱- رواه الترمذي و ابوداود و ابن ماجه والدارمي .

جوړولو او استعمال تیاری باید وشي لکه د ټوپکو، توپونو، بمونو، ټینکونو، راکټو، میزائلو، الوتکو او نورو عصري وسلوجوړول او د استعمال چل زده کول په اعداد کې داخل دي که د جوړولو وس نه وي نو د استعمال ل خو باید زده کړو او که د ټولو نه وي د ځینو خو باید زده کړو، که هیڅ هم نه وي په ټوپک نښه ویشتل،د بارودو جوړول او استعمال، بدني ورزشونه ...... خو کولی شوو، هر څه مو چې په وس کې وي هغه باید وکړو او د خپل وس سره سم اعداد او تیاری په اسلامي امت فرض دی.

د منافقانو یو ناوړه صفت دا دی چې جهاد لپاره اعداد او تیاری نه کوي الله تعالی د هغوی دغه کار داسې غندي:

« وَلَوْ أَرَادُوا۟ ٱلْخُرُوجَ لَأَعَدُّوا۟ لَهُۥ عُدَّةً وَلَـٰكِن كَرِهَ ٱللَّهُ ٱنۢبِعَاثَهُمْ فَثَبَّطَهُمْ وَقِيلَ ٱقْعُدُوا۟ مَعَ ٱلْقَـٰعِدِينَ ».[1]

« که دوی د وتلو اراده کړې وای نو تیاری به یې ورته نیولی ؤ خو الله ددوی وتل بد ګڼل نو سست یې کړل او ورته وویل شول چې ناستو خلکو سره کېنئ ».

نو څرګنده شوه چې د جهاد فی سبیل الله لپاره هر ډول مالي، بدني، د توښې، وسلې او وسائلو تیاری نیول اړین دي او تیاری نه نیول د منافقانو ناوړه صفت او ځانګړتیا ده.

---

۱- سورة التوبة :۴۶.

اعداد او تياري کې هر ډول تياری داخل دی د وسلو جوړول او مالي بدني هر ډول د وس سره سم فرض دی او غفلت او بې غوري پکې لويه ګونا ده .

رسول الله ﷺ به صحابه کرامو ته د نښې ويشتلو زيات ترغيب ورکاوۀ او کله کله به يې خپله هم ورسره په نښې ويشتلو کې ګډون کاوۀ .

حديث کې راځي :

عن سلمة بن الأکوع قال : مرالنبی ﷺ على نفر من أسلم ينتضلون فقال النبیﷺ: « إرموا بنی إسماعيل فإن أباكم كان راميا و أنا مع بنی فلان » قال : فامسك أحد الفريقين بايديهم. فقال رسول الله ﷺ : « مالكم لا ترمون؟ » قالوا: كيف نرمي و أنت معهم؟! فقال النبی ﷺ : « إرموا و أنا معكم كلكم ».[1]

د اکوع د ځوی سلمه رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: نبی کريم ﷺ داسلم قبيلې په څه کسانو تېرېده چې غشي يې ويشتل نو نبی کريم ﷺ ورته وفرمايل : «د اسماعيل بچو ولئ ستاسو پلار هم ويشتونکی ؤ او زه د فلانی قبيلې والاؤ سره يم » هغه وايي چې د دواړو ډلو نه يوې ويشتل بند کړل. نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: «ولې نه ولئ؟ » هغوی وويل: مونږ څرنګه

---

۱- رواه البخاري .

وولوو او تهٔ هغوی سره يې؟!. نبی کريم ﷺ وفرمايل : (( ولې زه تاسو ټولو سره يم )).

# د اسونو ساتل او پالل

جهاد لپاره د هر ډول بدني مالي، وسلو او وسائلو تياری فرض دی ، مونږ په خپلو مالونو او ځانونو په جهاد کولو مامورېوو، دا نه ده چې ګنې يو به کوو او بل به نه کوو بلکه د ځانونو او مالونو دواړو جهاد به کوو . د جهاد د اعداد او تياري نه د اسونو ساتل هم دي . اسونه ښه ساتل، هغه ځغلول، پالل او ترييه کول ، دا ټول د ثواب کارونه دي اسونه هر وخت او هر ځای کې په کار راځي په اسونو سپرلي هم يو کمال دی چې بايد مجاهدين يې زده کړي، د اس ډېره خوږه سپرلي ده او اس يو ډېر هوښيار حيوان دی. اسونه ډېر ډولونه لري او هر څومره چې يرغه او کره اس وي همغومره يې ثواب هم زيات دی.
حديث کې راځي :

عن عروة البارقي أن النبیﷺ قال: (( الخيل معقود في نواصيها الخير إلی يوم القيامة الأجر و المغنم )).[1]

د عروه بارقيرضي الله عنه نه روايت دی چې پيغمبر ﷺ فرمايلي

---

۱- رواه البخاري.

دي : ((د اسونو په وچولیو (د تندي ویښتانو) کې د قیامت تر ورځې خیر غوټه دی چې هغه اجر او غنیمت دی)) .
یعنې ساتل او تربیه کول یې هم اجر دی، جهاد پرې کول هم اجر دی او په اجر سربېره غنیمتونه هم د مجاهد لاس ته ورځي .
بل حدیث کې فی سبیل الله جهاد لپاره د اسونو د ساتلو فضیلت داسې راغلی دی :

عن أبی هريرة يقول قال النبیﷺ: (( من إحتبس فرسا فی سبيل الله إيمانا بالله و تصديقا بوعده فان شبعه وريه وروثه وبوله في ميزانه يوم القيامة )).[1]

ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی هغه وایي چې پېغمبر ﷺ فرمایلي دي : (( چا چې په الله باندې په باور لرلو او د هغه جل جلاله وعده رېښتیا ګڼلو باندې د الله په لار کې اس وساته نو د هغه اس مړښت، اوبهٔ څښل، د هغه خر ښنه او میتیازې د قیامت په ورځ د هغه مجاهد د نېکیو په تله کې حسابېږي )) .
بل حدیث کې راځي :

عن أبی هريرة أن رسول الله ﷺ قال : (( الخيل لرجل أجر ولرجل ستر و على رجل وزر فأما الذي له أجر فرجل ربطها فی سبيل الله فأطال لها فی مرج أو روضة فما أصابت في طيلها ذلك من المرج أو الروضة كانت له حسنات و لو أنها إنقطع طيلها فاستنت شرفا أو شرفين كانت أثارها و أرواثها

---

۱- رواه البخاري .

حسنات له و لو أنها مرت بنهر فشربت منه و لم يرد أن يسقى كان ذلك حسنات له. فهى لذلك أجر و رجل ربطها تغنيا و تعففا ثم لم ينس حق الله فى رقابها و لا ظهورها فهى لذلك ستر و رجل ربطها فخرا و رياء و نواء لأهل الإسلام فهى على ذلك وزر ».[1]

**ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل:**
**«اسونه د يو سړي لپاره اجر دی بل لپاره پرده ده او په بل ګونا ده. هغه څوک چې هغه لپاره اجر دی هغه سړی دی چې د الله په لار کې جهاد لپاره يې ساتلی او تړلی وي نو په ورشو او څرځای کې يې ورته پړی ښکېل کړي نو په دې پړي کې چې د څرځای هر ځای ته رسيږي هغه ورته په نېکيو کې حسابيږي او که د اس پړی وشکيږي او هغه يوه يا دوه لوړې يا ميله وځغلي نو د اس قدمونه، او خرېشنه په ثوابونو کې ګڼل کيږي او کۀ اس په کومه وياله تېر شي او هغې نه اوبه وڅښي اګر که خاوند يې د اوبو ورکولو اراده هم نه وي هغه ورته په ثوابونو کې حسابيږي نو دا اس خپل خاوند لپاره اجر دی. او يو سړي ددې لپاره ساتلی وي چې چاته اړ نه شم او د سوال نه د ځان ژغورلو لپاره او بيا يې د هغه په غاړه او په شا (سپرلی) کې د الله حق هم نه وي هېر کړی نو دا هغه لپاره پرده شوه. او بل هغه سړی دی چې د وياړ، ريا او مسلمانانو سره دښمنۍ لپاره يې ساتلی وي نو دا په هغه**

---

۱- رواه البخاري.

ګوناده».

**د اسونو د څټ، تندي او لکۍ وېښتان پرې کول او خرپیل منع دي حدیث کې راځي:**

عن عتبة بن عبدالسلمی أنه سمع رسول الله ﷺ يقول: «لا تقصوا نواصی الخيل ولا معارفها ولا أذنابها، أذنابها مذابها و معارفها دفائها و نواصيها معقود فيها الخير». [۱]

**عتبه بن عبدالسلمی رضی الله عنه نه روایت دی چې هغه رسول الله ﷺ نه اورېدلي دي چې فرمایل یې: «تاسو مه د اسونو د تندیو وېښتان لنډوئ مه د څټونو او مه د لکیو، ځکه چې لکۍ یې (د حشراتو) شړونکې دي، د څټونو وېښتان یې د تودوخې لپاره دي او د تندیو وېښتانو کې یې خیر غوټه دی».**

**د اسونو دا اوږده وېښتان یو ډول ښکلا هم ده او په لکۍ له ځان مچان، غوباړي او نور حشرات شړي نو ځکه یې غوڅول منع دي.**

**د جهاد لپاره د اسونو، کچرو، اوښانو او خرو ساتل ډېر زیات اهمیت لري، اوښان او خره د سپرلۍ او بارونو د وړلو لپاره او اسونه د سپرلۍ او برید په وخت کې په کار راځي او کچر د بار، سپرلۍ او برید درې واړو لپاره په کارېږي.**

**د نبي کریم ﷺ په وخت کې به خلکو خپلو څارویو ته نومونه هم اېښودل د نبی کریم ﷺ یو اس ؤ چې «مندوب» نومېده. بل اس یې «لُحیف» نومېده. یو ځل رسو الله ﷺ په یو**

---

۱- رواه ابو داود.

اس سپور ؤ چې «عُفَير» نومېده او معاذ ﵁ هم ورپسې سپور ؤ. د ابو قتاده ﵁ يو اس ؤ چې «جَرَادَه» يې باله.[1] د رسول الله ﷺ د اسونو او نورو څارويو نومونه د سيرت ځينو مؤلفينو ياد کړي دي لکه: داسونو نومونه يې «سكب»، «سيحه»، «المُرْتَجِز»، «لزَازْ»، «ظَرَب» او «اَلْوَرْد» وو.

د رسول الله ﷺ د کچرې نومونه: «شهباء»، «دلدل» او «فضه» وو. درسول الله ﷺ د اوښې نومونه: «قصْوَاءُ»، «جَدْعاء» او «عَضْباء» وو. او نورې اوښې يې وې چې: «مهره»، «شقراء»، «دباء»، «عزيزه»، «برده»، «سمرا»، «عريس»، «يسيره» او «حناء» نومېدې.[2]

۱- رواه البخاري.
۲- الطبقات الكبرى لابن سعد: ۴۸۹/۱-۴۹۰.

# جهاد لپاره د اسونو مسابقه

د جهاد د تیارۍ لپاره باید اسونه تیار شي، وځغلول شي، مزي شي او منډې ته چمتو شي؛ اسونو ته لومړی ښه خوراک ورکول کېږي کله چې چاغ شي بیا لږه لږه منډه ورکول کېږي او هره ورځ ورو، ورو زیاتېږي تر څو زیاتي غوښه اوبه شي مزی، چست او چالاک شي همدارنګه غوږ سره دزو باندې روږدي کول او نور ډېر امور دي.

حدیث کې راځي:

عن أبي إسحاق عن موسى بن عقبة عن نافع عن ابن عمر قال: سابق رسول الله ﷺ بين الخيل التى قد أضمرت فارسلها من الحفياء و كان أمدها ثنية الوداع فقلت لموسى وكم بين ذلك ؟ قال: ستة أميال أو سبعة و سابق بين الخيل التى لم تضمر فارسلها من ثنية الوداع وكان أمدها مسجد بنى زريق قلت: فكم بين ذلك؟ قال: ميل أونحوه و كان ابن عمر ممن سابق فيها.[1]

ابو اسحق د عقبه د ځوی موسی نه روایت کوي هغه له نافع نه روایت کوي هغه عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روایت کوي هغه

---

۱- رواه البخاري.

وايي: رسول الله ﷺ د ځغلول شويو اسونو ترمنځ مسابقه وکړه نو د حفياء (ځای) نه يې خوشې کړل او اخري موخه يې د مخه ښې غونډۍ وه. ما موسی ته وويل چې ددې دواړو ځايونو ترمنځ څومره فاصله ده؟ هغه وويل : اوه يا شپږ ميله. او د ناځغلول شويو اسونو تر منځ يې مسابقه وکړه نو د مخه ښې د غونډۍ نه يې خوشې کړل او اخری موخه يې د بني زريق جومات ؤ. ما ورته وويل: ددې دواړو ځايونو ترمنځ څومره فاصله ده؟ هغه وويل: يو ميل يا دې غوندې. او عبدالله بن عمر رضي الله عنهما هم له هغو کسانو څخه ؤ چې مسابقه يې کړې وه.

# په غنيمت کې د اس ونډه

د اس ساتلو او په اس باندې د جهاد کولو دومره زيات فضيلت دی چې په غنيمت کې د مجاهد يوه برخه او د اس يې دوه برخې دي او دا ځکه چې له يوۀ پلوه د اس ساتل او پالنه ډېرو مصارفو ته اړتيا لري او د هغې خرڅ او خوراک باندې زيات مصرف راځي، بله دا ده چې په اس دښمن ته زيات زيان رسېږي اوله پلي (پياده) څخه په اس سپور دښمن ته زيات تاوان وراړوي، نو دا ټول دا ايجابوي چې د اس برخه دې زياته وي.

حديث کې راځي :

عن ابن عمر أن رسول الله ﷺ جعل للفرس سهمين

ولصاحبه سهما.[۱]

عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روایت دی چې رسول الله ﷺ اس لپاره دوه برخې ټاکلي او د څښتن لپاره یې یوه برخه.

اوس موټرې دي که د مجاهد موټر په جهاد کې وکارول شي بیا یې موټر ته د اس برخه ده او که اس یا موټر د بیت المال وي نو بیا د موټر یا اس برخه د بیت المال ده.

# جهاد لپاره استخبارات

د مسلمانانو امام او خلیفه ته دا روا نه دي چې د خپل رعیت عورتونه او پټ عیبونه لټوي جاسوسان ورپسې کوي او څوروي یې، په دې رعیت لافاسد یږي، بغاوت کوي، د حکومت او رعیت تر منځ بې باوري، فاصلې او کرکې پیداکیږي او ستونزې زیږوي. خو د جهاد فی سبیل الله لپاره زري لیږلی شي چې د دښمن قوت، پلمې او ارادې معلومې کړي او ضروري معلومات لاس ته راوړي او دا ډیر ضروري او مهم کار دی او ددې لپاره کیږي چې مناسبه سرشته او تدبیر ورته ونیول شي، د هغوی پلمې شنډې شي او د وړاندې تګ او برید لپاره لازم تدابیر ونیول شي.

---

۱- رواه البخاري و مسلم.

**حديث کې راځي:**

**عن جابر قال: قال النبی ﷺ: « من يأتيني بخبرالقوم؟ » يوم الأحزاب. فقال الزبير: أنا. ثم قال: « من يأتيني بخبرالقوم؟» فقال الزبير: أنا فقال النبی ﷺ:« إن لكل نبی حواريا وحواري الزبير » .**[1]

**جابر رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: د احزاب په ورځ پيغمبر ﷺ وفرمايل: « د دښمنانو خبر به را ته څوک راوړي؟ » زبير وويل: زه. بيا يې وفرمايل: « د دښمنانو خبر به را ته څوک راوړي؟ » زبير وويل: زه. پيغمبر ﷺ وفرمايل: « هر پيغمبر لپاره مرستيالان ملګري وي او زما مرستيال ملګری زبير دی » .**

**له دې حديث څخه دا څرګند ه شوه چې د دښمن د حالاتو معلومولو لپاره د زري ليږل ضروري دي.**

---

[1]- رواه البخاري.

# جهاد نه کول د عذاب لامل او لو یه ګونا ده

که مونږ د الله سبحانه و تعالی په لار کې ونه جنګیږو نو هم به سپک او خوار شوو، هم د نفاق په یوه شعبه مړۀ او هم به د الله تعالی د عذاب مستحق شوو. الله تعالی فرمايي:

«قُلْ إِن كَانَ ءَابَآؤُكُمْ وَأَبْنَآؤُكُمْ وَإِخْوَٰنُكُمْ وَأَزْوَٰجُكُمْ وَعَشِيرَتُكُمْ وَأَمْوَٰلٌ ٱقْتَرَفْتُمُوهَا وَتِجَٰرَةٌ تَخْشَوْنَ كَسَادَهَا وَمَسَٰكِنُ تَرْضَوْنَهَآ أَحَبَّ إِلَيْكُم مِّنَ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَجِهَادٍ فِى سَبِيلِهِۦ فَتَرَبَّصُوا۟ حَتَّىٰ يَأْتِىَ ٱللَّهُ بِأَمْرِهِۦ ۗ وَٱللَّهُ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلْفَٰسِقِينَ».[1]

«ورته ووایه: که ستاسو پلرونه، ستاسو ځامن، ستاسو ورونه، ستاسو ښځې، ستاسو کورنۍ، هغه مالونه چې ګټلي مو وي، هغه تجارت چې له تاواني کېدو يې وېرېږئ او هغه کورونه چې خوښوئ يې له الله، د هغه له پیغمبر او د هغه په لار کې له جهاد کولو نه تاسو باندې ډېر ګران وي نو تر هغې انتظار وکړئ

١- سورة التوبة: ٢٤.

**چې الله خپل عذاب راوړي او الله بدکارانو خلکو ته سمه لار نه ښيئ)).**

**او بل حديث کې جهاد نه کول نفاق ګڼل شوی دی:**

**عن أبي هريرة قال: قال رسول الله ﷺ : (( من مات و لم يغزو و لم يحدث به نفسه مات على شعبة من نفاق )).[1]**

**ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: رسول الله ﷺ وفرمايل: (( څوک چې مړ شو او جهاد يې ونه کړ او نه يې په زړه کې د جهاد اراده او عزم لاره نو هغه د نفاق په يو ډول مړ شو )).**

**او فرمايي:**

(( يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مَا لَكُمۡ إِذَا قِيلَ لَكُمُ ٱنفِرُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ ٱثَّاقَلۡتُمۡ إِلَى ٱلۡأَرۡضِۚ أَرَضِيتُم بِٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا مِنَ ٱلۡأٓخِرَةِۚ فَمَا مَتَٰعُ ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا فِي ٱلۡأٓخِرَةِ إِلَّا قَلِيلٌ إِلَّا تَنفِرُواْ يُعَذِّبۡكُمۡ عَذَابًا أَلِيمًا وَيَسۡتَبۡدِلۡ قَوۡمًا غَيۡرَكُمۡ وَلَا تَضُرُّوهُ شَيۡـًٔاۗ وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٖ قَدِيرٌ )).[2]

**(( ای مؤمنانو! په تاسو څه شوي دي چې کله درته وويل شي چې د الله په لار کې (جهاد ته) واوځئ نو ځمکې ته درانه**

---

۱- رواه مسلم.

۲- سورة التوبة: ۳۸-۳۹.

شئ؟! ایا د اخرت په مقابل کې نړدې ژوند باندې راضي یئ؟! نو د نړدې ژوند سامان خو د اخرت په مقابل کې ډېر لږ دی. کهٔ ونه اوځي نو دردوونکی عذاب به درکړي او له تاسو پرته نور خلک به رامخې ته کړي چې تاسو به هیڅ زیان نه شئ ور رسولی او الله په هر شي ښه برلاسی دی».

جهاد نه کول یوائې د اخروي عذاب نه بلکه د دنیوي عذاب، کړاوونو او ستونزو لامل هم ګرځي.

حدیث کې راځي:

عن أبی أمامة عن النبیﷺ قال: «من لم یغزو و لم یجهز غازیا أو یخلف غازیا فی أهله بخیر أصابه الله بقارعة قبل یوم القیامة».[1]

ابو امامه رضي الله عنه پیغمبرﷺ نه روایت کوي چې هغه فرمایلي دي: «چا چې جهاد ونه کړ او غازي یې تیار نه کړ یا یې د غازي په کور کې د خیر پاملرنه ونه کړه نو د قیامت له ورځې مخکې به یې الله په ټکوونکي عذاب اخته کړي».

بل حدیث کې راځي:

عن أبي هریرة قال: قال رسول اللهﷺ: «من لقی الله بغیر أثر من جهاد لقی الله و فیه ثلمة».[2]

ابوهریرة رضي الله عنه نه روایت دی هغه وایي: رسول اللهﷺ

---

۱- رواه ابوداود.

۲- رواه الترمذي و ابن ماجه.

فرمايلي دي : ((څوک چې الله سره مخ شو او د جهاد نښه ورسره نه وه نو الله سره به داسې مخ شي چې عيب او نقصان به پکې وي)).

نښه يوائې زخم نه دی بلکه، ټپونه، ګردونه، کړاوونه، سنګر ته تلل، بريدونه، او جهاد فی سبيل الله کې په اخلاص او صداقت ګډون ټولې نښې او ګواهۍ دي .

# کافرانو ته هر ډول تاوان رسول جهاد دی

د اسلام دښمنانو او کافرانو ته هر ډول تاوان، زيان او کړاو رسول او هغوی ته ستونزې پيداکول په جهاد کې داخل دي، هغوی ته هر بدني او مالي تاوان وررسول او د هغوی ګټې له منځه وړل جهاد دی. الله تعالی فرمايي :

(( ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ لَا يُصِيبُهُمْ ظَمَأٌ وَلَا نَصَبٌ وَلَا مَخْمَصَةٌ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ وَلَا يَطَـُٔونَ مَوْطِئًا يَغِيظُ ٱلْكُفَّارَ وَلَا يَنَالُونَ مِنْ عَدُوٍّ نَّيْلًا إِلَّا كُتِبَ لَهُم بِهِۦ عَمَلٌ صَٰلِحٌ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ ٱلْمُحْسِنِينَ وَلَا

يُنفِقُونَ نَفَقَةً صَغِيرَةً وَلَا كَبِيرَةً وَلَا يَقْطَعُونَ وَادِيًا إِلَّا كُتِبَ لَهُمْ لِيَجْزِيَهُمُ ٱللَّهُ أَحْسَنَ مَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ».[1]

« **دا له دې کبله چې دې مجاهدينو ته چې د الله په لار کې هره تنده او لوږه رسيږي يا داسې ځاى باندې ورځي چې کافران په غوسه کړي يا دښمنانو ته کوم تاوان ورکوي نو هغوى ته پرې نېک عمل وليکل شي، الله بې شکه د نېکانو اجر نه برباد وي، او مجاهدين چې هر وړوکى او لوى لګښت کوي او کومې درې باندې تېرېږي نو هغوى ته ددې لپاره ليکل کېږي چې الله هغوى ته د هغوى د هغو نېکو عملونو ښه بدله ورکړي چې هغوى کول** ».

**په دې کې د کافرانو وژل، اختطاف، بندي کول او هر ډول زيان او تاوان ور اړول داخل دي يوائې هغه ترې جلا دي چې نصوصو کې راغلي دي او مونږ په دې کتاب کې ليکلي دي.**

---

۱- سورة التوبة : ۱۲۰-۱۲۱.

# د مجاهدينو انتخاب او چاڼ

امير به مجاهدين ترڅارنې او کتنې لاندې نيسي او عملياتو ته د لېږلو په وخت کې به مناسب کسان جنګ ته لېږي؛ دا لاندې کسان به عملياتو ته نه لېږي:

١. **مشرک**: مشرک هغه چاته وايي چې الله تعالی سره يې په ذات، صفاتو او عبادت کې څوک شريک ګڼلي وي[١]. مشرک به ځان سره جهاد کې نه پرېښودل کېږي ځکه چې جهاد د شرک له منځه وړلو لپاره کېږي نو د مشرک ملګرتيا کې له يوه پلوه د جهاد هدف له منځه ځي او له بله پلوه د مشرک په ملګرتيا د الله تعالی نصرت او مرسته نه راځي. حديث کې راځي چې يو مشرک رسول الله ﷺ ته راغی او ورته يې ويل: زه ستاسو په ملګرتيا کې جنګېږم. رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

«إنا لا نستعين بمشرك»[٢].

«موږ د مشرک په ملاتړ مرسته نه غواړو».

نو جهاد فی سبيل الله کې له کافرانو، مشرکانو او مرتدانو نه مرسته غوښتل او هغوی په جنګ کې راشريکول ناروا او د جهاد له موخې سره جفا کول دي.

---

١- د زيات تفصيل لپاره زمونږ کتاب: «توحيد رڼا» وګورئ.

٢- رواه ابوداود و احمد وابن ماجة والدارمي.

# لږ تر لږه د مجاهد عمر

۲. له پنځلس کلونو څخه د کم عمر والا وړکو ته به جهاد ته د تللو اجازه نه ورکول کېږي، جهاد ته تللو لپاره لږ تر لږه عمر پنځلس کاله دی. حدیث کې راځي:

عن ابن عمر قال: عرضت على رسول الله ﷺ عام أحد و أنا ابن أربع عشرة سنة فردني ثم عرضت عليه عام الخندق و أنا إبن خمس عشرة سنة فأجازني. فقال عمر بن عبدالعزيز : هذا فرق ما بين المقاتلة والذرية.[1]

عبدا لله بن عمر رضي الله عنهما نه روایت دی هغه وایي: زه د څوارلس کلونو وم چې د احد په ورځ رسول الله ﷺ ته وروړاندې شوم نو هغه جهاد لپاره قبول نه کړم بیا د خندق په کال وروړاندې شوم او د پنځلس کلونو وم نو اجازه یې راکړه. عمر بن عبدالعزیز وویل: د جنګیالیو او ماشومانو ترمنځ همدا توپیر دی.

مطلب دا چې د رسول الله ﷺ دا کار مونږ لپاره یو دلیل شو چې تر څوارلس کلونو پورې ماشومان دي او هغوی د جهاد سنګرونو ته باید پرې نه ښودل شي او د پنځلس کلونو او له دې پورته بیا جنګیالي دی او سنګر کې ګډون کولی شي.

---

۱- رواه البخاري و مسلم.

رافع بن خديج او سمره بن جندب رضي الله عنهما رسول الله ﷺ ته راوړاندې شول چې د جهاد لپاره تللو ته اجازه ورکړي دا دواړه کشران هلکان وو ، رسول الله ﷺ ته چا وويل چې رافع په نښې ويشتو کې تکړه دی نو هغه ته يې اجازه ورکړه او سَمُرَه ته يې اجازه ورنه کړه نو له همدې امله هغه ډېر خپه شو تر دې چې ويې ژړل خپل پلندر ته يې هم شکايت وکړ او رسول الله ﷺ ته يې هم وويل چې رافع ته دې اجازه ورکړه او ما ته دې رانه کړه حال دا چې که ما ته په غېږه (پرځولو) راشي نو زه پرې تکړه يم او راځملوم يې. رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : دواړه په غېږه ورشئ . چې ورغلل رافع يې راوپرځاوه او سمره پرې تکړه شو نو بيا رسول الله ﷺ ورته اجازه ورکړه .[١]

په دې روايت کې له يوه پلوه د صحابه کرامو رضي الله عنهم او د هغوی د اولادونو زړورتيا او جهاد سره مينه څرګنده شوه او له بله پلوه د نښې د ويشتو، پياوړتيا ، غښتلتيا او د زړورتيا اهميت جوت شو. همدارنګه جهاد لپاره غېږې نيول، تمرين او د مجاهدينو ازمويل هم ځرګند شو .

## ۳. مخذل :

مخذل هغه بې ننګه ته ويل کېږي چې د وېرې، بزدلۍ يا نفاق له امله مجاهدين له جهاد څخه وروسته کوي او د وېرې خبرې ورته کوي. نو داسې شخص به د جهاد په سنګرونو او د

١- الاصابة في تمييز الصحابة : ٢\ ٧٩ . تربية الاولاد : ٢\ ١٠٩٣ .

عملیاتو په لیکو کې نه پرېښودل کېږي. د داسې چا پرېښودل د ماتې لامل جوړېږي.

## ۴. مرجف:

مرجف هغه جاته ویل کېږي چې له وېرې، بزدلۍ یا نفاق له امله د خلکو او د مجاهدینو منځ کې د دښمن قوت او کثرت په داسې ډول یادوي چې خلک ترې وېروي او د دښمن حیثیت لویوي او غښتلی کوي. داسې خلک به هم په سنګرونو او د مجاهدینو لیکلو کې نه پرېښودل کېږي ځکه چې دوی د ګډوډۍ، ماتې، بزدلۍ او وروسته کېدو لاملونه جوړېږي.

## ۵. غرضي:

هغه غرضي منافق چې د غنیمت او اسانتیا فرصت لټوي او د سختیو په وخت کې ډول ډول بهانې کوي، کله چې ګومان کوي چې مجاهدین لږ یا کمزوري دي نو جهاد ته نه ځي او چې کله د غلبې وخت راشي نو بیا ځان مجاهد مجاهد کوي هغه به هم جهاد کې نه پرېښودل کېږي مدینې منورې کې چې کله د سختې ورځې نه منافقان پاتې شول او بیا د لنډ غنیمت وخت راغی نو الله تعالی خپل پیغمبر ته فرمایي:

« فَإِن رَّجَعَكَ ٱللَّهُ إِلَىٰ طَآئِفَةٖ مِّنۡهُمۡ فَٱسۡتَـٔۡذَنُوكَ لِلۡخُرُوجِ فَقُل لَّن تَخۡرُجُواْ مَعِيَ أَبَدٗا وَلَن تُقَٰتِلُواْ مَعِيَ عَدُوًّاۖ إِنَّكُمۡ

رَضِيتُم بِٱلۡقُعُودِ أَوَّلَ مَرَّةٖ فَٱقۡعُدُواْ مَعَ ٱلۡخَٰلِفِينَ ».[1]

« **که الله د دوی کومې ډلې ته ورستون کړي او جهاد ته د وتلو اجازه يې در څخه وغوښته نو ورته ووايه: تاسو به هيڅکله ما سره نه وځئ او ما سره به د هيڅ دښمن په خلاف نه جنګېږئ تاسو لومړی ځل جهاد نه په کېناستو راضي شوي ياست نو اوس هم د وروسته پاتې خلکو سره کېنئ** ».

[1]- سورة التوبة: ٨٣.

# نږدې دښمن سره جهاد

په جهاد کې دا یو غښتلی بنسټ دی چې لومړی به نږدې کافرو او مرتدو دښمنانو سره جنګیږې او بیا لرې سره .
الله تعالی فرمایي :

(( يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ قَـٰتِلُواْ ٱلَّذِينَ يَلُونَكُم مِّنَ ٱلۡكُفَّارِ وَلۡيَجِدُواْ فِيكُمۡ غِلۡظَةً ۚ وَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلۡمُتَّقِينَ )).[1]

(( ای مؤمنانو هغو کافرانو سره وجنګیږئ چې تاسو ته نږدې وي او هغوی دې په تاسو کې سختي وموми، په دې وپوهیږئ چې الله بې شکه د پرهېزګارانو مل دی )).

دا یوه عجیبه خبره ده چې د پاکستاني (ای ایس ای) په لاس جوړ شوي د جهاد په نامه تنظیمونه د جهاد او اسلام نه ناوړه ګټه اخلي د (ای ایس ای) په امر لرې کشمیر او کابل کې جنګیږي او هغه نږدې اسلام اباد کې فی سبیل الله جهاد نه کوي چې انګرېزي کفري او طاغوتي نظام او قانون یې نافذ کړی دی، کافرو سره ملګری دی، د کافرو د رضا لپاره مدرسې ړنګوي، جوماتونه او کورونه نړوي، مسلمانان په وحشي بمباریو وژني

---

۱- سورة التوبة : .۱۲۳

او د اسلام په خلاف جګړې کې کفري ټلوالې سره په لومړي صف کې ولاړ دی ..........

ايا هغه هندوستان چې دوی ورسره جنګېږي هلته د حفصې جامعې غونډې د قران حافظانې او معصومې طالبانې او طالبان په فاسفورس بمبونو باندې سوي دي؟ ايا هلته په جوماتونو، مدرسو او د سوات، باجوړ، مهمندو، اورکزو، وزيرستان او نورو......غونډې د مسلمانانو په کورونو، وحشي بمباري شوې ده؟ ايا هندوانو تراوسه يو عالم، طالب او مسلمان امريکا ته سپارلی او ګوانتنامو ته لېږلی دی؟ نو اوس رېښتيا وايه چې اسلام اباد پرېږدې او کشمير کې جنګېږې او بيا د (ای ايس ای) د مجرمانو په اوامرو جنګېږې دا به کوم جهاد وي؟!.

له دې ټولو سره سره چې څوک کشمير کې جنګېږي او اسلام اباد پرېږدي هغه جهاد فی سبيل الله نه کوي بلکه د خاورې يو سياسي جنګ کوي او د جهاد نوم پرې ږدي ، چې دا د اسلام،اسلامي امت او جهاد سره لوی خيانت اودرغلي ده .مونږ يوائځې کشمير نه بلکه کشمير او ټوله نړۍ ازادول غواړو خو لار يې په اسلام اباد ده تر څو اسلام اباد نه وي ازاد شوی تر هغه نه کشمير ازاد يږي او نه بل ځای .

او د اسلام اباد مرتد حکومت، مرتد پوځ او مرتدو واکمنو سره چې څوک ملګرتيا کوي او دفاع ترې کوي هغوی هم مرتد دي مونږ تر ټولو د مخه نږدې کافرانو، مرتدانو او طاغوتانو سره جنګېږو او بيا مخکې درومو تر څو په نړۍ کې شامل او پراخه خلافت علی منهاج النبوة قايم او پلی شي.

**ابن قدامه رحمه الله وايي:**

« و يقاتل كل قوم من يليهم من العدو والأصل في هذا قول الله تعالى: « يا أيها الذين ءامنوا قاتلوا الذين يلونكم من الكفار » ولأن الأقرب أكثر ضررا ».[1]

**« او هر څوک به هغه دښمن سره جنګیږي چې ورته نږدې وي او ددې بنسټ دلیل د الله تعالی دا قول دی چې فرمایي: « ای مؤمنانو هغو کافرو سره وجنګیږئ چې تاسو ته در لنډوي ». او دا ځکه چې د نږدې ضرر ډیر زیات وي ».**

**ددې وضعي قوانینو نافذوونکي او کافرو سره ملګرتیا کوونکي بې شکه مرتدان دي[2]. او مرتدانو سره جنګېدل تر ټولو زیات ضروري او اړین دي ځکه چې د مرتد کفر د اصلی کافر له کفره زیات سخت دی.**

**شیخ الاسلام رحمه الله وايي:**

« و قد استقرت السنة بأن عقوبة المرتد أعظم من عقوبة الكافر الأصلي من وجوه متعددة . منها : أن المرتد يقتل بكل حال، ولا يضرب عليه الجزية، ولا تعقد له ذمة؛ بخلاف الكافر الأصلي. و منها : أن المرتد يقتل و إن كان عاجزا عن القتال، بخلاف الكافر الأصلي الذي ليس هو من

---

١- المغني مع الشرح الكبير: ١٠/ ٣٧٢.

٢- ددې مسالې د وضاحت لپاره زمونږ د «توحید» او «ملګري او غلیمان» کتابونه ولولئ چې په د لیلونو درته څرګنده شي.

أهل القتال، فإنه لا يقتل عند أكثر العلماء كأبى حنيفة و مالك و أحمد و لهذا كان مذهب الجمهور أن المرتد يقتل كما هو مذهب مالك والشافعى و أحمد. و منها : أن المرتد لا يرث ولا يناكح ولا تؤكل ذبيحته بخلاف الكافر الأصلى ».[١]

« **دا د اسلام يوه پياوړې لار او ثابت قانون دى چې د مرتد سزا له اصلي كافر نه ډېره لويه ده او دا د ډېرو لارو او د ليلونو له امله ، يو دا چې: مرتد په هر حال وژل كېږي، جزيه ورڅخه نه اخيستل كېږي، له اهل ذمه ؤ نه ګڼل كېږي، او اصلي كافر داسې نه دى. بل دا چې: اګر چې له جنګېدو نه بې وسه هم وي مرتد به وژل كېږي او اصلى كافر چې د جنګ وس نه لري او له جنګ نه معذور وي نو هغه د مرتد په څېر نه دى او د اكثرو علماؤ په مذهب بې وسه كافر نه وژل كېږي لكه ام ابو حنيفه، امام مالک او امام احمد** رحمهم الله تعالى **له همدې كبله د اكثرو علماؤ مذهب دا دى چې مرتد به وژل كېږي لكه د مالک، شافعى او احمد** رحمهم الله تعالى **چې همدا مذهب دى. بل دا چې: مرتد ميراث نه وړي، نكاح ورسره نه كېږي، حلاله يې نه خوړل كېږي او د اصلي كافر احكام جلا دي** ».

**شيخ الاسلام** رحمه الله **وايي** :

« و كفر الردة أغلظ بالإجماع من الكفر الأصلي ».[٢]

---

١- مجموع الفتاوى : ٢٨\ ٥٣٤ .

٢- مجموع الفتاوى : ٥٢٤/٢٨ .

«او د اسلام د علماؤ په دې اتفاق دی چې د ارتداد کفر له اصلي کفر نه زيات سخت دی» يعنې مرتد له اصلي کافر نه زيات او سخت کافر دی.

او وايي:

«والصديق رضي الله عنه و سائر الصحابة بدؤا بجهاد المرتدين قبل جهاد الكفار من أهل الكتاب».[1]

«او ابوبکر صديق رضي الله عنه او ټولو صحابهؤ رضي الله عنهم د اهل کتابو له کافرانو سره د جهاد نه مخکې مرتدانو سره په جهاد کولو پيل کړی ؤ».

نو مونږ د اسلام اباد، کابل، طهران، بغداد، رياض، عمان، انقرې، قاهرې، خرطوم او ...... نورو ټولو مرتدانو سره جنګېږو، له نږدې مرتدانو او کافرانو نه پيل کوو او بيا تر لرې لرې رسېږو. و ما ذلک على الله بعزيز.

دا اوسني مرتد حاکمان هيڅکله د مسلمانانو حاکمان نه بلل کېږي.

قاضی عياض رحمه الله وايي:

«أجمع العلماء على أن الإمامة لا تنعقد لكافر و على أنه لو طرأ عليه الكفر إنعزل» قال: «وكذا لو ترك إقامة الصلوات والدعاء إليها» و قال: «فلو طرأ عليه كفر و تغيير للشرع أو بدعة خرج عن حكم الولاية و سقطت طاعته

---

۱- مجموع الفتاوی: ۱۵۸/۳۵-.۱۵۹.

ووجب على المسلمين القيام عليه وخلعه و نصب إمام عادل إن أمكنهم ذلك فإن لم يقع ذلك إلا لطائفة وجب عليهم القيام بخلع الكافر و لا يجب فى المبتدع إلا إذا ظنوا القدرة عليه. فإن تحققوا العجز لم يجب القيام وليهاجر المسلم عن أرضه إلى غيرها و يفربدينه ».[1]

« ټولو علماؤ په دې اتفاق کړی دی چې کافر امام او خليفه نه شي جوړېدی او که کفر پکې جوت شونوله امامته به لرې کېږي » هغه وايي: « همدارنګه که د لمونځونو کره پوره کول يې پرېښودل ياې ورته بلنه پرېښوده » (هم معزولېږي به) که چېرته پرې دا جوته شوه چې کفر يې کړی دی يا يې شريعت بدل کړی دی او يا پرې بدعت ثابت شو نو له امارت څخه وواتهٔ، طاعت يې له منځه لاړ او که وس يې ؤ نو په مسلمانانو د هغه په خلاف پاڅون، له امارته د هغه لرې کول او د بل عادل امام ټاکل فرض شول. که د نورو وس نه ؤ او د څه خلکو وس ؤ نو هم په هغوی فرض دي چې کافر حاکم له حکومته لرې کړي. او د بدعتي په هلکه فرض نه دي خو که باور يې ؤ چې لرې کولی يې شي نو بيا پرې فرض دي .که د کافر حاکم په خلاف د پاڅون او جنګ کولووس يې نه ؤ نو پاڅون پرې فرض نه دی خو مسلمانا ن بايد له هغې ځمکې نه بلې ته هجرت وکړي اوخپل دين دې وژغوري ».

١- شرح النووي على مسلم: ٦/ ٤٣٣

# د دښمن لټون

مجاهدین به د دښمن په لټون کې سستي او بې غوري نه کوي او پوره کوښښ او هڅه به کوي چې د دښمن پلمې معلومې کړي.

الله تعالی فرمايي:

﴿ وَلَا تَهِنُوا۟ فِى ٱبْتِغَآءِ ٱلْقَوْمِ ۖ إِن تَكُونُوا۟ تَأْلَمُونَ فَإِنَّهُمْ يَأْلَمُونَ كَمَا تَأْلَمُونَ ۖ وَتَرْجُونَ مِنَ ٱللَّهِ مَا لَا يَرْجُونَ ۗ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴾.[1]

﴿ او د کافرانو په لټون کې مه سستېږئ که تاسو خوږېږئ نو هغوی هم بې شکه داسې خوږېږي لکه تاسو چې خوږېږئ او تاسو له الله د هغو اجرونو او نعمتونو هيله لرئ چې هغوی يې نه لري او الله ډېر پوه او د حکمت څښتن دی ﴾.

---

۱- سورة النساء: ۱۰۴.

# له دښمن تېښته کبيره ګوناده

د جګړې په تاوده ډګرکې د جنګ په ميدان کې دښمن تـه شا اړول او تښتېدل کبيره (لويه) ګونا ده.
الله تعالی فرمايي:

(( يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا لَقِيتُمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ زَحۡفًا فَلَا تُوَلُّوهُمُ ٱلۡأَدۡبَارَ وَمَن يُوَلِّهِمۡ يَوۡمَئِذٍ دُبُرَهُۥٓ إِلَّا مُتَحَرِّفًا لِّقِتَالٍ أَوۡ مُتَحَيِّزًا إِلَىٰ فِئَةٍ فَقَدۡ بَآءَ بِغَضَبٍ مِّنَ ٱللَّهِ وَمَأۡوَىٰهُ جَهَنَّمُ‌ۖ وَبِئۡسَ ٱلۡمَصِيرُ )).[1]

(( ای مؤمنانو! کله چې کافرانو سره په جنګ کې مخ شوئ نو هغوی ته شا ګانې مه اړوئ او جنګ تـه د چل جوړوونکي او د مجاهدينو ډلې تـه ورستنېدونکي نـه پرتـه چې چا هغـوی تـه د جنګ پـه ورځ پـه تېښـتـه شـا وروا ړولـه نـو هغـه بې شـکه د الله پـه غوسې اختـه شـو، د هغـه دېـره ځـای دوزخ دی او د ورتلـو ډېـر بدځای دی )).

او حـديث کـې د اوو هلاکوونکـو ګونـاهونو نـه يـوه لـه دښمن څخه تېښتـه هم ده:

۱- سورة الانفال: ۱۵-۱٦.

عـن أبـي هريـرة عـن النبـىﷺ قـال : « إجتنبـوا السـبع الموبقات » قالوا : يا رسول الله! و ما هن؟ قال : « الشرك بالله والسحر و قتل النفس التى حرم الله إلا بالحق وأكل الربا و أكـل مـال اليتـيم والتـولى يـوم الزحـف و قـذف المحصـنات الغافلات ».[1]

**ابو هريره رضي الله عنه نـه روايـت دی هغـه پیغمبـر ﷺ نـه روايـت كـوي چـې ويـې فرمايـل : « لـه اوو هلاكوونكـو ګونـاهونو څخـه ځانونه وژغورئ » صحابه ؤ وويل : ای د الله پيغمبره! هغـه كـوم دي؟ هغه و فرمايل : « الله سره شريک پيـداكول، سـحر كـول، لـه حق پرته د هغه چا وژل چې الله حـرام كـړی وي، د سـود خـوړل، د يتـيم د مـال خـوړل، د جنـګ پـه ورځ لـه ميدانـه تېښـته، او پـه پاكلمنو ناخبرو مؤمنو ښځو د زنا تور لګول »**

**بل حديث كې د لسو خبرو په ترڅ كې داسې راځي :**

عـن معـاذ قـال : أوصـاني رسـول الله ﷺ بعشـر كلمـات قـال : «لا تشـرك بـالله شـيئا و إن قتلـت و حرقـت ولا تعقـن والـديك وإن أمـراك أن تخـرج مـن أهلـك و مالـك ولا تتـركن صـلاة مكتوبـة متعمـدا فـإن مـن تـرك صـلاة مكتوبـة متعمـدا فقـد برئت منه ذمة الله ولا تشربن خمرا فإنه رأس كل فاحشة و إياك والمعصـية فـإن بالمعصـية حـل سـخط الله و إيـاك والفـرار مـن

---

[1] ١- رواه البخاري و مسلم و ابوداود و النسائي.

الزحف و إن هلك الناس، وإذا أصاب الناس موت و أنت فيهم فاثبت، أنفق على عيالك من طولك ، و لا ترفع عنهم عصاك أدبا، وأخفهم في الله ».[1]

معاذ رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: ماته رسول الله ﷺ د لسو خبرو نصيحت وکړ او ويې فرمايل : «اګر که ووژل شې او وسېځل شې هم الله تعالی سره هيڅ شی شريک نه کړې،اګر که امر درته وکړي چې له خپل کور او مال نه ووځه هم د خپل مور او پلار نه سرغړونه مه کوه، فرض لمونځ قصدا مه پرېږده ځکه چې چا يو فرض لمونځ پرېښود نو د الله ذمه ورځخه لرې شوه، شراب مه څښه ځکه چې دا د هرې بې شرمۍ سر دی، له ګونا ځان وساته ځکه چې د ګونا له کبله د الله غوسه راغلې ده، او اګر که ټول خلک ومري هم د جنګ له بريده مه تښته، کله چې خلکو ته مرګاني وبا ورسېږي او ته پکې وې نو هلته ټينګ شه، له خپل مال نه دې په اولادونو لګښت وکړه، د ادب ورکولو لپاره دې خپله امساترې مه پورته کوه او الله نه يې ووېروه ».

دښمن سره د مخ کېدو په تاوده سنګر او د جنګ په ميدان کې د ټينګېدو په هکله فرمايي :

« يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِذَا لَقِيتُمْ فِئَةً فَٱثْبُتُوا۟ وَٱذْكُرُوا۟ ٱللَّهَ كَثِيرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ » .[2]

---

١- رواه احمد .

٢- سورة الانفال : ٤٥ .

«اى مؤمنانو! کله چې کومې ډلې سره مخ شوئ نو ټینګ ودرېږئ او الله ډېر یاد کړئ ښايي چې بريالي شئ».

او دښمن سره د مخامخ کېدو په وخت کې د صبر کولو په هکله داسې حديث راځي:

عن عبدالله بن أبى أوفى أن رسول الله ﷺ قال: «إذا لقيتموهم فاصبروا».[1]

د عبدالله بن ابي او فى رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل: «کله چې د اسلام دښمنانو سره په جنګ کې مخ شوئ نو صبر وکړئ» (ټينګ شئ).

که مجاهدين کله د بزدلۍ او بې غورۍ له امله نه بلکه د بې وسۍ لو امله راوروسته شي خو د جهاد ټينګه اراده او عزم يې له لاسه نه وي ورکړى نو هغه تښتېدلى نه ګڼل کېږي.

حديث کې راځي:

عن ابن عمرقال : بعثنا رسول الله ﷺ فى سرية فحاص الناس حيصة و أتينا المدينة فاختفينا بها و قلنا : هلكنا، ثم أتينا رسول الله ﷺ فقلنا : يا رسول الله! نحن الفرارون. قال: بل أنتم العكارون و أنا فئتكم».[2]

عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دى هغه وايي: رسول الله ﷺ مونږ په يوه ډلګۍ کې ولېږلوو؛ دښمنانو په مونږ ډېر سخت

---

١- رواه البخاري.

٢- رواه ابو دا و د و الترمذي.

برید وکړ، مونږ مدینې ته راغلوو او له شرمه هلته پټ شوو او لـه ځان سره مـو ویـل چې مـونږ هلاک شـوو. بیـا رسـول الله ﷺ تـه راغلوو او ورته ومو ویـل : ای د الله پیغمبره! مـونږ تښـتیدونکي یوو. هغه وفرمایل : (( بلکه تاسو بیرته ورستنیدونکي یاست زه ستاسو ډله یم )).

# دښمن سره د مخ کیدو ارمان مه کوئ

دښمن سره د مخ کیدو ارمان کول او غوښتل منع دي خو کله چې دښمن سره مخ شوو نو باید صبر وکړو او په کلکه ورسره وجنګیږو.

حدیث کې راځي :

عن عبدالله بن أبی أوفی أن رسول الله ﷺ فی بعض أیامه التی لقی فیها انتظر حتی مالت الشمس ثم قام فی الناس فقال : (( أیها الناس لا تتمنوا لقاء العدو وسلوا الله العافیة فإذا لقیتموهم فاصبروا واعلموا أن الجنة تحت ظلال السیوف )) ثم قال : (( اللهم منزل الکتاب و مجری السحاب وهازم الأحزاب اهزمهم و انصرنا علیهم )).[1]

عبدالله بن ابی اوفی رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ

---

۱- رواه البخاري.

په ځینو هغو ورځو کې چې دښمن سره پکې مخ شوی ؤ، تر هغې یې انتظار وکړ چې د لمر زوال وشو بیا په خلکو کې ودرېد او ویې فرمایل: «ای خلکو! دښمن سره د مخ کېدو ارمان مه کوئ او الله نه روغتیا وغواړئ؛ خو کله چې ورسره مخ شوئ نو صبر وکړئ او په دې وپوهېږئ چې جنت بې شکه د تورودسیورو لاندې دی» بیا یې وفرمایل: «ای الله! دکتاب نازلوونکیه! د ورېځوروانو ونکیه! د ډلو ماتوونکیه! دوی ته ماتې ورکړه او مونږ سره د دوی په خلاف مرسته وکړ».

# له دښمن څخه رازونه پټ ساتل

د جهاد له تدبیرونو څخه یو مهم تدبیر دا دی چې دښمن څخه د مجاهدینو رازونه او تدبیرونه پټ ساتل کېږي او دا په دې ترتیب کېږي چې د یرغل، حملې او عملیاتو وخت او طرف به امیر پټ ساتي تر دې چې عامو مجاهدینو ته به یې هم نه څرګندوي هسې نه چې د کوم مجاهد نه بې احتیاطي او بې غوري وشي، راز یې له خولې خپور او څرګند شي او ټولو مجاهدینو او د هغوی تدبیرونو ته سخت ټکان او تاوان ورسېږي.

د راز پټول په مجاهدینو د بې باورۍ له امله نه وي بلکه د راز په ساتلو کې د ټولو خیر دی او دا د ټولو د خیر او ګټې

لپاره په ښه نيت کېږي خو کۀ د يو کار پټولو کې نه بلکه په څرګندولو کې خيرؤ نو بيا خامخا بې ځايه پټول ښه نه دي .

حديث کې راځي :

عن كعب بن مالك يقول : كان رسول الله ﷺ قلما يريد غزوة يغزوها إلاورى بغيرها حتى كانت غزوة تبوك فغزاها رسول الله ﷺ فى حر شديد و استقبل سفرا بعيدا و مفازا و استقبل غزو عدو كثير فجلى للمسلمين أمرهم ليتأهبوا أهبة عدوهم و أخبرهم بوجهه الذي يريد )).[1]

کعب بن مالک رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي : رسول الله ﷺ به چې کله کومه غزا کوله نو د بل لور په څرګندولو به يې پټه کړه تر دې چې کله د تبوک غزوه وه نو هغه رسول الله ﷺ په سختې ګرمۍ کې وکړه، لرې سفر او دښتې ته يې مخ کړ او په ډېرو دښمنانو بريد ته يې مخه کړه نو ددې لپاره يې مسلمانانو ته د هغوی دجهاد کار څرګند کړ چې د خپل دښمن لپاره مناسب تياری وکړي نوهغه لوريې وروښود چې کوم لورته يې اراده وه )).

د مسلمانانو او د جهاد رازونه چې پټ نه ساتي او خپروي يې هغوی منافقان دي او د هغوی په هکله الله تعالی فرمايي :

(( وَإِذَا جَآءَهُمۡ أَمۡرٞ مِّنَ ٱلۡأَمۡنِ أَوِ ٱلۡخَوۡفِ أَذَاعُواْ بِهِۦۖ

---

۱- رواه البخاري .

وَلَوْ رَدُّوهُ إِلَى ٱلرَّسُولِ وَإِلَىٰٓ أُوْلِي ٱلْأَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ ٱلَّذِينَ يَسْتَنۢبِطُونَهُۥ مِنْهُمْ ﴾.[۱]

**﴿ او کله چې دوی ته د ډاډ یا وېرې کوم خبر راشي نو خپروي یې او که پېغمبر او د دوی امیرانو ته یې حواله کړی وای نو د دوی هغه خلک به پرې پوهېدلي وو چې پوهه ترې راباسي ﴾.**

# د غازي تیارول

**چا چې د الله په لار کې جهاد لپاره مجاهد تیار کړ، د هغه د کور، ځان، د لارې او سنګر اړتیاوې یې ورپوره کړی نو د هغه هم د مجاهد غوندې ثواب وشو. همدارنګه د مجاهد د کور پالنه او پوښتنه کول هم په جهاد کې داخل دي.**

**حدیث کې راځي:**

عن زيد بن خالد أن رسول الله ﷺ قال: ﴿ من جهز غازيا فى سبيلالله فقد غزا ومن خلف غازيا فى سبيل الله بخيرفقد غزا ﴾.[۲]

**د زید بن خالد رضي الله عنهما نه روایت دی هغه وایي چې رسول**

---

۱- سورة النساء: ۸۳.

۲- رواه البخاري و مسلم.

الله ﷺ فرمایلي دي : «چا چې د الله په لار کې مجاهد تیار کړ او ویې پاله نو هغه بې شکه غزا وکړه او چا چې د الله د لارې د غازي وروسته پاتې کورته د ښېګړې پاملرنه وکړه نو هغه بې شکه غزا وکړه».

# مجاهد سره خيانت کول

مجاهد سره د هغه په کور او مال کې درغلي او خيانت کول ډېره لويه ګونا ده حديث کې راځي :

عن بريدة قال : قال رسول الله ﷺ: (( حرمة نساء المجاهدين على القاعدين كحرمة أمهاتكم و ما من رجل من القاعدين يخلف رجلا من المجاهدين فى أهله فيخونه فيهم إلا وقف له يوم القيامة فيأخذ من عمله ما شاء فما ظنكم؟ )).[1]

بريده رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: رسول الله ﷺ وفرمايل : (( جهاد نه په ناستو خلکو د مجاهدينو ښځې داسې حرامې دي لکه ستاسو ميندې چې په تاسو حرامې دي او جهاد نه له ناستو خلکو کوم سړی چې د مجاهدينو د کوم سړي په کور کې د سرپرستۍ او پاملرنې لپاره وټاکل شي او هغه په هغې کې ورسره درغلي وکړي نو د قيامت په ورځ به ورته ودرېږي او د هغه د نېک عمل نه يې چې څومره خوښه شي ترې به يې واخلي. نو څه ګومان کوئ؟ (چې دغه درغلګر او خائن ته به څه پاتې شي؟) )).

درغلي او خيانت په هر ځای، هر وخت او هر چاسره لويه ګونا ده خو مجاهد سره درغلي له دې امله ډېره لويه ګونا ده چې

---

۱- رواه مسلم و ابو دا و د و احمد والنسائى .

جهاد په ټولو فرض دی او هغه د ټول امت د عزت او عظمت لپاره خپل سر په لاس کې نیولی دی او د الله په لار کې د الله دښمنانو سره په مېړانه جنګېږي، ولړې، تندې، سترړیا، ټپونه او شهادت ګالي او د هر کړاو ګاللو ته یې غاړه ایښې وي او بیا کوم بې غیرت او بې ننګه د دغه ننګیالي اتل په کور کې درغلي کوي نو دا ډېره لویه درغلي ده، دا ټول امت سره درغلي ده، دا الله تعالی او د هغه پیغمبر سره درغلي ده، دا اسلام سره درغلي ده او دا نړۍ سره درغلي ده.

# زړه ورتیا

زړورتیا یو ښه صفت دی دا یو فطري او طبیعي جبلت او پنځ دی چې الله تعالی چا ته ورکړی وي خو په زړورو کارونو کولو، د زړورتیا په تاریخي کیسو اورېدلو او لوستلو، په سنګر کې جنګېدلو او لوبېدلو باندې زیاتېږي او تقویه کېږي. جنګ چې کله ونښلي او ډزې پیل شي لومړی ډزې او پیل لږ څه نا څه سخت وي خو چې پښې ورته ټینګې کړې او ته هم ډزې پیل کړې نو بیا چې څومره یکې ننوځې وېره ورکېږي او زړهٔ پخېږي بیا ترې مجاهد في سبیل الله خوند او لذت اخلي. د رسول الله ﷺ د زړورتیا په هکله حدیث کې داسې راځي:

عن أنس قال: كان النبی ﷺ أحسن الناس وأشجع

الناس و أجود الناس ولقد فزع أهل المدينة وكان النبيﷺ سبقهم على فرس قال : « وجدناه بحرا ».[١]

وفي رواية : و هو على فرس لأبي طلحة عُرْي و في عنقه السيف يقول : « لم تراعوا ».[١]

**انس رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: پيغمبر ﷺ په ټولو خلکو کې ډېر ښکلی، په ټولو خلکو کې ډېر زړور او په ټولو سخي ؤ. يوه ورځ د مدينې منورې خلک څه اندېښمن شول نو پيغمبر ﷺ د اندېښنې لور ته په اس له ټولو مخکې شوی ؤ او ويې فرمايل: « مونږ دا اس د درياب په څېر ښه ځغاستونکی موندلی » او يو روايت کې راځي چې رسول الله ﷺ د وېرې له لوري د ابوطلحه په شاتوري (بې زينه) اس راستون شو چې توره يې په غاړه وه او ويې فرمايل: « په تاسو هيڅ وېره نشته ».**
**بل روايت کې راځي:**

و عن جبير بن مطعم أن رسول الله ﷺ قال: « لوكان لى عدد هذه العضاه نعم لقسمته بينكم ثم لا تجدوني بخيلا ولا كذوبا ولا جبانا ».[٢]

**جبير بن مطعم رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي: « که ماسره ددې بوټو په شمېر څاروي وی نو خامخا به مې په تاسو وېشلي وو بيا به مانه بخيل، نه دروغجن**

---

١- رواه البخاري.
٢- رواه البخاري.

او نه بې زړهٔ ومومئ)).

او بې زړه توب دومره ناوړه خصلت دی چې رسول الله ﷺ به د هر لمانځه نه وروسته ورڅخه پنا غوښته او داسې به يې ويل:

(( اللهم إِنى أعوذ بك من الجبن و أعوذ بك أن أرد إلى أرذل العمر و أعوذ بك من فتنة الدنيا و أعوذ بك من عذاب القبر)).[1]

((اى الله زه بې شکه له بې زړهٔ توبه له تا پنا غواړم او په تاله دې پنا غواړم چې د ډېرې خوارۍ عمر ته پاتې شم او په تا د دنيا د ازمېښت نه پنا غواړم او په تا د قبر له عذابه پنا غواړم)).

او له بې زړهٔ توبه پنا غوښتل په نورو ډېرو دعاؤ کې راځي چې د اوږدوالي له امله په همدې يوې بسنه کوو.

# جهاد کې وياړنه

په نسب وياړنه ښه نه ده خو د جهاد په سنګر او د جنګ په ډګر کې په نسب او قوم وياړنه او د خپلو پخوانيو د وياړونو يادونه او خپل نوميالي، توريالي، ننګيالي او پياوړي رايادول او په هغوی وياړ او افتخار کول روا بلکه مستحب دي.

---

۱- رواه البخاري.

**حديث کې راځي:**

عن أبی إسحاق قال: قال رجل للبراء بن عازب: أفررتم عن رسول الله ﷺ يوم حنين؟ قال : لکن رسول الله ﷺ لم يفر إن هوازن کانوا قوما رماة و إنا لما لقينا هم حملنا عليهم فانهزموا فأقبل المسلمون على الغنائم واستقبلونا بالسهام فأما رسول الله ﷺ فلم يفر فلقد رأيته و إنه لعلى بغلته البيضاء و إن أبا سفيان أخذ بلجامها والنبی ﷺ يقول: «أنا النبی لا كذب أنا ابن عبدالمطلب».[1]

**ابو اسحاق نه روايت دی هغه وايي چې براء بن عازب رضي الله عنه ته يو سړي وويل: ايا د حنين په ورځ تاسو له رسول الله ﷺ څخه تښتېدلي وئ؟ هغه وويل: خو رسول الله ﷺ نه ؤ تښتېدلی. هوازن داسې قوم دی چې ښه ويشتونكي دي مونږ چې كله هغوی سره مخ شوو نو بريد مو پرې وكړ هغوی ماتې وخوړه او مسلمانانو غنيمتونو ته مخه كړه نو هغوی غشو ويشتلو سره زمونږ رامخې ته شول، رسول الله ﷺ نه ؤ تښتېدلی ما هغه ليدلی ؤ چې په خپلې سپينې كچرې سپور ؤ ، ابوسفيان د كچرې واګې نيولې وې او پيغمبر ﷺ داسې ويل: «زه پيغمبر يم په دې كې هيڅ دروغ نشته او زه د عبدالمطلب زوی يم».**

**نو رسول الله ﷺ دلته خپل نسب ته له دې امله اشاره وكړه چې دښمنانو ته وښئ چې زه كوم بې نسبه او بد نسبه نه يم**

---

[1]- رواه البخاري.

تاسو مې ښه پېژنئ چې د عبدالمطلب لمسى يم نو څرنګه به وتښتم؟ او څرنګه به خپل لوړ نسب ته د تېښتې پېغور ورواړوم او زه رېښتينى پېغمبر يم. د خيبر په غزوې کې چې کله د خيبر باچا: (مرحب) ميدان ته راووات او د مقابلې بلنه يې ورکړه نو عامر ﷺ ورووات او داسې يې ويل:

قَدْ عَلِمَتْ خَيْبَرُ أَنِّىْ عَامِرُ        شَاكِ السِّلاحِ بَطَلٌ مُغَامِرُ

(( د خيبر خلک پوهېږي چې زه عامر يم وسله مې څرګنده کړې ده او د جنګونو د سختيو اتل يم )).

عامر ﷺ په خپله توره شهيد شو بيا علي ﷺ ورووات او داسې يې ويل:

أنَا الَّذِيْ سَمَتْنِيْ أُمِّيْ حَيْدَرَهْ        كَلَيْثِ غَابَاتٍ كَرِيْهِ الْمَنْظَرَهْ

أُوْفِيْهِمُ بِالصَّاعِ كَيْلَ السِّنْدَرَهْ.[۱]

(( زه هغه څوک يم چې مور مې په حيدره باندې نومولى يم او د داسې وېروونکي منظر څښتن يم لکه د ځنګلونو زمرى؛ دوى ته په کره پوره پيمانې ګوزارونه ورتلم )).

سلمه بن الاکوع ﷺ يو پياوړي مجاهد ؤ چې ډير زړور او د غشو په ويشتلو کې ډېر تکړه ؤ؛ هغه يوه ورځ مدينې منورې نه د ځنګله لور ته ووات چې ګوري مخې ته ورته د عبدالرحمن بن عوف ﷺ يو غلام راغى او له دې يې خبر کړ چې د نبي کريم ﷺ اوښې د غطفان او فزاره قبيلو غلو وتښتولې؛ سلمه د مدينې لور ته درې چيغې ووهلې او بيا د غلو پسې روان

۱- رواه مسلم.

شو، په یوائځې ځان د غلو پسې ورسېد او د غشو په ویشتلو یې پرې برید وکړ هر غشی به یې چې وروېشته نو ورته ویل به یې: «خذها و انا ابن الاکوع» «عشی درواخله او زه داکوع زوی یم» او دا به یې هم ویل:

أَنَا اِبْنُ ٱ لاَكْوَعِ وَالْيَوْمُ يَوْمُ الرُّضَّعِ

«زه د اکوع ځوی یم او نن ورځ د حرامیانو او رذیلانو د هلاکېد ورځ ده».

ډېر کسان یې پکې وویشتل او اوښې یې ورڅخه راخلاصې کړې.[1]

۱- رواه البخاري و مسلم.

# په جهاد کې شعرونه او ترانې ويل

شعرونه او ترانې د انسان په مشاعرو او ولولو ډېره اغېزه لري، احساسات راپاروي، ولولې راويښوي، د پاڅون او يون لامل ګرځي ډېر ځله په جاهلي قبائلو کې شعري پېغورونو لويې قبيلې په جنګ اخته کړې دي او ډېر ځله تعميري شعرونه دروغې جوړې اوسولې لاملونه ګرځېدلي دي رسول الله ﷺ چې کله مدينې منورې ته هجرت وکړ نو د انصارو ځوانانو او کوچنيانو ورته په سترې مه شي کې مشهوره ترانه وويله :

طَلَعَ الْبَدْرُ عَلَيْنَا مِنْ ثَنِيَّاتِ الْوَدَاعِ .......

همدارنګه حسان بن ثابت، عبدالله بن رواحه او نورو شاعرانو صحابهؤ رضي الله عنهم به د رسول الله ﷺ په دفاع او دجهاد په تېزولو کې شعرونه ويل او رسول الله ﷺ به يې تائيد کاوه، دعاوې به يې ورته کولې او د نبوي جومات منبر به يې ورته سماوۀ.

د خندق (احزاب) په غزوه کې چې کله د مدينې د دفاع او د کافرانو د بريد د مخنيوي لپاره صحابهؤ رضي الله عنه کنده کنله او رسول الله ﷺ پخپله ورسره کار کاوۀ نو رسول الله ﷺ د ولولو پارولو او په کار تېزولو لپاره دا بيت وفرمايۀ :

اَللّٰهُمَّ إِنَّ الْعَيْشَ عَيْشُ الآخِرَةْ فَاغْفِرْ لِلأَنْصَارِ وَالْمُهَاجِرَةْ

«اى الله چې ژوند دی خو هغه د اخرت ژوند دی نو

انصارو او مهاجرو ته ښښنه وکړه ». صحابه کرامو رضي الله عنهم په ځواب کې داسې وویل:

نَحْنُ الَّذِيْنَ بَايَعُوْا مُحَمَّدًا     عَلَى الْجِهَادِ مَا بَقِيْنَا أَبَدًا

مونږ هغه خلک یوو چې محمد ﷺ سره مو تر هغه په جهاد بیعت کړی دی تر څو چې ژوندي یوو:

او کله کله به لومړی صحابه ؤ رضي الله عنهم دا بیت ووایه او بیا به رسول الله ﷺ ورته په ځواب کې پاسنی بیت وایه او ټولو په خپلو شاګانو خاورې چلولې.[1]

او بل حدیث کې راځي:

عن البراء قال: رأيت النبى ﷺ يوم الأحزاب ينقل التراب و قد وارى التراب بياض بطنه وهو يقول:

لَوْلا أنْتَ مَا اهْتَدَيْنَا وَلا تَصَدَّقْنَا وَلا صَلَّيْنَا

فَأَنْزِلَنْ سَكِيْنَةً عَلَيْنَا     وَ ثَبِّتِ الأَقْدَامَ إنْ لاقَيْنَا

إنَّ الأُوْلى قَدْ بَغَوْا عَلَيْنَا     إذَا أَرَادُوْا فِتْنَةً أَبَيْنَا.[2]

« ای الله که تا راته لارښوونه نه وی کړی نو مونږ به سمه لار نه وه موندلې، نه به مو خیراتونه کړي وو او نه لمونځونه؛ نو په مونږ اطمینان نازل کړه او که دښمنانو سره مخ شوو نو پښې مو ټینګې کړه هغو خلکو چې په مونږ یې تیری کړی دی کله چې یې د شرک او فساد غوښتنه کړې نو مونږ انکار کړی دی ».

---

۱- رواه البخاري.

۲- رواه البخاري.

# د ښځو جهاد

په ښځو د نارينه ؤ غوندې د قتال او جنګ جهاد فرض نه دی او نور دنيت، ژبې، قلم، د کور ساتنې او نور ډولونه جهاد به کوي همدا رنګه په سنګر کې پخلی د ناروغانو او ټپيانو درملنه او نور د وس مناسب کارونه کولی شي خو مخامخ جنګ ورباندې فرض نه دی خو که د دښمن کم کس يواځې پرې پېښ شو يا کلي او کورته ورغی نو وژلی يې شي او که نارينه نه وو د ځان دفاع پرې فرض ده .

حديث کې راځي :

عن عائشة أنها قالت : يا رسول الله نرى الجهاد أفضل العمل أفلا نجاهد؟ قال : (( لكن أفضل الجهاد حج مبرور )).[1]

عائشې رضي الله عنها نه روايت دی هغې وويل: ای د الله پيغمبره! مونږ ګورو چې جهاد تر ټولو ښه عمل دی نو ايا مونږ جهاد نه کوو؟ هغه وفرمايل: (( ستاسو د ښځو جهاد پاک سوچه حج دی )). خو که سنګر ته د مجاهدينو مرستې لپاره لاړې شي هم تللی شي لکه مخکې مو چې وويل د مخامخ جنګ نه پرته په نورو کارونو کې به مجاهدينو سره مرسته کوي خو حجاب کول او د فتنو د لاملونو نه ځان ژغورل پرې فرض دي .

---

١- رواه البخاري .

**حدیث کې داسې راځي:**

عن الربيع بنت معوذ قالت : كنا مع النبیﷺ نسقی الماء و نداوى الجرحى و نرد القتلى.[۱]

**د معوذ د لور ربیع رضي الله عنها نه روایت دی هغې ویلي چې مونږ پیغمبر ﷺ سره په جهاد کې وو چې اوبه به مو ورکولې، د ټپیانو درملنه به مو کوله او شهیدان به مو کورونو ته وړل.**

**بل روایت کې راځي:**

عن الربيع بنت معوذ قالت : كنا نغزو مع رسول الله ﷺ فنسقى القوم و نخدمهم و نرد الجرحى والقتلى الى المدينة.[۲]

**د معوذ د لور ربیع رضي الله عنها نه روایت دی هغه وایي چې مونږ ښځې به رسول الله ﷺ سره غزا ته تللوو نو خلکو ته به مو اوبه ورکولې، د هغوی خدمت به مو کاوه او ټپیان او شهیدان به مو مدینې منورې ته ستنول.**

**بل حدیث کې راځي:**

عن عائشة قالت: كان النبي ﷺ اذا أراد أن يخرج أقرع بين نسائه فأيتهن يخرج سهمها خرج بها النبي ﷺ، فأقرع بيننا في غزوة غزاها فخرج فيها سهمي فخرجت مع

---

۱- رواه البخاري.

۲- رواه البخاري.

النبى ﷺ بعد ما أنزل الحجاب.[١]

عائشې رضي الله عنها نه روايت هغې ويلي چې پيغمبر ﷺ به چې کله جهاد ته د وتلو اراده وکړه نو د خپلو ښځو ترمنځ به يې پچه واچوله د هرې يوې پچه به چې راووته نو پيغمبر ﷺ به هغه له ځانه سره وايسته. په يوې غزوې کې يې زمونږ ترمنځ پچه واچوله په هغې کې زما پچه راووته نو زه رسول الله ﷺ سره ووتم او دا کار د پردې د نازلېدو نه وروسته شوی ؤ.

همدارنګه بل حديث کې داسې راځي:

عن أنس قال : لما كان يوم أحد إنهزم الناس عن النبى ﷺ ولقد رأيت عائشة بنت أبى بكر وأم سليم وإنهما لمشمرتان أرى خدم سوقهما تنقزان القرب على متونهما ثم تفرغانه فى أفواه القوم ثم ترجعان فتملانها ثم تجيئان فتفرغانه فى أفواه القوم .[٢]

انس رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: کله چې د اُحد ورځ وه خلک د رسول الله ﷺ له خوا په ماتې لاړل او ما د ابوبکر رضي الله عنه لور عائشه او د سُليم مور وليدلې چې دواړو بډې وهلې وې، ما يې د ښنګرو پسولونه (پايزېبونه) ليدل چې په خپلو شاګانو يې د اوبو ژي راوړل او د خلکو په خولو کې يې تشول بيا به ستنې شوې او ژي به يې راډک کړل بيا به راتلې او د خلکو په خولو

---

١- رواه البخاري.

٢- رواه البخاري.

کې به يې تشول.

يعنې اوبه به يې راوړلې او ستړو مجاهدينو او ټپيانو ته به يې ورکولې او په هغوی به يې څښلې.

بل حديث کې راځي:

عن أنس قال: كان رسول الله ﷺ يغزو بأم سليم و نسوة من الأنصار معه إذا غزا فيسقين الماء ويداوين الجرحى.[1]

انس رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: رسول الله ﷺ به ام سليم او د انصارو ځينې ښځې له ځان سره په جهاد کې ملګرې کولې؛ هغوی به مجاهدينو ته اوبه ورکولې او د ټپيانو درملنه به يې کوله.

بل حديث کې راځي:

عن أم عطية قالت: غزوت مع رسول الله ﷺ سبع غزوات أخلفهم فى رحالهم فأصنع لهم الطعام و أداوى الجرحى وأقوم على المرضى.[2]

ام عطيه رضي الله عنها وايي: ما رسول الله ﷺ سره اوه غزاګانې کړې دي چې د مجاهدينو د اوسېدو ځای کې سامان سره به پاتې کېدم نو هغوی ته مې خواړه تيارول، د ټپيانو درملنه او د ناروغانو څارنه او پاملرنه مې کوله.

---

١- رواه مسلم.

٢- رواه مسلم.

**بل حديث کې د يوې مجاهدې کيسه داسې راغلې ده :**

**عن أنس أن أم سليم إتخذت يوم حنين خنجرا فكان معها فرءاها أبوطلحة فقال : يا رسول الله هذه أم سليم معها خنجر فقال لها رسول ﷺ : « ما هذا الخنجر؟ » قالت: إتخذته إن دنا منى أحد من المشركين بقرت به بطنه. فجعل رسول الله ﷺ يضحك. فقالت : يا رسول الله أقتل من بعدنا من الطلقاء إنهزموا بك. فقال رسول الله ﷺ : « يا أم سليم! إن الله عزوجل قد كفى و أحسن ».[1]**

**انس رضي الله عنه نه روايت دى چې د حنين په ورځ ام سليم رضي الله عنها يوه پيشکوزه ( غټ چاکو ) واخيسته، هغې سره ؤ ابو طلحه وليده. هغه وويل : اى د الله پېغمبره! دا اُم سليم ده او دې سره پيشکوزه ده. رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : « دا پېشکوزه د څه لپاره ساتې؟» هغې وويل : دا مې ددې لپاره راخيستې ده چې که کوم مشرک راته رالنډ شو نو په دې به يې خېټه ورڅيرې کړم. رسول الله ﷺ په خندا شو. هغې وويل : اى د الله پېغمبره! له مونږ پرته ازاد شوي خلک ووژنه هغوى له تا ماتې وخوړه. رسول الله ﷺ وفرمايل : « اى د سليم مورې! الله تعالى مونږ لپاره بس شو او ښه يې راسره وکړل ».**

١- رواه مسلم.

# د سنګر دعاوې

د الله جل جلاله د لارې مجاهدين به د اسلام احکامو ته کلکه پاملرنه کوي او هر کار به د اسلام د لارښوونو سره سم کوي په لمونځونو، روژو، تهجدو او نورو عبادتونو سربېره به مسنون دعاوې هم په خپل خپل وخت کې لولي لکه: د سهار او ماښام دعاوې، د ويده کېدو دعاوې، د راويښېدو او نورې دعاوې او اذکار به تل په پابندۍ سره وايي.

# سيمې ته د ننوتو په وخت کې

کله چې د دښمن د تسلط سيمې ته ننوځي نو دا به وايي:

(( الله أكبر خربت ......... إنا إذا نزلنا بساحة قومٍ فساء صباح المنذرين )).[1]

(( الله ډېر لوی دی ........ ړنګ شو مونږ چې کله د کوم قوم په سيمه ورشېوه شوو نو د وېرول شويو سهار ډېر بد دی )).

د (.......) خالي ځای کې به د هغه ځای نوم واخلي چې کوم ځای ته ورننوتي وي رسول الله ﷺ دا خيبر ته د ننوتو په

١- رواه البخاري.

وخت کې ویلي وو او فرمایلي یې وو : (( خربت خیبر )) نو د خیبر په ځای به د هغه ځای نوم واخیستل شي چې چېرته ورننوځي لکه چې ((لاهور )) ته ورننوځي نو وایي به : (( خربت لاهور)) .

# دښمن سره د مخ کېدو په وخت کې

مجاهد به دښمن سره د مخ کېدو وخت کې الله تعالی ډېر یادوي او په نورو اذکارو سر بېره به دا هم وایي :

(( اللهم منزل الكتاب و مجری السحاب و هازم الأحزاب إهزمهم وانصرنا عليهم )).[1]

(( ای الله! د کتاب نارلوونکیه! د ورېځې چلوونکیه، د ډلو ماتوونکیه دا زمونږ دښمن مات کړه او د هغوی په خلاف مونږ سره مرسته وکړه )) .

همدارنګه په لوړه د ختلو په وخت کې (( الله اکبر )) او په ځوړې د ښکته کېدو په وخت کې (( سبحان الله )) ویل هم سنت دي. خو په لوړ غږ به یې نه وایي. او په پېچومي ( لوړه ) ختلو په وخت کې (( لا اله الا الله )) ویل هم یو روایت کې راغلي دي .

---

۱- رواه البخاري .

# عملیاتو نه د راستنېدو په وخت کې

همدارنګه عملیاتونه بیرته د راګرځېدو په وخت کې د لارې په لوړ ځای، غونډۍ او سخت ځای داسې ویل سنت دي:

«الله أکبر» درې ځل بیا: «لا إله إلا الله وحده لا شريك له له الملك و له الحمد و هو على كل شئ قدير آئبون تائبون ساجدون لربنا حامدون صدق الله وعده و نصر عبده و هزم الأحزاب وحده».[1]

«له الله پرته بل معبود نشته چې یو دی او هیڅ شریک نه لري پاچایي یوازې د هغه ده، ستاینه یوازې د هغه ده او هغه په هر شي بښه برلاسی دی مونږ راستنېدونکي یوو، توبه کوونکي یوو، عبادت کوونکي یوو، سجدې کوونکي یوو، د خپل رب ستایونکي یوو، الله خپله ژمنه ریښتیا کړه، د خپل بنده مرسته یې وکړه او یوازې یې ډلو ته ماتې ورکړه».

په دې سرېیره به د سفر نه د راستنېدو دعاوې او نور اذکار هم لولي.

---

۱- رواه البخاري.

# د برید مناسب وختونه

په دښمن برید کول په هر وخت کې روا دي خو مناسب وختونه لټول هم د جنګي تدبیرونو یو تدبیر دی.

**حدیث کې راځي:**

عن النعمان بن مقرن قال : شهدت القتال مع رسول الله ﷺ كثيرا فكان إذا لم يقاتل في أول النهار إنتظر حتى تهب الأرواح و تحضر الصلاة.[۱]

**نعمان بن مقرن رضي الله عنه وايي: زه رسول الله ﷺ سره ډېرځله جنګ ته حاضر شوی یم هغه به چې د ورځې په لومړۍ برخه کې ونه جنګېد نو تر هغه به یې انتظار وکړ چې بادونه راوالوځي او د لمانځهٔ وخت راشي. د لمانځه د وخت راتګ کې دا حکمت دی چې په لمونځ کې به مجاهدینو لپاره دعاء وشي نو الله تعالی به یې مخې ته ربا کړي.**

**حدیث کې راځي:**

عن النعمان بن مقرن قال : شهدت مع رسول الله ﷺ فكان إذا لم يقاتل أول النهار إنتظر حتى تزول الشمس و تهب الرياح و ينزل النصر.[۲]

---

۱- رواه البخاري.
۲- رواه ابو داود.

**نعمان بن مقرن رضي الله عنه وايي : زه رسول الله ﷺ سره حاضر شوی يم هغه به چې د ورځې په لومړۍ کې ونه جنګېد نو تر هغې به يې انتظار وکړ چې د لمر زوال وشي، بادونه راوالوځي او د الله مدد نازل شي .**

**بل حديث کې راځي :**

عن قتادة عن النعمان بن مقرن قال : غزوت مع رسول الله ﷺ فكان إذا طلع الفجر أمسك حتى تطلع الشمس فإذا زالت الشمس قاتل حتى العصر ثم أمسك حتى يصلى العصر ثم يقاتل. قال قتادة : كان يقال : عند ذلك تهيج رياح النصر و يدعوا المؤمنون لجيوشهم فى صلاتهم.[1]

**قتاده نعمان بن مقرن رضي الله عنه نه روايت کوي هغه وايي : ما رسول الله ﷺ سره غزاګانې کړې دي، کله به چې سبا راوخاته نو تر هغې به ايسار شو چې لمر راوخېژي؛ کله به چې لمر راوخوت نو وبه جنګېد کله به چې ورځ نيمه شوه نو تر هغې به ايسار شو چې د مازيګر لمونځ وکړي بيا به جنګېده قتاده وايي: ويل کېدل به چې دغه وخت کې د مرستې بادونه را الوځي او مؤمنان به خپلو لمونځونو کې خپلو لښکرو ته دعاء وکړي .**

۱- رواه الترمذي .

# د شپې نوم او نښه

د شپې نوم هغه نښــه ده چې مجاهدين يې خپلـو منځـو کې د پېژندلو او له دښمن نه د بېلولو لپـاره ږدي چې کـه د شـپې يو بل سره مخ شي غږ پرې وکړي که د شپې دغـه نـوم او نښـه يـې وويله نو خپل سړی دی او کـه نـه ورتلـه نـو دښـمن دی چې يـا بـه ونيول شي او يـا بـه ووژل شي. د رسـول الله ﷺ پـه وخت کـې بـه سنګرونو کې دغه نوم او نښه وه چې «شعار» بلل کېده.

حديث کې داسې راځي:

عـن المهلـب أن رسـول الله ﷺ قـال: «إن بيـتكم العدو فليكن شعاركم حم لا ينصرون».[1]

مهلب رضي الله عنه نـه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايـل: «کـه د شـپې دريـانـدې دښـمن راشي نـو ستاسـو نښـه بـه (حم لا ينصرون) وي». يعنې خپلو منځو کې به د مخ کېدو په وخت کې همداسې وايئ.

بل حديث کې راځي:

عـن سـمرة بـن جنـدب قـال: كـان شـعار المهـاجرين عبدالله و شعار الأنصار عبدالرحمن.[2]

---

۱- رواه الترمذی و ابوداود.

۲- رواه ابوداود.

**سمره بن جندب** رضي الله عنه **نه روایت دی هغه وایي** : **د مهاجرو نښه** ((**عبدالله**)) **او د انصارو** ((**عبدالرحمن**)) **وه.**

**بل حدیث کې راځي** :

عن سلمة بن الأكوع قال : غزونا مع أبى بكر زمن النبى ﷺ فبيتناهم نقتلهم وكان شعارنا تلك الليلة : أمت أمت.[1]

**سلمه بن الاکوع** رضي الله عنه **نه دی روایت هغه وایي** : **مونږ د پیغمبر** ﷺ **په زمانه کې د ابوبکر** رضي الله عنه **سره غزا کوله نو مونږ په هغوی د شپې برید وکړ او وژل مو؛ په دغه شپه زمونږ نښه** ((**امت امت**)) **وه .**

# احتیاط، تحقیق او پلټنه

**مجاهدین باید په هر قدم، هر وخت، هر ځای او هر چا سره د اسلام د احکامو سره سم عمل وکړي. د یو چا په هکله له تحقیق او پلټنې پرته پرېکړه ونه کړي لکه څرنګه چې جهاد نه کول لویه ګونا ده همدارنګه د بې ګونا وژل او هغه ته زیان رسول هم لویه ګونا ده .**

---

۱- رواه ابوداود .

**الله تعالی فرمايي**:

(( يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا ضَرَبۡتُمۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ فَتَبَيَّنُواْ وَلَا تَقُولُواْ لِمَنۡ أَلۡقَىٰٓ إِلَيۡكُمُ ٱلسَّلَـٰمَ لَسۡتَ مُؤۡمِنٗا تَبۡتَغُونَ عَرَضَ ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا فَعِندَ ٱللَّهِ مَغَانِمُ كَثِيرَةٞۚ كَذَٰلِكَ كُنتُم مِّن قَبۡلُ فَمَنَّ ٱللَّهُ عَلَيۡكُمۡ فَتَبَيَّنُوٓاْۚ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِمَا تَعۡمَلُونَ خَبِيرٗا )).[1]

(( **ای مؤمنانو! کله مو چې د الله په لار کې سفر کاوه نو ښه پلټنه وکړئ او چا چې په تاسو سلام واچاوه هغه ته دا مه وايئ چې ته مؤمن نه يې. ايا تاسو د نړدې ژوند ګټه لټوئ؟ الله سره خو ډېر غنيمتونه دي. تاسو هم مخکې همداسې وئ خو الله درباندې احسان وکړ، نو ښه پلټنه وکړئ، تاسو چې څه کوئ الله په هغو ښه خبر دی** )).

**د خلکو په وژلو کې به احتياط کېږي او کوم اصلي کافر چې توبه وايسته او اسلام يې قبول کړ هغه به نه وژل کېږي خو د مرتدانو حکم جلا دی**.

**حديث کې راځي**:

عن ابن عمر قال: بعث النبی ﷺ خالد بن الوليد إلى

۱- سورة النساء: ۹۴.

بنى جزيمة فدعاهم إلى الإسلام فلم يحسنوا أن يقولوا أسلمنا فجعلوا يقولون : صبأنا صبأنا فجعل خالد يقتل ويأسر و دفع إلى كل رجل منا أسيره حتى إذا كان يوم أمر خالد أن يقتل كل رجل منا أسيره فقلت : والله لا أقتل أسيري ولا يقتل رجل من أصحابي أسيره حتى قدمنا على النبى ﷺ فذكرناه فرفع يديه فقال : « اللهم إنى أبرأ إليك مما صنع خالد؛ مرتين ».[1]

عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی هغه وايي: رسول الله ﷺ خالد بن وليد رضي الله عنه بنی خزيمه ته ورولېږه . هغه هغوی اسلام ته راوبلل، هغوی په دې نه پوهېدل چې ووايي : مونږ اسلام قبول کړ. بلکه ويل يې چې مونږ صابيان شوو مونږ صابيان شوو. خالد ورياندې بريد وکړ څه يې وژل او څه يې بنديانول زمونږ هر يوکس ته يې يو بندي ورکړ. بيا يوه ورځ خالد امر وکړ چې زمونږ هر يو سړی دې خپل بندي ووژني. ما ورته وويل : په الله قسم دی چې نه زه خپل بندي وژنم او نه به زما له ملګرو څوک خپل بندي وژني . تر دې چې مونږ پيغمبر ﷺ ته راغلوو نو دا خبره مو ورته وکړه . هغه خپل دواړه لاسونه پورته کړل او ويې فرمايل : «ای الله! زه له هغه کار نه تاته بېزاره يم چې خالد بن وليد کړی دی». دا خبره يې دوه ځل وکړه .

د مرتد په هکله ځينې علماء وايي چې درې ورځو پورې به مهلت ورکول کېږي چې بېرته د اسلام منلو ته راستون شي له

---

١- رواه البخاري .

درې ورځو وروسته به وژل کېږي بیا یې توبه هم نه قبلېږي او نور علماء وایي چې مرتد به په هر حالت کې وژل کېږي.

اوس چې امریکایانو سره کوم خلک ولاړ دي او خپل دین، وطن او ناموس یې پرې خرڅ کړ هغوی مرتد شوي دي او ډېر وخت پرې تېر شوی دی دوی ډېر لوی مجرمان دي دوی به خامخا وژل کېږي.

بل احتیاط دا دی چې کارتوس، غشي او نورې وسلې به بې ځایه نه استعمالېږي او د برید په وخت کې به دومره له ځان سره پرېښودل کېږي چې د ناڅاپي او بېړنیو حالاتو په وخت کې ترې کار واخیستل شي.

حدیث کې راځي:

عن أبي أسيد أن النبي ﷺ قال لنا يوم بدر حين صففنا لقريش و صفوا لنا: «إذا أكثبوكم فارموهم و استبقوا نبلكم».[1]

ابو اسید رضي الله عنه نه روایت دی چې کله مونږ د بدر په ورځ د قریشو مقابل کې صف جوړ کړ او هغوی مونږ ته صف جوړ کړ نو پېغمبر ﷺ مونږ ته وویل: «کله چې هغوی تاسو ته رانږدې شول نو ویې ولئ او غشي مو لږ پرېږدئ».

همدارنګه د برید نه مخکې د تورې رااېستل یا د ټوپک لټ وهل هم سم نه دي ځکه چې خطر لري کله چې دښمن لنډ راشي نو د برید په وخت کې به بیا توره له تېکي رااېستل کېږي

---

۱- رواه البخاري.

او د ټوپک لټ به وهل کېږي.

**حدیث کې راغلي:**

عن أبی أسید قال : قال رسول الله ﷺ یوم بدر: «إذا أکثبوکم فارموهم و لا تسلوا السیوف حتی یغشوکم».[۱]

ابو اسید رضي الله عنه نه روایت دی هغه وایي: رسول الله ﷺ د بدر په ورځ وفرمایل: «کله چې هغوی تاسو ته لنډ راغلل نو ویې ولئ او تر هغې تورې تېکي نه مه راباسئ تر څو چې رالنډ شي».

# د لارو ړنګول او تنګول

د لارو تنګول او ړنګول ناروا دي.

**حدیث کې راغلي:**

عن سهل بن معاذ الجهنی عن أبیه قال : نزلنا علی حصن سنان بأرض الروم مع عبدالله بن عبدالملك فضیق الناس المنازل و قطعوا الطریق، فقال معاذ : أیها الناس إنا غزونا مع رسول الله ﷺ غزوة کذا و کذا فضیق الناس الطریق فبعث النبی ﷺ منادیا فنادی : «من ضیق منزلا أو قطع طریقا فلا

۱- رواه ابو داؤد.

جهاد له ».[1]

سهل بن معاذ جهني رضي الله عنه له خپل پلار نه روایت کوي هغه وایي: مونږ عبدالله بن عبدالملک سره د روم په ځمکه د «سنان» په کلا ورښکته شوو نو خلکو پړاوونه تنګ کړل او لارې یې پرې کړې، معاذ وویل: ای خلکو! مونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم سره دادا غزاګانې کړې دي، خلکو لاره تنګه کړه نو پیغمبر صلی الله علیه وسلم یو اعلان کوونکی ولیږه هغه غږ وکړ: «چا چې پړاو تنګ کړ یا یې لاره ړنګه کړه نو د هغه جهاد ونه شو».

# ړنګول او سېځل

د دښمن په خاوره کې د هغوی غیر منقول املاک لکه د هوټلونو، دفترونو، باغونو او داسې نورو سېځل روا دي خو که ځای فتح شي یا یې فتح کول باوري وي او بیا دغه املاک د مسلمانانو په ښه راځي نو د هغو سېځل منع دي همدارنګه د کافرانو د یرغل لاندې د مسلمانانو د ځمکو او املاکو سېځل او ړنګول هم منع دي لکه په افغانستان او عراق چې امریکایانو یرغل کړی دی او د مسلمانانو املاک یې غصب کړي دي نو په هغو کې د هغو ړنګول روا نه دي چې هغوی پکې اوسېږي او په راتلونکي کې مسلمانان ورته اړتیا لري لکه: د برېښنا بندونه،

---

۱- رواه احمد.

روغتونونـه، ښـارونه او کلـي، ښـوونځي او پوهنتونونـه.......د داسې عام المنفعه ځايونو سېځل او ړنګول منـع دي. همدارنګـه کليسـاوې او معبدونـه سـېځل او ړنګـول هـم منـع دي خـو کـوم معبدونه چې اسماني دين لکه نصرانيت او يهوديت تـه منسـوب نه وي د هغو ړنګول روا بلکه ضروري دي.

حديث کې راځي:

عن جرير قال : قال لي رسول الله ﷺ : «ألا تريحني من ذى الخلصة؟» و كان بيتا فى خثعم يسمى الكعبة اليمانية قال: فانطلقت فى خمسين و مائة فارس من أحمس و كانوا أصحاب خيل قال: و كنت لا أثبت على الخيل فضرب فى صدري حتى رأيت أثر أصابعه فى صدري و قال : «اللهم ثبته واجعله هاديا مهديا» فانطلق إليها فكسرها و حرقها ثم بعث إلى رسول الله ﷺ بخبره فقال رسول جرير : والذى بعثك بالحق ما جئتك حتى تركتها كأنه جمل أجوف أو أجرب. قال: فبارك فى خيل أحمس و رجالها خمس مرت.[١]

جرير رضي الله عنه نـه روايـت دی هغـه وايـي: ماتـه رسـول الله ﷺ وفرمايل: «ايا ذوالخلصې نه مې نـه دمـه کـوې؟» ذوالخلصـه د يمن د خثعم په قبيله کې يوه کوټه وه چې يماني کعبه بلل کېـده. جـابر وايـي: زه د احمـس قبيلـې د پنځوسـو اس سـپرو سـره روان

---

١- رواه البخاري.

شوم او هغوی د اسونو خاوندان وو؛ جابر وایي چې زه په اس نه شوم ټینګېدی نو رسول الله ﷺ په سینه کې داسې ووهلم چې د هغه د ګوتو نښې مې په خپله سینه کې ولیدې او ویې فرمایل: ((ای الله ټینګ یې کړه او لارښوونکی او په سمه لاریې وګرځوه)) جابر ذوالخلصې ته لاړ، رنګه یې کړه او ویې سوځوله، بیا یې رسول الله ﷺ ته د هغې خبر ورولېږه؛ د جریر استازي رسول الله ﷺ ته وویل: زما دې په هغه ذات قسم وي چې ته یې په حقه رالېږلی یې، تر هغې تا ته رانغلم ترڅو مې چې یماني کعبه داسې رنګه او بدرنګه پرېښوده لکه پمن اوښ. راوي وایي: رسول الله ﷺ د احمس قبیلې اسونو او سړیو ته پنځهٔ ځل د برکت دعاء وکړه)).

رسول الله ﷺ ته الله تعالی د بني نضیرو خورمادونو د سېځلو او پرې کولو حکم وکړ او دا ددې لپاره چې مدینې کې د هغوی اسره او تمه ورکه شي.

الله تعالی فرمايي:

((مَا قَطَعْتُم مِّن لِّينَةٍ أَوْ تَرَكْتُمُوهَا قَآئِمَةً عَلَىٰٓ أُصُولِهَا فَبِإِذْنِ ٱللَّهِ وَلِيُخْزِيَ ٱلْفَٰسِقِينَ)).[1]

((تاسو چې کومې ونې پرې کړې یا مو په خپلو بېخونو ولاړې پرېښودې نو دا د الله په حکم وو او ددې لپاره وو چې

---

۱- سورة الحشر: ۵.

**بدکاران رسوا کړي)).**

**حديث کې راځي:**

عن ابن عمر أن النبی ﷺ حرق نخل بنی النضیر قال: و لها يقول حسان بن ثابت:

و هان على سراة بنی لؤيٍ حريق بالبويرة مستطير

و فی ذلك نزلت : (( مَا قَطَعْتُم مِّن لِّينَةٍ أَوْ تَرَكْتُمُوهَا قَآئِمَةً عَلَىٰٓ أُصُولِهَا فَبِإِذْنِ ٱللَّهِ )). [1]

**عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی چې پېغمبر ﷺ د نبي نضيرو د خورماو ونې وسېځلې او حسان بن ثابت رضي الله عنه د همدې سېځلو په هلکه د اشعر ويلی دی:**

**بويره ځای کې د بني لؤی په سردارانو خپور اور اسان شو.**

**او په همدې هکله دا ايت نازل شوی دی چې: (( مَا قَطَعْتُمْ ....)).**

---

۱- رواه البخاري و مسلم.

# د خرپ او ترپ (غلچکي) بریدونه

دخرپ اوترپ (ګوریلا او چریکي) عملیات او بریدونه دې ته ویل کیږي چې په دښمن ناڅاپي برید وکړې او بیا ورک شې، ځای بدل کړې او د دښمن له سترګو پنا شې، ځای دې معلوم او څرګند نه وي هر ځای دې چې دښمن ومونده برید پرې وکړې، مرکز، پوسته، ګزمه، یو او ډېرو باندې بریدونه کوې، اختطاف یې کوې، وژنې یې، غنیمتونه ترې اخلې او په هرځای، هر وخت او هرې لارې چې وي او لاس دې پرې برشي نو ایله پرې نه کوې دا ډول دخرپ اوترپ عملیات او بریدونه دښمن تنګوي، ډېر زیان ور رسوي، وارخطا کوي یې او مجاهدین تقویه کوي، غنیمتونه لاس ته ورځي او که سرکښان یې اسیران شي نو وژل او فدیې اخیستلو کې چې هر کار ګټور ؤ هغه ورسره کول په کار دي مجاهدین کولی شي چې د ډېر پنډ مبلغ په بدل کې یې پرېږدي او مجاهدین پرې تقویه کړي. غلچکي بریدونه هر ځای کې کېدی شي، د کمین په نیولو، برید کولو او ډېرو لارو باندې صورت مومي . .

الله تعالی فرمایي:

(( فَٱقۡتُلُواْ ٱلۡمُشۡرِكِينَ حَيۡثُ وَجَدتُّمُوهُمۡ وَخُذُوهُمۡ

وَٱحۡصُرُوهُمۡ وَٱقۡعُدُواْ لَهُمۡ كُلَّ مَرۡصَدٖۚ ››.[۱]

‹‹ نو مشرکان مو چې هر ځای ومونديل ويې وژنئ او ويې نيسئ، راګېر يې کړئ او په هرې مور چې کې ورته کېنئ ››.

‹‹ مرصد ›› مور چې، پټ کمين، د څارنې ځای او د نيولو، وژلو او محاصره کولو د پټېدو ځای ته ويل کېږي .

دخرپ اوترپ چريکي (غلچکي) عمليات ډېر اغېزمن دي او مجاهدين بايد د اړتيا په وخت کې تري کار واخلي. د روسانو په خلاف جهاد کې په افغانستان کې غلچکي عمليات ډېر بريالي وو او روسانو د همدې غلچکوعملياتو نه ماتې وخوړه همدارنګه چيچنيا کې د مجاهدينو غلچکي عمليات او په عراق او افغانستان کې د امريکايانو او ناټو خلاف غلچکي عمليات ډېر بريالي او اغېزمن دي غلچکي عمليات دې ته وايي چې پټ په پټه په دښمن بريد وکړې او دښمن ته د سرشتې، دفاع او د مجاهدينو د نيولو فرصت او موقع ورنه کړې دا عمليات دښمن ډېر تنګوي. مونږ ته به امريکايي محققينو په ګوانتنامو کې د غلچکو عملياتو نه ډېر شکايت کاوه او راته به يې ويل چې د ترهګرو (مجاهدينو) ځای معلوم نه دی چې مونږ پرې بمبار وکړو ناڅاپي له يوه ځای نه را اوځي، په مونږ مرګاني بريد کوي او بيا په بيره پنا کېږي مونږ ډېرې لويې ستونزې سره مخ يوو. اوس د کافرانو د ډېرو درندو وسلو او وسائلو په خلاف غلچکي عمليات له جبهه يي جنګ نه ډېر ګټور دي ځکه چې

---

۱- سورة التوبة : ۵ .

مجاهدینو سره د وسلو او وسائلو د نیمګړتیاؤ له امله په جبهه یي جنګ کې د هوایي بمبار او میزائلو مقابله سخته ده خو د الله تعالی په مرسته په ډېرو ځایونو کې اوس جبهه یي جنګونه هم د مجاهدینو د بریا سره سم روان دي او الحمدلله ښه اغېزمن او ماتوونکي دي.

نو مجاهدین باید د سیمې شرائط او خپل ظروف په پام کې ونیسی او بیا پرېکړه وکړي چې کوم ډول عملیات ډېر اغېزمن او د دښمن ماتوونکي او تاوان وراړوونکي دي؟ بیا دې هماغسې وکړي چې کوم ډول ډېر اغېزمن برېښېدل نورې پایلې او نتائج د الله تعالی په لاس کې دي. دخرپ اوترپ عملیات د رسول الله ﷺ په وخت کې هم د هغه په امر شوي دي چې د بېلګې په توګه به مونږ یوه کیسه راواخلوو:

مدینې منورې کې یو ډېر سرکشه یهودي ؤ چې د رسول الله ﷺ سره په مخالفت او اسلام سره په دښمنۍ کې ډېر مخکې ؤ نوم یې عبدالله بن ابی الحقیق اوکنیه یې ابو رافع ؤ د سرکشۍ ،مخالفت او ضرر رسولو نه یې لاس نه اخیسته او نور خلک به یې هم لمسول. رسول الله ﷺ څو کسه انصار دخرپ اوترپ برید لپاره ورولېږل چې ویې وژني هغوی لاړل په هغوی کې یو عبدالله بن عتیک ؤ هغه وایي: زه د ماښام تیاره غوني کې د هغوی کلا ته ورننوتم او د څارویو په غوجل کې پټ شوم هغوی د کلا دروازه بنده کړه بیا یې چې ولیدل یو خرورک ؤ هغوی د خره لټون پسې ووتل زه هم ورسره ووتم او داسې مې ورښوده چې ګني زه هم د هغوی کوم مېلمه یم او خر ورسره لټوم هغوی

خر ومونده بيرته کلا ته ستانه شول او زه هم ورسره ننوتم هغوی د کلا ور بند کړ زه يوځای پټ وم ورکتل مې چې د وره د قلف کونجي ګانې يې په يوه سوړه کې کېښودې انتظار مې وکړ کله چې هغوی ټول ويده شول نو کونجي ګانې مې راواخيستې د کلا ور مې بيرته کړ او خلاص مې پرېښود بيا د ابو رافع کوټې ته ورننوتم تياره وه ورغږ مې کړ چې: ابو رافعه! هغه ځواب راکړ ما د هغه د غږ په ځای بريد وکړ او په توري مې وواهه؛ هغه يوه چيغه ووهله زه ووتم بيا بيرته ورننوتم او داسې مې وروښوده چې ګنې زه يې مرستې ته راغلم؛ غږ مې بدل کړ او ورغږ مې کړ چې ابورافعه ! هغه راته وويل: مور دې بوره شه څه در باندې شوي دي؟ ما ورته وويل: ولې؟ څه پېښه درته شوې ده؟ هغه وويل: زه نه پوهېږم چې څوک راننواته او ويې وهلم؟! عبدالله وايي : ما د توري څوکه د هغه په خېټه ورکېښوده بيا مې پرې په سينه ورزور کړ او تر هغې مې ور زور کوله چې د هډوکو کرپا رمې واورېد بيا ووتم او ډېر ترور وم د ابو رافع کوټه بالاخانې کې وه نو په پوړۍ کېوتم چې وغورځېدم او پښه مې له بنده شوه؛ زه دباندې خپلو ناستو ملګرو ته ورووتم او ورته ومې ويل چې زه د شپې کورته نه ستنېږم او تر هغې دلته کېنم چې سهار کې د ابورافع د مرګ اعلان واورم. بيا تر هغې ناست وم چې د ابو رافع د مړينې اعلانونه مې واورېدل. په لوړ غږ يې چيغې وهلې چې د حجازيانو تاجر: ابو رافع مړ شوی دی. دا مې چې واورېدل ټول دردونه مې هېر شول او پېغمبر ﷺ ته راغلوو هغه ته مې کيسه وکړه هغه را ته دعاء وکړه او پښه باندې يې راته لاس

راښکود پښه مې داسې جوړه شوه لکه چې هيڅ نه وي خوږېدلې». [۱]

همدارنګه رسول الله ﷺ د کعب بن اشرف د وژلو لپاره محمد بن مسلمه ولېږه او په غلچکي برید يې وواژه. [۱]

۱- بخاري اونورو دحديثواوتاريخ کتابونويې روايت کړی دی.

# صلاة خوف (د وېرې لمونځ)

اسلام کې د لمانځه زيات اهميت راغلی دی او قران کريم کې ځای په ځای د لمانځۀ حکم دی ټول مسلمانان بيا په ځانګړې توګه مجاهدين بايد لمانځۀ ته زياته پاملرنه وکړي ځوک چې لمونځ نه کوي د هغه جهاد نه کېږي ځکه چې لمونځ د مسلمان او کافر توپير ګڼل شوی دی.

رسول الله ﷺ فرمايي:

(( العهد الذي بيننا و بينهم الصلاة فمن تركها فقد كفر )).[1]

(( زمونږ او د هغوی تر منځ تړون لمونځ دی نو چا چې لمونځ پرېښود هغه بې شکه کافر شو )).

او بل حديث کې داسې راځي:

عن جابر قال: قال رسول الله ﷺ: (( بين العبد و بين الكفر ترك الصلاة )).[2]

جابر رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: رسول الله ﷺ فرمايلي دي: (( د بنده او کفر منځ کې د لمانځه پرېښودل دي )). معنا دا چې چا لمونځ پرېښود نو کفر ته ورننواته او کافر شو.

---

۱- رواه احمد والترمذي والنسائی و ابن ماجه.

۲- رواه مسلم.

نو د لمانځه په اهميت کې ډېر زيات نصوص راغلي دي او لمونځ د اسلام له پنځو لويو بنسټونو څخه دی له همدې امله د جهاد په سنګر کې هم د لمانځه پرېښودل روا نه دي بلکه د مجاهدينو د اسانتيا لپاره ((صلاة خوف)) (د وېرې لمونځ) دی. الله تعالی فرمايي:

(( وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَن تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَاةِ إِنْ خِفْتُمْ أَن يَفْتِنَكُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا ۚ إِنَّ الْكَافِرِينَ كَانُوا لَكُمْ عَدُوًّا مُّبِينًا وَإِذَا كُنتَ فِيهِمْ فَأَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلَاةَ فَلْتَقُمْ طَائِفَةٌ مِّنْهُم مَّعَكَ وَلْيَأْخُذُوا أَسْلِحَتَهُمْ فَإِذَا سَجَدُوا فَلْيَكُونُوا مِن وَرَائِكُمْ وَلْتَأْتِ طَائِفَةٌ أُخْرَىٰ لَمْ يُصَلُّوا فَلْيُصَلُّوا مَعَكَ وَلْيَأْخُذُوا حِذْرَهُمْ وَأَسْلِحَتَهُمْ ۗ )).[۱]

(( کله چې تاسو په ځمکه کې سفر کاوه او وېرېدئ چې کافران به څه کړاو درواړوي نو په تاسو کوم باک نشته چې لمونځ لنډ کړئ. کافران ستاسو ښکاره دښمنان دي. او کله چې ته په دوی کې وې او لمونځ دې ورکاوه نو د دوی يوه ډله دې تا سره ودرېږي او خپله وسله دې واخلي کله يې چې سجدې وکړې نو ستاسو شاته دې شي او بله ډله دې راشي چې لمونځ يې نه وي کړی هغوی دې تاسره لمونځ وکړي او پوره پاملرنه دې وکړي او

۱- سورة النساء: ۱۰۱-۱۰۲.

خپله وسله دې واخلي )).

د وېرې د لمانځه کولو ډېرې طريقې او ډولونه دي چې مونږ يې هغه ډولونه را اخلوو چې په صحيحو احاديثو کې راغلي دي په دې ډولونو کې چې هر ډول لمونځ د ظروفو او شرائطو سره مناسب او برابر وي هغه به کېږي. خو د لمانځه پرېښودل په هيڅ صورت کې روا نه دي او څوک چې لمونځ نه کوي د هغه جهاد نه کېږي د لمانځه اهميت له دې هم څرګندېږي چې د جنګ په سنګر او د خطر په وخت کې هم بايد وشي خو اسانتياوې پکې دا دي چې سنت پکې نشته، فرض قصر دی او د کولويې ډېر ډولونه دي چې هر يو مناسب او اسان ؤ هماغه بايد وشي.

# لومړی ډول

دا هغه طريقه ده چې قران کريم او احاديثو دواړو کې راغلې ده:

(( مجاهدين به دوه ډلې شي يوه ډله به د دښمن لور ته پيره کوي او بله به اما سره ودرېږي يو رکعت به امام سره پوره کړي بيا به دا ډله پيرې ته لاړه شي او هغه بله ډله به راشي چې لمونځ کې نه وو شريک، هغوی به هم امام سره يو رکعت وکړي امام به سلام وګرځوي او دا ډله به بل رکعت ځانته ځانته وکړي او

سلام به وګرځوي بيا به هغه بله ډله راشي او هغوی به هم پاتې رکعت يوائې وکړي ». [۱]

# دويم ډول

دويمه طريقه دا د چې کله دښمن د قبلې په لورڅنو مجاهدين به امام پسې دوه صفتونه جوړ کړي قرائت او رکوع به په شريکه سره وکړي بيا به سجدې ته لومړی صف امام سره لاړ شي او دويم صف به په ولاړه پاتې شي کله چې امام او لومړی صف له سجدو راپاڅېدل نو دويم صف به سجدې وکړي بيا به را پاڅېږي . دوهم رکعت کې به لومړی صف وروسته شي او دوهم به را مخکې شي بيا به ټول په شريکه قرائت او رکوع وکړي، کله چې رکوع نه امام او مقتديان راپورته شول نو لومړی صف به امام سره سجدې ته ښکته شي او دويم صف به ولاړ پاتې شي کله چې امام او لومړي صف سجدې وکړې او تشهد ته را کېناستل نو دويم صف به سجدې وکړي، بيا به په تشهد کې ټول سره شريک شي او امام او مقتديان به په ګډه سلام وګرځوي». [۲]

په لمانځۀ کې به د قبلې لور ته د دښمن څارنه کوي او ګوري به .

---

۱- رواه البخاري و مسلم والترمذي و ابوداود والنسائی و ابن ماجه والبيهقی و احمد .

۲- رواه البخاري و مسلم و احمد والبيهقی و ابوداود والنسائی .

# دریم ډول

دريمه طريقه داده چې مجاهدين به دوه ډلې شي يوه ډله به امام سره په لمانځه ودرېږي او بله به د دښمن لور ته څوکۍ کوي امام به دې يوې ډلې ته يو رکعت لمونځ ورکړي او بيا به ولاړ پاتې شي دا ډله به بل رکعت ځانته ځانته پوره کړي او سلام به وګرځوی امام به د بلې ډلې د راتلو پورې ولاړ وي او انتظار به کوي ددې ډلې د سلام نه وروسته به دوهمه ډله راشي او هغوی به امام سره يو رکعت وکړي بيا به امام په ناسته انتظار وکړي او هغوی به بل رکعت ځانته ځانته پوره کړي او بيا به امام سره په تشهد کې شريک شي تشهد به په ګډه ووايي او دوی به بيا امام سره سلام وګرځوي او په دې ترتيب د امام او مقتديا نو دوه دوه رکعته پوره شول.[1]

---

۱- رواه مسلم و ابوداود والبيهقى و احمد .

# څلورم ډول

څلورمه طريقه داده چې مجاهدين به دوه ډلې شي يوه ډله به څوکۍ کوي او بله به امام سره دوه رکعته وکړي امام به ودرېږي او دا ډله به سلام وګرځوي بيا به بله ډله راشي هغوی به هم امام سره دوه رکعته وکړي او په ګډه به سلام وګرځوي نو د امام به څلور رکعته شي او د مقتديانو به دوه دوه.[1]

# پنځم ډول

پنځمه طريقه دا ده چې مجاهدين به دوه ډلې شي يوه ډله به څوکۍ کوي او بله به امام سره يو رکعت لمونځ وکړي امام به ولاړ وي او دا ډله به په يو رکعت سلام وګرځوي بيا به هغه بله ډله راشي هغوی به هم امام سره يو رکعت وکړي او امام سره به سلام وګرځوي نو د امام به دوه رکعته شي او د مقتديانو به يو يو رکعت.[2]

---

۱- رواه مسلم و ابوداود والبيهقى و احمد.

۲- رواه الترمذي والنسائي.

دا هم صحيحو احاديثو كې راغلې ده نو كه لمونځ څلور ركعتي وي او كه دوه ركعتي مقتديانو لپاره همدا يو ركعت بس كېږي . د ماښام لمانځه كې قصر نه كېږي نو هغه به يوه ډله امام سره دوه ركعته وكړي او بله به يو ركعت وكړي بيا به لومړۍ ډله يو ركعت بل وكړي او دويمه به دوه ركعته، نور ځانته ځانته وكړي .

# شپږم ډول

شپږمه طريقه دا ده چې دښمن كله د قبلې لور ته نه وي نو مجاهدين مقتديان به دوه ډلې شي، يوه ډله به امام پسې صف جوړ كړي او بله ډله به د دښمن لور ته څوكۍ كوي، خو دواړه ډلې به امام سره په تكبير تحريمه كې شريكې شي، كه ددې يوې ډلې مخ قبلې ته نه وي هم خير دی، دا يوه ډله به څوكۍ كوي او دا بله به امام سره يو ركعت وكړي بيا به دا ډله لاړه شي څوكۍ ته به ودرېږي او هغه بله به راشي امام به په ولاړه انتظار كوي او هغوی به يو ركعت ځانته ځانته وكړي او دوهم به امام سره په شريكه وكړي دوی به امام سره ناست وي او هغه بله ډله به راشي يو ركعت به ځانته ځانته وكړي بيا به تشهد ووايي او ټول به په شريكه سلام وګرځوي .[1]

---

۱- رواه ابوداود والنسائي .

# اوم ډول

اومه طریقه دا ده چې مقتدیان به دوه ډلې شي امام به یوې سره دوه رکعته لمونځ وکړي او سلام به وګرځوي بیا به بله ډله راشي امام به هغوی سره هم دوه رکعته لمونځ وکړي او سلام به وګرځوي نو امام به دوه ځل په جمې لمونځ ورکړي . د څلورمې طریقې سره یې توپیر دا دی چې هلته امام منځ کې سلام نه دی ګرځولی او څلور واړه یې په یو سلام کړي دي او دلته یې دواړه ډلو ته بیله بیله جمه ورکړې ده او هرې یوې کې یې سلام ګرځولی دی .[1]

# اتم ډول

اتمه طریقه دا ده چې امام پسې به دوه ډلې شي او دوه صفونه به جوړ کړي یوه ډله به امام سره یو رکعت وکړي بیا به امام په ولاړه انتظار کوي دا ډله به بل رکعت ځانته ځانته وکړي بیا به دوی وروسته شي او هغه بله ډله به راوړاندې شي هغوی به امام سره یو رکعت وکړي او بل به ځانته ځانته پوره کړي بیا به ټول په شریکه سلام وګرځوي .[2]

---

۱- رواه النسائي .

۲- رواه مسلم و البیهقي .

# قنوت نازله

د نازلې (پېښې) قنوت هغه وخت ويل کېږي چې په مسلمانانو کوم مصيبت راشي، کومه پېښه وشي او کومه اجتماعي ستونزه ورته پيدا شي .

قنوت نازله د پنځه وخته لمانځه يا دسهار او ماښام يا يوائې د سهار ر فرض لمانځه د اخري رکعت د رکوع نه دراپورته کېدو په وخت کې لوستل کېږي چې امام او مقتديان د دعاء لاسونه پورته کوي، امام دعاوې لولي او مقتديان ورپسې امين وايي :

حديث کې راځي :

عن أنس قال : « قنت النبى ﷺ شهرا يدعوا على رعل وذكوان ».[1]

انس رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: پېغمبر ﷺ يوه مياشت رعل او ذکوان قبيلو ته ښېرې کولې.

او دا ځکه چې هغوی په غدر سره صحابه وژلي وو.

بل حديث کې راځي :

عن أنس بن مالك قال : إنما قنت رسول الله ﷺ بعد الركوع شهرا أراه كان بعث قوما يقال لهم القراء زهاء سبعين

---

۱- رواه البخاري .

رجلا إلى قوم من المشركين دون أولئك و كان بينهم و بين رسول الله ﷺ عهد فقنت رسول الله ﷺ شهرا يدعوا عليهم [۱].

**انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت هغه وايي: رسول الله ﷺ له رکوع وروسته يوه مياشت قنوت لوستی ؤ. هغه د اويا کسانو په شمېر څه خلک له نجدنه د ېخوا د مشرکانو يو قوم ته لېږلي وو چې قاريان بلل کېدل او د هغو مشرکانو او رسول الله ﷺ تر منځ تړون ؤ (هغوی تړون کې غدر وکړ) نو رسول الله ﷺ يوه مياشت قنوت لوسته او هغوی ته يې ښېرې کولې.**

**بل حديث کې راځي:**

عن أنس بن مالك قال : كان القنوت في المغرب والفجر. [۲]

**د انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: قنوت د ماښام او سهار په لمانځهٔ کې ؤ.**

**قنوت کې د وترو قنوت او نورې ګڼې دعاوې لوستلی شي؛ د قران کريم دعاوې، د احاديثو او نورې دعاوې د عربي په صحيحو الفاظو لوستلی شي؛ همدارنګه مسلمانانو ته دعاوې، کافرانو او د اسلام دښمنانو ته ښېرې، د بنديانو د ازادېدو لپاره دعاوې او داسې نورې د خير دعاګانې قنوت نازله کې کېږي او**

---

۱- رواه البخاري.
۲- رواه البخاري.

**کافرانو ته د ښېرو په وخت کې نومونه اخيستل هم روا دي .**

**قنوت نازله کې په نورو سريېره دا لاندې دعاوې هم لوستلی شي:**

اَللّٰهُمَّ اهْدِنَا فِيْ مَنْ هَدَيْتَ وَ عَافِنَا فِيْ مَنْ عَافَيْتَ وَ تَوَلَّنَا فِيْ مَنْ تَوَلَّيْتَ وَ بَارِكْ لَنَا فِيْمَا أعْطَيْتَ وَ قِنَا شَرَّ مَا قَضَيْتَ فِإِنَّكَ تَقْضِيْ وَلاَ يُقْضى عَلَيْكَ إِنَّهُ لاَ يَذِلُّ مَنْ وَّالَيْتَ وَلاَ يَعِزُّ مَنْ عَادَيْتَ تَبَارَكْتَ رَبَّنَا وَ تَعَالَيْتَ. اَللّٰهُمَّ اقْسِمْ لَنَا مِنْ خَشْيَتِكَ مَا تَحُوْلُ بِه بَيْنَنَا وَ بَيْنَ مَعَاصِيْكَ وَ مِنْ طَاعَتِكَ مَا تُبَلِّغُنَا بِه جَنَّتَكَ وَ مِنَ الْيَقِيْنِ مَا تُهَوِّنُ بِه عَلَيْنَا مُصِيْبَاتِ الدُّنْيَا، وَ مَتِّعْنَا بِأَسْمَاعِنَا وَأَبْصَارِنَا وَ قُوَّاتِنَا مَا أَحْيَيْتَنَا وَاجْعَلْهُ الْوَارِثَ مِنَّا وَاجْعَلْ ثَأْرَنَا عَلى مَنْ ظَلَمَنَا، اَللّٰهُمَّ لاَ تَجْعَلِ الدُّنْيَا أَكْبَرَ هَمِّنَا وَلا مَبْلَغَ عِلْمِنَا وَانْصُرْنَا عَلى مَنْ عَادَانَا وَلاَ تَجْعَلْ مُصِيْبَتَنَا فِىْ دِيْنِنَا. اَللّٰهُمَّ رَحْمَتَكَ نَرْجُوْا فَلا تَكِلْنَا إِلى أَنْفُسِنَا أَوْ إِلى أَحَدٍ مِّنْ خَلْقِكَ طَرْفَةَ عَيْنٍ وَ أَصْلِحْ لَنَا شَأْنَنَا كُلَّهُ اَللّٰهُمَّ اسْتُرْ عَوْرَاتِنَا وَ آمِنْ رَوْعَاتِنَا، اَللّٰهُمَّ انْصُرْنَا وَلاَ تَنْصُرْ عَلَيْنَا وَامْكُرْلَنَا وَلاَ تَمْكُرْ عَلَيْنَا وَ زِدْنَا وَلاَ تَنْقُصْنَا وَآثِرْنَا وَلاَ تُؤْثِرْ عَلَيْنَا، وَأَكْرِمْنَا وَلاَ تُهِنَّا اَللّٰهُمَّ انْصُرِ الْإِسْلاَمَ وَالْمُسْلِمِيْنَ وَاخْذُلِ الْكَفَرَةَ وَالْمُشْرِكِيْنَ. اَللّٰهُمَّ انْصُرْ مَنْ نَصَرَ دِيْنَ مُحَمَّدٍ ﷺ وَاجْعَلْنَا مِنْهُمْ، وَاخْذُلْ مَنْ خَذَلَ دِيْنَ مُحَمَّدٍ ﷺ وَلاَ تَجْعَلْنَا

مِـنْهُمْ. اَللّهُـمَّ انْصُـرِ الْمُجَاهِـدِيْنَ فِـیْ کُـلِّ مَکَـانٍ. اَللّهُـمَّ أَنْـجِ الْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ، اَللّهُمَّ فُكَّ أَسْرَ إِخْوَانِنَا مِنْ سُجُوْنِ الطَّوَاغِيْـتِ. اَللّهُـمَّ عَلَيْـكَ بِـالْيَهُوْدِ وَالنَّصَـارٰى، اَللّهُـمَّ عَلَيْـكَ بِالشُّيُوْعِيِّيْنَ وَالْهَنُوْدِ اَللّهُمَّ عَلَيْكَ بِأَمْرِيْكَا وَ مُتَّحِدِيْهَا وَأَعْوَانِهَا وَ جَوَاسِيْسِـهَا وَ عُمَلاَئِهَـا. اَللّهُـمَّ عَلَيْـكَ بِطَوَاغِيْـتِ الْعَـرَبِ وَ الْعَجَمِ. اَللّهُمَّ عَلَيْكَ بِأَعْدَائِكَ وَ أَعْدَائِنَا كُلِّهِمْ أَجْمَعِيْنْ. اَللّهُمَّ شَتِّتْ شَمْلَهُمْ وَ فَرِّقْ جَمْعَهُمْ وَ دَمِّرْ دِيَارَهُمْ وَ خَرِّبْ تَدَابِيْرَهُمْ وَ زَلْزِلْ أَقْدَامَهُمْ وَ تَـرِّبْ عَـزَائِمَهُمْ وَ خُذْهُمْ أَخْذَ عَزِيْزٍ مُّقْتَـدِرْ اَللّهُمَّ اشْدُدْ وَطْأَتَكَ عَلَيْهِمْ. اَللّهُمَّ أَرِنَا فِيْهِمْ عَجَائِبَ قُدْرَتِكَ اَللّهُمَّ أَرِنَا فِيْهِمْ يَوْمًا أَسْوَدَا. اَللّهُمَّ أَنْزِلْ بِهِمْ بَأْسَكَ الَّذِيْ لاَ تَـرُدُّهُ عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِيْنَ وَانْجِنَا مِنْ بَيْنِهِمْ سَالِمِيْنَ غَانِمِيْنَ. اَللّهُمَّ أَصْلِحْ لَنَا دِيْنَنَا الَّذِيْ هُوَ عِصْمَةُ أَمْرِنَا وَ أَصْلِحْ لَنَا دُنْيَانَا الَّتِیْ فِيْهَا مَعَاشُنَا وَ أَصْلِحْ لَنَا آخِرَتَنَا الَّتِیْ فِيْهَا مَعَادُنَا وَاجْعَلِ الْحَيَاةَ زِيَادَةً لَّنَا فِیْ کُلِّ خَيْرٍ وَاجْعَلِ الْمَوْتَ رَاحَةً لَّنَا مِنْ کُلِّ شَـرٍّ. اَللّهُـمَّ إِنَّـا نَعُـوْذُ بِرِضَـاكَ مِـنْ سَـخَطِكَ وَ بِمُعَافَاتِـكَ مِـنْ عُقُوْبَتِـكَ وَ نُعُـوْذُ بِـكَ مِنْـكَ لاَ نُحْصِـیْ ثَنَـاءً عَلَيْـكَ أَنْـتَ کَمَـا أَثْنَيْتَ عَلٰى نَفْسِكَ. اَللّهُمَّ إِنَّا نَسْأَلُكَ مُوْجِبَاتِ رَحْمَتِكَ وَعَزَائِمَ مَغْفِرَتِكَ وَالسَّلاَمَةَ مِنْ کُلِّ إِثْمٍ وَالْغَنِيْمَةَ مِنْ کُلِّ بِرٍّ وَالْفَوْزَ بِالْجَنَّةِ وَالنَّجَاةَ مِنَ النَّارِ. اَللّهُمَّ أَحْسِنْ عَاقِبَتَنَا فِیْ الأُمُوْرِ کُلِّهَا وَ أَجِرْنَا

مِـنْ خِـزْيِ الـدُّنْيَا وَ عَـذَابِ الآخِـرَةِ. اَللّٰهُـمَّ إِنَّـا نَسْـأَلُكَ خَيْـرَ الْمَسْاَلَةِ وَ خَيْرَالدُّعَاءِ وَ خَيْرَالنَّجَاحِ وَ خَيْرَ الْعِلْمِ وَ خَيْـرَ الْحِلْمِ وَ خَيْـرَ الثَّـوَابِ وَ خَيْـرَ الْحَيَـاةِ وَ خَيْـرَ الْمَمَـاتِ وَ ثَبِّتْنَـا وَ ثَقِّلْ مَوَازِيْنَنَا وَ حَقِّقْ إِيْمَانَنَا وَارْفَعْ دَرَجَاتِنَا وَ تَقَبَّلْ صَلاَتَنَا وَ جِهَادَنَا وَ أَعْمَالَنَا الصَّالِحَاتِ وَاغْفِرْ خَطِيْئَاتِنَا. اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلَنَا وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَالْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُسْلِمَاتِ وَأَلِّفْ بَيْنَ قُلُوْبِهِمْ وَ أَصْلِحْ ذَاتَ بَيْنِهِمْ وَانْصُرْهُمْ عَلى عَدُوِّكَ وَ عَدُوِّهِمْ. اَللّٰهُمَّ إِنَّا نَسْأَلُكَ الْهُدَى وَالتُّقَى وَالْعَفَافَ وَالْغِنى. اَللّٰهُمَّ إِنَّا نَعُوْذُ بِكَ مِنْ عِلْمٍ لاَ يَنْفَعُ وَ مِنْ قَلْبٍ لاَ يَخْشَعُ وَ مِنْ نَفْسٍ لاَ تَشْبَعُ وَ مِنْ دَعْوَةٍ لاَ يُسْتَجَابُ لَهَا. اَللّٰهُـمَّ إِنَّا نَعُوْذُ بِكَ مِنْ أَنْ نَمُوْتَ فِيْ سَبِيْلِكَ مُدْبِرِيْنَ. اَللّٰهُمَّ إِنَّا نَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْفِتَنِ ماَ ظَهَرَ مِنْهَا وَ مَا بَطَنَ. اَللّٰهُمَّ إِنَّا بِكَ نَحُوْلُ وَبِكَ نَصُوْلُ وَ بِكَ نُقَاتِلُ وَ بِكَ نَسِيْرُ. اَللّٰهُمَّ زَيِّنَّا بِزِيْنَةِ الإِيْمَانِ وَاجْعَلْنَا هُدَاةً مَّهْدِيِّيْنَ. اَللّٰهُمَّ إِنَّا نَسْأَلُكَ الثَّبَاتَ فِى الأَمْرِ وَالْعَزِيْمَةَ عَلَى الرُّشْدِ. اَللّٰهُمَّ حَبِّبْ إِلَيْنَا الإِيْمَانَ وَ زَيِّنْهُ فِيْ قُلُوْبِنَا وَ كَرِّهْ إِلَيْنَا الْكُفْرَ وَالْفُسُوْقَ وَالْعِصْيَانَ وَاجْعَلْنَا مِنَ الرَّاشِدِيْنَ، اَللّٰهُمَّ أَحْيِيْنَا مُسْلِمِيْنَ وَ تَوَفَّنَا مُسْلِمِيْنَ وَأَلْحِقْنَا بِالصَّالِحِيْنَ غَيْرَ خَزَايَا وَلاَ نَدَامَى وَلاَ مَفْتُوْنِيْنَ. اَللّٰهُمَّ اقْتُلِ الْكَفَرَةَ الَّذِيْنَ يُكَذِّبُوْنَ رُسُلَكَ وَ يُقَاتِلُوْنَ أَوْلِيَاءَكَ وَ يَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِكَ. اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ عَلَيْهِمْ رِجْزَكَ وَ عَذَابَكَ. اَللّٰهُمَّ زَلْزِلْهُمْ

وَاهْـزِمْهُمْ وَانْصُـرْنَا عَلَـيْهِمْ إِلـهَ الْحَـقِّ. اَللّهُـمَّ مُنْـزِلَ الْكِتَـابِ وَ مُجْرِىَ السَّحَابِ وَ هَازِمَ الأَحْزَابِ إِهْزِمْهُمْ وَانْصُرْنَا عَلَيْهِمْ.

اَللّهُمَّ إِنَّا نَسْأَلُكَ بِأَنَّنَا نَشْهَدُ أَنَّكَ أَنْتَ اللهُ لاَ إِلهَ إِلاَّ أَنْتَ الأَحَدُ الصَّمَدُ الَّذِىْ لَمْ يَلِدْ وَ لَمْ يُوْلَدْ وَ لَمْ يَكُنْ لَّهُ كُفُوًا أَحَدْ. وَ صَلَّى اللهُ عَلى نَبِيِّنَا مُحَمَّدٍ.

# جنګ چل دی

**لکه مخکي مو چې وویل : مجاهدین به راسخه عقیده، صالح عمل، دعاوې او اذکار، اعداد او تمرینونه، د وسلو او وسائلو تیارول، د دښمن د پلمونه ځان خبرول او نور ګڼ لازم تدبیرونه نه هېروي او تل به ویښ، ګړندی، چمتو او تیار اوسي خو په دې ټولو سربېره به دا هم نه هېروي چې جنګ یوائې ناړامي او شین زور نه دی بلکه د دښمن د تېر ایستلو هر تدبیر، سرشتې او چل نه به کار اخلي.**

**حدیث کې رائې :**

عن جابر بن عبدالله قال : قال النبى ﷺ: (( الحرب خدعة )).[1]

**جابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روایت دی هغه وایي: پیغبر ﷺ**

---

۱- رواه البخاري و مسلم.

**فرمايلي دي : (( جنګ چل دی )).**

**(( خدعة )) کې درې لغتونه دي :**

**۱- د (( خا )) فتحه او د (( دال )) سکون : (( خَدْعَة )) دلته يې معنا (( يو ځل چل کول )) دي؛ معنا دا چې جنګ په يو ځل چل کولو پای ته رسيږي او ګټل کيږي او د يو چل کولو اراده دې چې وکړه نو نيمګړی ترې مه وروسته کيږه بلکه بشپړ يې کړه .**

**۲- د (( خا )) په ضمې (پېښ او د (( دال )) په سکون (غړوندي) : (( خُدْعَة )) دلته يې معنا چل کول دي معنا دا چې جنګ ټول چل چل دی او جنګ د چل ځای دی نو د دښمن د تېرايستلو لپاره به چلونه کوې .**

**۳- د (( خا )) په ضمې او د (( دال )) په فتحې (زور) : ((خُدَعَة)) دلته يې معنا (( چل کونکی )) ده معنا دا چې جنګ چل کوونکی، ټګي کوونکی او غولوونکی کار دی خلک غولوي او تېر باسي هر چاته د فتحې وعدې او د دښمن د ماتې ژمنې ورکوي خو بيا پرې وفا نه کوي او ټګي کوي مطلب دا چې جنګ ښه شی نه دی .**

# مسجد الحرام کې قتال حرام دی

**مسجدالحرام او د حرم په حدودو کې جنګ کول منع دي خو که د اسلام دښمنان يې کوي بيا ورسره جنګېدل په کار دي الله تعالى فرمايي :**

(( وَلَا تُقَـٰتِلُوهُمْ عِندَ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ حَتَّىٰ يُقَـٰتِلُوكُمْ فِيهِ ۖ فَإِن قَـٰتَلُوكُمْ فَٱقْتُلُوهُمْ ۗ كَذَٰلِكَ جَزَآءُ ٱلْكَـٰفِرِينَ )).[1]

**(( او په مسجد الحرام کې تر هغې هغوی سره مه جنګېږئ چې ترڅو تاسو سره پکې وجنګېږي نو کهٔ درسره وجنګېدل نو ويې وژنئ د کافرانو جزا همداسې ده )).**

**او حديث کې راځي :**

عن ابن عباس قال : قال رسول الله ﷺ : (( إن هذا البلد حرمه الله يوم خلق السماوات والأرض فهو حرام بحرمة الله إلى يوم القيامة و إنه لم يحل القتال فيه لأحد قبلي و لم يحل لي إلا ساعة من نهار فهو حرام بحرمة الله إلى يوم القيامة )).[2]

**عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه رويت دی هغه وايي : رسول الله**

---

۱- سورة البقرة : ۱۹۱.

۲ - رواه البخاري.

ﷺ فرمايلي دي : (( دا (دمکې) سيمه له هغې ورځې نه الله حرامه کړې چې اسمانونه او ځمکه يې پيداکړي دي نو دا د قيامت تر ورځې د الله په عزت عزتمنده ده؛ له ما مخکې هيچاته په دې کې د جنګېدو اجازه نه ده شوې او ماته يوائې د ورځې يوه شېبه د جنګېدو اجازه شوې وه نو دا د الله په حرمت د قيامت تر ورځې حرامه ده )).

# په اشهرالحرم کې جنګېدل

په اشهرالحرم کې جنګېدل منع دي او پخوا به د جاهلیت مشرکانو هم د اشهرالحرم عزت کاوه خو اوس چې نړیوال کفر او کافران د عزت د میاشتو پروانه کوي او مسلمانانو سره جنګېږي نو مونږ هم باید ورسره وجنګېږو الله تعالی فرمایي:

(( ٱلشَّهۡرُ ٱلۡحَرَامُ بِٱلشَّهۡرِ ٱلۡحَرَامِ وَٱلۡحُرُمَٰتُ قِصَاصٞۚ فَمَنِ ٱعۡتَدَىٰ عَلَيۡكُمۡ فَٱعۡتَدُواْ عَلَيۡهِ بِمِثۡلِ مَا ٱعۡتَدَىٰ عَلَيۡكُمۡۚ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلۡمُتَّقِينَ )).[1]

(( سپېڅلې میاشتې د سپېڅلیو میاشتو په بدل کې د ي او سپېڅلي د بدل دي؛ کۀ چا په تاسو تېری وکړ نو تاسو پرې هغسې تېری وکړئ لکه په تاسو یې چې کړی دی؛ الله نه ووېرېږئ او پوه شئ چې الله بې شکه پرهېزګارانو سره مل دی )).

او فرمایي:

(( يَسۡـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلشَّهۡرِ ٱلۡحَرَامِ قِتَالٖ فِيهِۖ قُلۡ قِتَالٞ فِيهِ كَبِيرٞۖ وَصَدٌّ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ وَكُفۡرُۢ بِهِۦ وَٱلۡمَسۡجِدِ ٱلۡحَرَامِ وَإِخۡرَاجُ أَهۡلِهِۦ مِنۡهُ أَكۡبَرُ عِندَ ٱللَّهِۚ وَٱلۡفِتۡنَةُ أَكۡبَرُ مِنَ ٱلۡقَتۡلِۗ

---

۱- سورة البقره: ۱۹۴.

وَلَا يَزَالُونَ يُقَٰتِلُونَكُمۡ حَتَّىٰ يَرُدُّوكُمۡ عَن دِينِكُمۡ إِنِ ٱسۡتَطَٰعُواْۚ وَمَن يَرۡتَدِدۡ مِنكُمۡ عَن دِينِهِۦ فَيَمُتۡ وَهُوَ كَافِرٞ فَأُوْلَٰٓئِكَ حَبِطَتۡ أَعۡمَٰلُهُمۡ فِي ٱلدُّنۡيَا وَٱلۡأٓخِرَةِۖ وَأُوْلَٰٓئِكَ أَصۡحَٰبُ ٱلنَّارِۖ هُمۡ فِيهَا خَٰلِدُونَ ››.[1]

‹‹ **تا په سپېڅليو مياشتو کې د جنګ کولو په هکله پوښتي ورته ووايه چې په دې کې جنګ کول لويه ګونا ده، د الله له لارې ايسارول دي، په الله کفر دی او د مسجدالحرام نه ايساررول دي خو حرم نه د حرم د اوسېدونکيو ايستل الله سره له دې هم لويه ګناه ده او شرک کول له وژلو هم لويه ګونا ده. هغوی تر هغې تاسو سره جنګېږي تر څو يې کۀ وس ورسېږي چې تاسو له خپل دين واړوي او هغه څوک چې له خپل دين واووښت او په داسې حال کې ومړ چې هغه کافرؤ نود هغوی عملونه په دنيا او اخرت کې برباد شول او هغوی دوزخيان دي چې تل به پکې اوسي** ››.

**اشهرالحرم** ‹ **سپېڅلې مياشتې** › **څلور دي**:

**۱- ذوالقعده. ۲- ذوالحجه. ۳- محرم. ۴- رجب.**

[1]- سورة البقرة: ۲۱۷.

# جهادي تصويرونه

اسلام کې د ژوندي بوت او تصوير جوړول لويه ګونا ده خو که د جهاد د مصلحت او د جهاد د دعوت لپاره د عملياتو، مجاهدينو او جهاد پورې د تړلو امورو تصويرونه او فلمونه جوړيږي او خپريږي نو دا روا دي ددې لپاره ډېر دليلونه دي يوه يې هغه کيسه ده چې مخکې تېره شوه چې د فارسيانو د پيلانو نه د مجاهدينو اسونه وېرېدل نو يو اتل مجاهد د پيل بوت جوړ کړ او اسونه يې ورسره روږدي کړل. او دا کار په هغه وخت کې هيڅا ناروا و نه ګڼه ځکه چې دا يې د جهاد د مصلحت لپاره وکړ.

بله هغه کيسه ده چې محمد بن مسلمه کله د کعب بن اشرف د وژلو د تدبير لپاره رسول الله ﷺ نه د دروغودويلو اجازه وغوښته چې هغه ته داسې څه و وايي چې پرې ويې غولوي نو رسول الله ﷺ ورته اجازه ورکړه چې هغه کيسه يې د حديثو او تاريخ په کتابونو کې راغلې ده.

بله دا چې حديث کې راځي :

(( الحرب خدعة )) (( جنګ يو ځل چل کول دي )).[1]

نو سره له دې چې چل کول، غولول او تېر ايستل ناروا

---

۱- د دې حديث تخريج او تفصيل د : (( جنګ چل دی )) تر عنوان لاندې وګورئ.

دي خو د جهاد د مصلحت لپاره د دښمن غولول روا بلکه فرض دي نو د جهاد د مصلحت لپاره جهادي تصويرونه او فلمونه جوړول او خپرول هم روا دي او بې له دې مصلحته ناروا دي. خو هر ناروا په دې بهانه روا کېدی نه شي. هغه ناروا چې توحيد او ايمان، پت او عزت او اسلامي شعائر پرې رنګېږي د هغو کول هيڅکله روا نه دي، هغه ناروا چې د ځواکمن او پياوړي (( مقيس عليه )) لپاره کوم دليل ونه لري، هغه روا نه دي لکه دلته زمونږ ددې مسالې لپاره د صحابهؤ د پيل جوړول او بيا يوائې د جهاد د پرمختګ او بريالي کولو لپاره، دا يو غښتلی (( مقيس عليه )) دی نو ځکه پرې استدلال کېدی شي که نه په عامو حالاتو کې تصويرونه ناروا دي.

په اوسني عصر کې جهادي فلمونو ډېرو ځوانانو ولولې راوپارولې، د جهاد فی سبيل الله سنګرونو او ډګرونو ته راووتل او د ډېر بريا او د دښمن د ماتې لامل شول نو ځکه د جهاد فلمونه لو نورو تصويرونو نه مستثنی شول د (( عام مخصوص منه البعض )) (هغه عام چې ځينې ترې ځانګړي شوي او بيل شوي وي) د بنسټ لاندې دغه صورت هم راځي.

او ځينو علماؤ خو دا اوسني دالاتو تصويرونه روا ګڼلي دي او دا يې داسې ګڼلي دي لکه څوک چې په هنداره (ايينه) کې خپل تصوير ويني او يا لکه د چا سيوری نو هغوی وايي چې دا په الې د سيوري چاپول او بندول دي او دا په ممنوع تصويرونو کې نه راځي خو د فحاشۍ، عريانۍ او نور د ټنګ ټکور او ناروا تصويرونه هيڅا روا نه دي ګڼلي.

# د دښمن ځمکې ته د قران وړل منع دي

د دښمن ځمکې ته د قران کريم د کتابي نسخو نقلول او وړل منع دي او دا له دې امله چې د دښمن لاس ته ورنه شي او سپکاوى يې ونه کړي حديث کې راځي:

عن عبدالله بن عمر أن رسول الله ﷺ نهى أن يسافر بالقرآن إلى أرض العدو.[1]

عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دى چې: رسول الله ﷺ له دې منع کړې ده چې د دښمن ځمکې ته قران نقل شي.

افغانستان او عراق کې چې د مجاهدينو کوم سنګرونه دي دا د دښمن ځمکه نه ده په دې کې د قران ساتل او تلاوت کول په کار دي خو احتياط ضروري دى چې کافرانو ته لاس ته ورنه شي ځکه چې هغوى يې بې عزتي کوي د هغوى کمپونو او د اوسېدو ځاى ته يې وړل منع دي او د هغوى ځمکې ته هم.

مونږ چې کله امريکايانو سره په باګرام، قندهار او ګوانتنامو کې بنديان وو هلته يې مونږ ته د قران کريم نسخې راکړې وې خو د بنديانو مخکې يې پرې پښې ايښودل، د تالاشى (لټون) په نامه يې اخوا دېخوا په خاورو کې غورځول، د غټو او وړو ميتيازونه ډکو سطلونو کې غورځول او داسې نور توهينونه

---

۱- رواه البخاري.

او سپکاوي د امریکایي پوځیانو معمول ؤ ، زیات تفصیل یې زمونږ کتاب: «ماتې زولنې» کې وګورئ .

ګوانتنامو کې ځینو ملګرو غوښتل چې د قران کریم نسخې له همدې امله بیرته امریکایانو ته حواله کړي خو مونږ ځینو ملګرو ورته وویل چې دا مونږ نه دي راوړي دوی راوړي دي اوس یې مونږ باید حفاظت او عزت وکړو، تلاوت، حفظ او درسونه پکې کیږي او دا یو خیر دی که بیرته یې ورکړو نو له یوې خوا به مونږ له دغه خیر نه محروم شوو او له بله پلوه به یې امریکایي پوځ توهین وکړي؛ چې زمونږ مخکې یې سپکاوی کوي نو پسي شاخو به یې لا زیات کوي! نو که چیرته دغسې صورت پیښ شي بیا یې ساتنه په کار ده.

# د جهاد په مال کې خیانت

خیانت خو په هیڅ مال او د هیچا په حق کې روا نه دی او خیانت او درغلي لوی جرم دی خو په ځانګړې توګه د اسلام او جهاد په نامه مال اخیستل او په هغه کې خیانت کول ډېر لوی جرم دی .

امام بخاري رحمه الله د عمر رضي الله عنه قول نقل کړی دی چې هغه وایي :

« إن ناسا يأخذون من هذا المال ليجاهدوا ثم لا يجاهدون فمن فعله فنحن أحق بماله حتى نأخذ منه ما أخذ

))[1].

(( ځینې خلک له دې مال نه څه برخه ددې لپاره اخلي چې جهاد پرې وکړي او بیا جهاد نه کوي نو چا چې دا کاروکړ مونږ د هغه په مال کې ددې ډېروړ یوو چې څه یې اخیستي وي هغه ترې واخلوو )).

نو له دې څرګنده شوه چې چا د جهاد کولو لپاره مال لاس ته راوړی وي او بیا جهاد ونه کړي نو هغه نه به هغه مال بیرته اخیستل کېږي او که چا د جهاد کولو لپاره مال واخیست او بیا یې ښه په انصاف د جهاد په اړتیاو کې ولګاوه او دخپل کور لپاره یې هم دومره نفقه ترې پرېښوده چې د هغه تر راستنېدو بس شي نودا په سمه لار کې لګېدلی دی. خو خائنانو نه به خیانت شوی مال بیرته اخستل کېږي د افغانستان ځینو خائنو او درغلګرو مشرانو او قوماندانانو د جهاد، یتیمانو، کونډو، جوماتونو، مدرسو، کوهیانو، کتابونو، قرانونو، شهیدانو، بې وزلو او نورو د خیر د کارونو لپاره ټاکل شوي مالونه په جېبونو کې واچول او داسې بې خرته یې په دواړو لاسونو ولوټل او په دواړو ژامنو یې وخوړل ته به وایې چې پلرونو نه ورته په میراث پاتې دي څه مردار شول او پرکتې یې هغه د اسلام په نوم راغلي مالونه اسلام نه په سرغړونو او عیاشیو کې لګوي ځینې د مالونو سره بهرنیو هېوادونو ته وتښتېدل او ځینې پرې دلته او هلته لګیا دي بې خرته او بې

---

۱- رواه البخاري.

**حسابه يې خوري او لګوي؛ کله چې اسلامي نظام پلى او نافذ شي بايد دغه مالونه ټول بيرته ورڅخه واخيستل شي او کلکه محاسبه ورسره وشي او عجيبه خو دا ده چې ځينو خائنانو ته د عربو او عجمو ښه زړو او پاک زړو مسلمانانو د خپلو مالونو زکاتونه خيراتونه او ان تر دې چې ښځو ورته خپل پسولونه (ګانې او زېورات) په چندو کې ورکړل او د دوى کورونه، جامې، خواړه، ګاډي، وينې او غوښې ټول له دغو مالونو څخه جوړ دي او تر اوسه پرې ډېرې ناروا کوي او ځينو بې پتو بې غيرتو خو خپل هغه محسنان هم پرې نه ښودل چې دوي ته يې خيراتونه ورکړي وو هغوي يې راونيول او د تورسرو پاکلمنو سره يې د مغرضو ګوانډيانو د استخباراتو له لارې په امريکا وپلورل، يو يو يې رانيوه او هغوى ته يې حواله کاوه مونږ ډېر دغسې خلک په ګوانتنامو کې وليدل چې د افغانستان او پنجاب د جماعة الدعوه درغلګرو په امريکا پلورلي وو او هغوى خپله مونږ ته ددغو درغلګرو د درغليو کيسې وکړې. د خيانت او درغلۍ په هکله بل حديث کې داسې راځي:**

عن خولة الأنصارية قالت: سمعت النبى ﷺ يقول: «إن رجالا يتخوضون فى مال الله بغيرحق فلهم النار يوم القيامة».[1]

**خو له انصاريه نه روايت دى هغه وايي: ما پيغمبر ﷺ نه اورېدلى دي چې فرمايل يې: «ځينې خلک د الله په مال کې په ناحقه تصرف کوي د قيامت په ورځ هغوى لپاره اور دى».**

۱- رواه البخاري.

# کافرو ته جاسوسي کول

په دې کې شک نشته چې کافرانو سره مرسته کول، د هغوی ملګرتیا کول او هغوی ته جاسوسي کول کفر دی.[۱] او کافرو ته جاسوسي کوونکی که ټول اسلام عملي کوي خو دا کار یې د اسلام له نواقضونه دی کافرو سره ملګرتیا، د هغوی ملاتړ او هغوی ته جاسوسي کول اسلام او ایمان ړنګوي. جاسوس که هر څومره لمونځونه وکړي او روژې ونیسي، تهجد او عبادت وکړي، حجونه او عمرې وکړي خو هغه دې ټولو سره مرتد او واجب القتل دی.

الله تعالی فرمايي:

(( وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمۡ فَإِنَّهُۥ مِنۡهُمۡ )).[۲]

(( او چا چې تاسو کې کافرو سره ملګرتیا وکړه نو هغه له هغوی څخه دی)).

یعنې همغوی غوندې کافر دی.

او هغه خلک چې کافرو سره ملګرتیا کوي او بیا دا وایي چې مونږ له زړه نه ورسره نه یو او یواځې د وېرې له کبله ورسره ملګرتیا کوو، د هغوی په هکله الله تعالی فرمايي:

---

۱- ددې مسالې د زیات تفصیل لپاره زمونږ کتاب: ((ملګري او غلیمان)) وګورئ.

۲- سورة المائدة: ۵۱.

« فَتَرَى ٱلَّذِينَ فِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ يُسَٰرِعُونَ فِيهِمۡ يَقُولُونَ نَخۡشَىٰٓ أَن تُصِيبَنَا دَآئِرَةٌۚ فَعَسَى ٱللَّهُ أَن يَأۡتِىَ بِٱلۡفَتۡحِ أَوۡ أَمۡرٍ مِّنۡ عِندِهِۦ فَيُصۡبِحُواْ عَلَىٰ مَآ أَسَرُّواْ فِىٓ أَنفُسِهِمۡ نَٰدِمِينَ ».[1]

**« نو هغه خلک چې زړونو کې يې ناروغي ده ته به يې وينې چې د کافرانو ملګرتيا کې يو تر بله بيړه کوي، وايي: مونږ وېرېږو چې کړاو به راورسېږي، نو نږدې ده چې الله فتح او يا له خپله پلوه د بريا پرېکړه راولي نو دوی به په هغو خبرو پښېمانه شي چې خپلو زړونو کې يې پټې کړې دي ».**

**او له همدې اياتونو نه وروسته فرمايي:**

« وَيَقُولُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَهَٰٓؤُلَآءِ ٱلَّذِينَ أَقۡسَمُواْ بِٱللَّهِ جَهۡدَ أَيۡمَٰنِهِمۡۙ إِنَّهُمۡ لَمَعَكُمۡۚ حَبِطَتۡ أَعۡمَٰلُهُمۡ فَأَصۡبَحُواْ خَٰسِرِينَ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مَن يَرۡتَدَّ مِنكُمۡ عَن دِينِهِۦ فَسَوۡفَ يَأۡتِى ٱللَّهُ بِقَوۡمٍ يُحِبُّهُمۡ وَيُحِبُّونَهُۥٓ أَذِلَّةٍ عَلَى ٱلۡمُؤۡمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى ٱلۡكَٰفِرِينَ يُجَٰهِدُونَ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ وَلَا يَخَافُونَ لَوۡمَةَ لَآئِمٍۚ ذَٰلِكَ فَضۡلُ ٱللَّهِ يُؤۡتِيهِ مَن يَشَآءُۚ وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ ».[2]

**« او مؤمنان به وايي: ايا دا هغه خلک دي چې په الله يې**

---

۱- سورة المائدة: **۵۲**.

۲- سورة المائدة: **۵۳-۵۴**.

سخت قسمونه خوړل چې دوی بې شکه ستاسو ملګري دي؟! د دوی عملونــه بربــاد شــوي دي او دوی تــاواني شــوي دي. ای مؤمنانو! له تاسو چې څوک له خپل دین څخه واووښت نو الله به داسې خلک راولي چې هغه یې خوښوي او هغوی به الله خوښوي مؤمنـانو سره بـه نرمـي کـوونکي او کـافرانو بانـدې بـه لـوړ او پیاوړي وي دا د الله پېرزوینه ده چې چاته یې خوښه شي ورکوي یې او الله پراخوونکی او ډېر پوه دی».

نـو عملونـه پـه کفـر بربـادېږي الله تعـالی د کـافرو سـره د ملګرتیا کوونکو پـه هکلـه وفرمایـل «حبطت اعمـالهم» د دوی عملونه برباد شوي دي معنا دا چې د دوی ټول عبادتونـه کـافرو سـره د ملګرتیالــه کبلــه بربــاد شــوي دي او دا ځکــه چــې دوی مرتدان دي او ورپسې د مرتـدانو پـه هکلـه فرمـایي: «مـن یرتـد مـنکم......» نـو معلومـه شـوه چـې کافروسـره ملګرتیـا کـول لـه اسلام او ایمان څخه ارتداد او کفر دی. او لـه جاسوسـۍ نـه لـوی ملاتړ او لویه ملګرتیا بله نشته او بیا چې د اسلام د مجاهدینو او مسـلمانانو پـه خـلاف وي نـو دا بـې شـکه کفـر دی او «تقیـه» یوازې په خوله وي هغه هم هله چې د وژلو او سخت تعـذیب نـه د ژغورلو لپاره وي خو دې وخت کې هم تقیـه رخصت دی عزیمـت نه دی، عزیمت دا دی چې هر حالت کې عمل لاڅه چې په ژبـه هم کافروته د ملګرتیا اظهار و نه کړې او عمل هیڅکله تقیه نه ګڼل کېږي تقیه یوازې د ژبې وي.

**ابن جرير رحمه الله وايي :**

« إلا أن تتقوا منهم تقاة » : إلا أن تكونوا فى سلطانهم فتخافوهم على أنفسكم فتظهروا لهم الولاية بألسنتكم و تضمروا لهم العداوة ولا تشايعوهم على ماهم عليه من الكفر ولا تعينوهم على مسلم يفعل.[1]

**« مګر که تاسو خپل ځانونه له هغوی وژغورئ » ددې دا معنا دا ده چې تاسو د هغوی د تسلط لاندې اوسېږئ او په خپلو ځانونو له وژلو وېرېږئ نو هغوی ته په خپلو ژبو د ملګرتيا اظهار وکړئ او په زړونو کې ورسره دښمني پټه کړئ او هغوی چې په کوم کفر کې دي په دې حال کې ورسره پلوي ونه کړئ او د کوم مسلمان په خلاف کومه عملي مرسته ورسره ونه کړئ » نو کافرو سره کار کول او هغوی ته جاسوسي کول خو د هغوی عملي ملاتړ دی دا هيڅکله په تقيه کې نه راځي بلکه دا ارتداد دی. او بيا دا روا ګڼل خو لازيات ارتداد او کفر دی .**

**شيخ الاسلام رحمه الله وايي :**

« والإنسان متى حلل الحرام المجمع عليه أو حرم الحلال المجمع عليه أو بدل الشرع المجمع عليه كان كافرا مرتدا بإتفاق الفقهاء ».[2]

**« انسان چې هرکله هغه حرام حلال وګڼل چې په تحريم**

---

١- تفسير ابن جرير : ٢٢٨/٣ .

٢- مجموع الفتاوى : ٢٦٧/٣ .

يې اجماع وي يا يې هغه حلال حرام وګڼل چې په تحليل يې اجماع وي يا يې هغه شريعت بدل کړ چې د مسلمانانو پرې اجماع ده نو هغه د ټولو فقهاؤ په اتفاق کافر او مرتد دی)).

ځينې اوسني مرتدان کافرانو ته د جاسوسۍ د جواز لپاره د حاطب بن ابي بلتعه رضي الله عنه هغه ليک دليل نيسي چې د مکې مشرکانو ته يې ليږلی ؤ. حال دا چې دا ښخي نا انصافي او په حق باندې سترګې پټول دي ځکه چې:

۱. حاطب هجرت کړی ؤ د رسول الله ﷺ کلک ملګری ؤ او په عملي جهاد کې شريک ؤ د بدر او حديبيې غوندې غزواتو کې شريک ؤ او خپل ځان او مال يې د اسلام په لار کې جهاد ته وقف کړی ؤ.

۲. حاطب داسې جاسوسي نه وه کړې چې همدې ته يې ملا تړلې وي او همدا يې کار وي او په همدې پيسې اخلي بلکه د هغوی د غولولو يوه هڅه وه.

۳. د حاطب په ليک کې جاسوسي نه وه بلکه د هغوی وېرول وو او د رسول الله ﷺ بريا او فتحې باندې د بشپړ باور اظهارؤ د هغه ليک داسې ؤ:

يا معشر قريش! فإن رسول الله ﷺ جاءكم بجيش كالليل يسير كالسيل فوالله إن جاءكم وحده لنصره الله وأنجز له وعده فانظروا لأنفسكم.[1]

(( ای د قريشو قومه! رسول الله ﷺ لکه شپې غوندې

۱- فتح الباري: ۷/۵۲۰.

لوی هیبتناک لښکر سره در روان دی لکه سیلاب (نېز)غونډې درومي. په الله قسم دی که یوائې هم درشي نو الله تعالی به ورسره مرسته وکړي او خپله ژمنه به ورته بشپړه کړي نو د خپلو ځانونولپاره د خلاصون لار وګورئ )).

نو له دې لیک نه هم دا څرګندېږي چې د حاطب په دې بشپړ باور ؤ چې الله تعالی به رسول الله ﷺ ته فتح او بریا ورکوي. او هغوی یې یو ډول ووېرول خو دا کار هم د الله تعالی خوښ نه ؤ نو ځکه یې دا ایاتونه راولېږل :

(( يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُواْ عَدُوِّى وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَآءَ تُلْقُونَ إِلَيْهِم بِٱلْمَوَدَّةِ وَقَدْ كَفَرُواْ بِمَا جَآءَكُم مِّنَ ٱلْحَقِّ يُخْرِجُونَ ٱلرَّسُولَ وَإِيَّاكُمْ ۙ أَن تُؤْمِنُواْ بِٱللَّهِ رَبِّكُمْ إِن كُنتُمْ خَرَجْتُمْ جِهَٰدًا فِى سَبِيلِى وَٱبْتِغَآءَ مَرْضَاتِى ۚ تُسِرُّونَ إِلَيْهِم بِٱلْمَوَدَّةِ وَأَنَا۠ أَعْلَمُ بِمَآ أَخْفَيْتُمْ وَمَآ أَعْلَنتُمْ ۚ وَمَن يَفْعَلْهُ مِنكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ ٱلسَّبِيلِ )).[۱]

(( ای مؤمنانو! که تاسو زما په لار کې د جهاد او زما د رضا لپاره وتلي یئ نو زما او ستاسو دښمن ملګري مه نیسئ تاسو هغوی ته د دوستۍ خبر ورلېږئ؟ حال دا چې تاسو ته کوم حق راغلی دی هغوی پرې کفر کړی دی، تاسو او پیغمبر له دې امله له کورونو اوباسي چې په خپل رب: الله ایمان راوړئ، ایا تاسو دوی سره پټه دوستي کوئ؟ حال دا چې تاسوڅه پټ کړي

۱- سورة الممتحنة : ۱ .

وي او څه مو څرګند کړي وي زه پرې پوهېږم او چا چې دا کار وکړ نو هغهٔ بې شکه سمه لار ورکه کړه ››.

۴. د حاطب په هغه کار دليل نيول چې الله ترې منع کړ او د هغه په عتاب کې يې اياتونه راولېږل، ښيخي ناسم استدلال دی .

۵. حاطب تاويل کړی ؤ چې ګنې دا کار مؤمنانو او رسول الله ﷺ ته زيان نه رسوي خو الله تعالی په ډاګه ورته وفرمايل :

‹‹ وَمَن يَفۡعَلۡهُ مِنكُمۡ فَقَدۡ ضَلَّ سَوَآءَ ٱلسَّبِيلِ ››.

‹‹ که کافرو سره داسې پټه ملګرتيا او داسې ليک لېږل چا وکړل نو هغه بې شکه له سمې لارې واووښت ››.

نو په دې کې حاطب د هغه د ځانګړيو ظروفو له کبله معذور وګڼل شو خو که راتلونکي وخت لپاره چا داسې کار وکړ نو هغه مرتد او د اسلام له سمې لارې بې لارې وګڼل شو.

٦. حاطب له جهاد نه نه ؤ وروسته شوی بلکه تر اخره د اسلام د لارې اتل او پياوړی مجاهد ؤ.

۷. حاطب په دې تاويل دا کار کړی ؤ چې ګنې هلته زما خپلوانو او کهول ته زيان ونه رسوي خو الله تعالی ورته وفرمايل:

‹‹ لَن تَنفَعَكُمۡ أَرۡحَامُكُمۡ وَلَآ أَوۡلَٰدُكُمۡۚ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ يَفۡصِلُ بَيۡنَكُمۡۚ وَٱللَّهُ بِمَا تَعۡمَلُونَ بَصِيرٞ ››.[۱]

‹‹ تاسو ته چې هېڅکله نه ستاسو خپلوۍ کومه ګټه در

---

۱- سورة الممتحنه : ۳.

رسولی شي او نه مو اولادونه، د قيامت په ورځ په مو سره جلا کړي او تاسو چې څه کوئ الله پرې ښه ليدونکی دی ».

۸. الله تعالی همدې اياتونو پسې وفرمايل چې تاسو د قوم، قبيلې، خپلوانو او نورو........ په ځای د ابراهيم عليه السلام په څېر په ډاګه له هغوی د برائت اعلان وکړئ لکه چې فرمايي:

« قَدۡ كَانَتۡ لَكُمۡ أُسۡوَةٌ حَسَنَةٞ فِيٓ إِبۡرَٰهِيمَ وَٱلَّذِينَ مَعَهُۥٓ إِذۡ قَالُواْ لِقَوۡمِهِمۡ إِنَّا بُرَءَٰٓؤُاْ مِنكُمۡ وَمِمَّا تَعۡبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ كَفَرۡنَا بِكُمۡ وَبَدَا بَيۡنَنَا وَبَيۡنَكُمُ ٱلۡعَدَٰوَةُ وَٱلۡبَغۡضَآءُ أَبَدًا حَتَّىٰ تُؤۡمِنُواْ بِٱللَّهِ وَحۡدَهُۥٓ ».[1]

« تاسو ته په ابراهيم او د هغه ملګرو کې نېکه تابعداري ده چې کله هغوی د خپل قوم خلکو ته وويل: مونږ له تاسو او له هغو معبودانو څخه بېزاريو چې تاسو يې عبادت کوئ، مونږ له تاسو انکار کړی دی او تر هغې تل لپاره زمونږ او ستاسو ترمنځ څرګنده دښمني او کينه ترڅرګنده شوې ده چې تاسو په يو الله ايمان راوړئ ».

۹. د حاطب اخلاص، جهاد او نورې ځانګړتياوې رسول الله صلی الله عليه وسلم ته څرګندې وې او له ليک نه يې هم په ډاګه څرګندېدې نو سره له دې چې دا کار حرام ؤ خو هغه د خاصو ظروفو له کبله معذور وګڼل شو.

---

۱- سورة الممتحنة: ۴.

**١٠. صحابهؤ رضي الله عنهم ته دا خبره څرګنده وه چې د کافرانو ملاتړ او هغوی ته جاسوسي کول کفر او ارتداد دی نو ځکه عمر رضي الله عنه رسول الله ﷺ ته وویل:**

« دعنى أضرب عنق هذا المنافق فقد كفر ».

**« ما پرېږده چې ددې منافق څټ په توره ووهم ځکه چې دهٔ بې شکه کفر کړی دی »**

**نو رسول الله ﷺ د عمر خبره رد نه کړه او داسې رد یې پرې ونه کړ چې ګڼې داسې کار کفر نه دی بلکه د ځانګړیو ظروفو له امله یې حاطب معذور وګاڼه.**

**١١. حاطب هم په دې پوهېدهٔ چې کافرانو ته جاسوسي کول او د هغوی ملاتړ کفر دی نو ځکه یې وویل:**

« و ما فعلت ذلك كفرا ولا ارتدادا عن ديني........»

**« ما دا کار نه د کفر له کبله کړی او نه له خپل دین څخه د اووښتلو له کبله........»**

**خو خپل عذر یې وړاندې کړ.**

**١٢. جاسوس په دې پوهېږي چې زما دا کار د مسلمانانو په ضرر دی خو د پیسو یا چوکۍ او یا بل دنیوي غرض لپاره یې کوي او حاطب ددې ټولو لپاره نهٔ کړی ددې ټولو سره سره هم الله تعالی عتاب ورکړ، هم پیغمبر او هم صحابهؤ ورټه. خو که حاطب بیا بیا لاڅه چې یواځې یو ځل بیا دا کار تکرار کړی وای نو څرنګه به ګڼل شوی ؤ او څه حال به یې ؤ؟! ...... حال دا چې کافرانو ته جاسوسي کوونکی او د هغوی ملاتړ کوونکی د پوهې**

سره سره دا کار کوي او بیا بیا یې کوي او د نصوصو له نزوله وروسته یې کوي .

۱۳. کافروته جاسوسي کوونکی به یا وایي چې جاسوسي او د کافرانو ملاتړ او ملګرتیا په هر صورت کې مطلق رواه ده. که دا یې وویل خو بیا هم کافر دی دا په اسلام کې هیچا نه دي ویلي، او که کوم ډول یې کفر ګڼي نو د حاطب له لیک نه یې خپله ځواب ووایه .

۱۴. که جاسوسي او ملاتړ کفر نه وي نو د هغو نصوصو مفهوم او ځواب به څه وي چې صریح کفر ترې څرګند یږي؟ لکه :

۱. « و من یتولهم منکم فإنه منهم » «او تاسو کې چې چا د هغوی ملګرتیا وکړه نو هغه بې شکه له هغوی څخه دی ».

۲. « حبطت أعمالهم » « د دوی عملونه برباد شوي دي».

۳. « فأصبحوا خاسرین » « هغوی تاوانیا ن شو ».

۴. « من یرتد منکم عن دینه » « څوک چې له تاسو څخه د خپل دین نه واووښت ».

۵. « و من یفعل ذلك فلیس من الله في شیئ » « او چا چې کافرو سره ملګرتیا وکړه نو هغه د الله له لوري په اسلام کې هیڅ نه دی ».

۶. « ومن یفعله منکم فقد ضل سواء السبیل » « او که تاسو کې چا کافرو سره ملګرتیا وکړه نو بې شکه له سمې لارې بې لارې شو ».

۷. «و ودوا لو تكفرون» «**او هغوی دا خوښوي چې کاشکې تاسو (د هغوی په دوستۍ) کافران شئ**».

۸. «ومن يتولهم فاؤلئك هم الظالمون» «**او تاسو کې چې چا د هغوی ملګرتیا وکړه نو همغوی ظالمان دي**». **او دلته د مخکنیو دلایلو له کبله ظلم د کفر په معنا دی.**

۹. «بشر المنافقين بأن لهم عذابا أليما الذين يتخذون الكافرين أولياء» «**هغو منافقانو ته د دردناک عذاب زیری ورکړه چې کافران په ملګرتیا نیسي**».

۱۰. «سخط الله عليهم وفى العذاب هم خالدون» «**الله پرې غوسه شوی دی او تل به په عذاب کې اوسېږي**».

۱۱. «لوكانوا يؤمنون بالله والنبى و ما أنزل إليه ما اتخذوهم أولياء» «**که دوی په الله، پیغمبر او هغه کتاب ایمان درلودی چې دوی ته نازل شوی دی نو دوی به کافران دوستان نه وو نیولي**».

۱۲. «إن الذين ارتدوا على أدبارهم.......» «**هغه خلک چې په خپلو شاګانو له دین څخه واوښتل ......**». **ددې او داسې نورو ایاتونو او نصوصو معنا او مفهوم به څه وي؟.**

۱۵. **که کافرانو سره ملګرتیا او هغوی ته جاسوسي روا شي دولاء او براءګڼ نصوص به دڅه لپاره وي او مفهوم او مصداق به یې څه وي؟!.**

۱۶. **د حاطب د لیک په ترڅ او ضمن کې اسلام ته دعوت هم**

پروت ؤ ځکه چې هغه ورته ليکلي وو: «فانظروا لأنفسكم» «نو خپلو ځانونو لپاره د خلاصون لار وګورئ».

او د خلاصون تر ټولو لومړۍ لار د اسلام قبلول دي، نو ځکه ويلی شو چې د اسلام دعوت ئې ورکړی ؤ.

خو ددې په څنګ او ضمن کې هغوی په پټ راز خبرول وو نو ځکه بد وګڼل شو.

۱۷. حاطب د خپل ليک په هکله وايي: «فكتبت كتابا لا يضرالله و رسوله شئياً»[۱]. «ما داسي ليک وليکه چې الله او د هغه پيغمبر ته هيڅ تاوان نه رسوي».

نو له دې څرګنده شوه چې د حاطب ليک ددې لپاره نه ؤ چې ګني پيغمبر او مسلمانانو ته پرې څه زيان ورسوي نو ايا د مجاهدينو خلاف جاسوسي کوونکي، پټري ا يښودونکي او مسلمانانو ته زيان رسوونکي همداسې دي؟!

نو اوس د نړۍ ټول حکومتونه يا اصل کافران دي او يا مرتدان دي او دې ټولو ته جاسوسي کول او د دوی استخباراتي ادارو سره کار کول نېږه کفر او ارتداد دی خصوصاً د پاکستان د مرتدانو مرتدې ادارې: (ای ايس ای) يا د امريکا (سی ای ای) يا (ايف بي ای) يا د هندوستان (را) يا د روسانو (کی جي بي) يا د اسرائيلو (موساد) يا نورو جاسوسي ادارو سره کار کول کفر او ارتداد دی هر څوک چې دوی سره کار کوي هغه مرتد دی او وژل يې فرض دي.

---

۱- رواه البزار والطبراني والحاكم و أبو يعلى في الكبير والضياء في المختار.

**۱۸. د حاطب له واقعې څخه د مسلمانانو خلاف د جاسوسۍ جواز هیڅ نه دی اخیستی.**

**شیخ حمد بن عتیق رحمه الله وايي:**

« إن مظاهرة المشركين و دلالتهم على عورات المسلمين أو الذب عنهم بلسان أو الرضى بما هم عليه كل هذه مكفرات فمن صدرت منه من غيرالإكراه المذكور فهو مرتد و إن كان مع ذلك يبغض الكفار و يحب المسلمين ».[1]

**« د مشرکانو ملاتړ کول او هغوی ته د مسلمانانو پټ رازونه ورښودل او یا مشرکانو څخه په ژبه دفاع کول او یا چې هغوی په کومه با طله لار روان دي هغه ښه ګڼل، دا ټول هغه کارونه دي چې کوونکی پرې کافر کېږي نو له مخکې یاد شوي زور پرته چې چا دا کارونه وکړل اګر که کافرانو سره کینه لري او مسلمانانو سره مینه کوي هم ـ هغه مرتد دی ».**

**علامه سعدي رحمه الله ددې اية په تفسیر کې:** « يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُواْ ٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُواْ دِينَكُمْ هُزُوٗا وَلَعِبٗا مِّنَ ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡكِتَٰبَ مِن قَبۡلِكُمۡ وَٱلۡكُفَّارَ أَوۡلِيَآءَۚ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ إِن كُنتُم مُّؤۡمِنِينَ ».[2] **وايي:**

« ينهى عباده المؤمنين عن إتخاذ أهل الكتاب من اليهود و النصارى و من سائر الكفار أولياء يحبونهم و يتولونهم

---

۱- الدفاع عن اهل السنة والاتباع: ۳۱.

۲- سورة المائدة: ۵۷.

و يبدون لهم أسرار المؤمنين و يعاونونهم على بعض أمورهم التى تضرالإسلام والمسلمين و أن ما معهم من الايمان يوجب عليهم ترك موالاتهم و يحثهم على معاداتهم و كذلك التزامهم لتقوى الله التى هى إمتثال أوامره و إجتناب زواجره مما تدعوهم إلى معاداتهم ». [1]

« **الله سبحانه و تعالى خپل مؤمن بندګان له دې منع کوي چې د يهودو او انصاراؤ کتابيانو او نورو کافرو سره ملګرتيا وکړي، هغوی سره مينه او دوستي وکړي، د مؤمنانو رازونه ورته ښکاره کړي او ځينو هغو کارونو کې ورسره مرسته وکړي چې اسلام او مسلمانانو ته زيان رسوي او هغوی سره چې کوم ايمان دی هغه په دوی دا فرضوي چې د هغوی ملګرتيا پرېږدي او هغوی سره په دښمنۍ يې تېزوي همدارنګه د هغوی هغه پرهېزګاري چې د الله تعالى په اوامرو عمل کول او له منع شويو نه ځان ژغورل دي، هغه هم دوی د کافرو دښمنۍ ته رابولي** ».

**امام ابن جرير** رحمه الله **ددې اية لاندې** : « لَّا يَتَّخِذِ ٱلْمُؤْمِنُونَ ٱلْكَٰفِرِينَ أَوْلِيَآءَ مِن دُونِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ..... » [2] **ليکي** :

« ومعنى ذلك: لا تتخذوا أيها المؤمنون الكفار ظهرا و

---

۱- تفسير السعدي : ۲۳٦/۱ .

۲- سورة ال عمران : ۲۸ .

أنصارا أتوالونهم على دينهم و تظاهرونهم على المسلمين من دون المؤمنين و تدلونهم على عوراتهم فإنه من يفعل ذلك

«فليس من الله فى شئ» يعنى بذلك: فقد برئ من الله و برئ الله منه بإرتداده عن دينه و دخوله فى الكفر».[1]

«ددې معنا دا ده چې: اى مؤمنانو! تاسو كافران داسې ملاتړ او مرستيالان مه جوړوئ چې هغوى سره له مسلمانانو پرته د هغوى په دين كې پلوي وكړئ او د مسلمانانو په خلاف د هغوى ملاتړ وكړئ او د مسلمانانو پټ رازونه وروښيئ ځكه چې چا دا كار وكړ «نو د الله له پلوه په هيڅ كې نه دى» معنا دا چې هغه له الله بېزار دى او الله له هغه بېزار دى ځكه چې له خپل دين څخه اووښتى دى او كفر كې ننوتى دى».

**امام بغوى رحمه الله وايي:**

قوله تعالى: «من يفعل ذلك» أى موالاة الكفار فى نقل الأخبار إليهم و إظهارهم على عورة المسلمين «فليس من الله فى شئ» أى ليس من دين الله فى شئ.[2]

«د الله تعالى دا وينا چې: «چا دا كار وكړ» يعنې كافرو سره يې هغوى ته په معلوماتو وركولو او د مسلمانانو په پټو رازونو د هغوى په خبرولو هغوى سره ملګرتيا وكړه «نو د الله له پلوه په

١- تفسير الطبري: ٣١٣/٦.
٢- تفسير البغوى: ٢٥/٢.

هيڅ کې نه دی» معنا دا چې د الله تعالی په دين کې په هيڅ ډول داخل نه دی» .

# د جاسوس وژل

د دښمن جاسوسان به وژل کيږي. کله چې د دښمن جاسوس د مجاهدينو لاس ته راشي نو هغه به وژني، که ممکنه وه چې معلومات ترې واخلي نو تحقيق به ورسره وکړي بيا به يې ووژني او که معلومات ممکن نه ؤ نو وبه يې وژني او دا ځکه چې جاسوس تر ټولولوی مجرم دی او په ځانګړې توګه هغه جاسوس چې د مسلمانانو په جامه کې وي او کافرانو ته جاسوسي کوي هغه هم مرتد او هم جاسوس دی نو خامخا به وژل کيږي .

حديث کې راځي :

عن سلمة بن الاکوع قال: أتى النبی ﷺ عين من المشرکين و هو في سفر فجلس أصحابه يتحدث ثم انفتل فقال النبی ﷺ : « أطلبوه واقتلوه » فقتله فنفله سلبه.[1]

د اکوع ځوی سلمه نه روايت دی هغه وايي: رسول الله ﷺ سفر کې ؤ چې د مشرکانو يو جاسوس ورته راغی د هغه صحابه ؤ سره کيناست او خبرې يې ورسره کولې، بيا ييرته لاړ،

١- رواه البخاري و مسلم .

پېغمبر ﷺ وفرمایل: «راګېر یې کړئ او ویې وژنئ» (سلمه) هغه وواژه او رسول الله ﷺ د هغه جاسوس سامان سلمه ته په انعام کې ورکړ».

اوس چې د مسلمانانو په جامه کې کوم مجرمان امریکایانو ته جاسوسي کوي دا هم مرتدان دي، هم جاسوسان دي او هم بې غیرته، بې پته او د دین او وطن خرڅوونکي دي؛ دوی به هرومرو وژل کېږي د همدې مجرمانو له لاسه کورونه او جوماتونه په بمبارونو ړنګېږي، بې ګونا خلک وژل کېږي او زمونږ دین، ملت، امت او وطن ته لوی لوی زیانونه او تاوانونه رسېږي. نو ددغو مرتدانو او مجرمانو وژل ډېر اړین او ضروري دي. خو هسې د بې دلیله او بې قرائنو شک په بنسټ د چا وژل یا تعذیب ناروا دی خو که قوي دلیل او قرائن وي نو بیا یې د اعتراف او معلوماتو د لاس ته راوړلو لپاره تعذیب او وژل په کار دي لکه علی رضي الله عنه چې د حاطب د لیک وړونکې ښځې ته د انکار په وخت کې وویل چې که لیک راونه باسې نو له جامو به دې بربنډه کړو او دا ځکه چې د رسول الله ﷺ په وحې خبرېدل قوي دلیل ؤ.

امام شوکاني رحمه الله د حاطب په کیسې کې وايي:

«....ففيه متمسك لمن قال: إنه يقتل الجاسوس و لو كان من المسلمين».[1]

«په دې کې د هغه چا لپاره د دلیل نیول دي چې وايي:

---

۱- نیل الاوطار: ۲۲۸/۱۲.

اګر که جاسوس له مسلمانانو څخه هم وي وژل کېږي به » .

سهیلي رحمه الله د حاطب حدیث لاندې وايي :

« و فی الحدیث دلیل علی قتل الجاسوس فإن عمر رضي الله عنه قال: دعني فلأ ضرب عنقه ».[۱]

« په دې حدیث کې د جاسوس د وژلو دلیل دی ځکه چې عمر رضي الله عنه وویل: « ما پرېږده چې څټ وربېرې کړم » .

په همدې حدیث کې حافظ ابن حجر رحمه الله وايي :

« واستدل بإستئذان عمر علی قتل حاطب لمشروعیة قتل الجاسوس ولو کان مسلما ».[۲]

عمر رحمه الله چې د حاطب د وژلو اجازه وغوښته په دې کې په دې دلیل دی چې که جاسوس مسلمان هم وي وژل یې روا دي. او وايي :

« وهذا منتف فی غیر حاطب، لو کان الإسلام مانعا من قتله لما علل بأخص منه ».[۳]

« نه وژل له حاطب نه پرته د نورو په هکله نشته ځکه چې که یوازې مسلماني د حاطب د وژلو مانع وای نو بیا له دې زیا ځانګړي دلیل ته اړتیا نه وه ».

امام ذهبي رحمه الله د کتاب الکبائر په نهه شپېتمې کبیرې کې

---

۱- الروض الانف : ۱۵۰/۴.
۲- فتح الباري : ۶۴۴/۸ .
۳- فتح الباري : ۶۴۴/۸ .

**وايي :**

«...... إذا ترتب على جسه و هن عرى الإسلام و أهله أو قتل أوسبى أو نهب أو شئ من ذلك فهذا ممن سعى فى الأرض فسادا و أهلك الحرث والنسل فيتعين قتله و حق عليه العذاب ».[1]

**«....... کله چې د جاسوس جاسوسي د اسلام او مسلمانانو د ځواکمنۍ د سستېدو لامل شي يا د کوم مسلمان د وژلو، بندي کېدلو، مال او عزت لوټلو او داسې نورو کړاوونو سبب جوړ شي نو دا له هغو خلکو ګڼل کېږي چې په ځمکې کې يې د فساد هڅه کړې وي او کښتونه او نسلونه يې هلاک کړي وي نو د داسې چا لپاره يوائې وژل دي او عذاب پرې ثابت شو.**

**امام خرشي رحمه الله وايي :**

« والمشهور أن المسلم إذا تبين أنه عين للعدو فإنه يكون حكمه حينئذ حكم الزنديق أى فيقتل إن ظهر عليه ولا تقبل توبته و هو قول ابن القاسم و سحنون ».[2]

**« مشهوره مساله او حکم دا دی چې د کوم مسلمان په هکله دا څرګنده شي چې د اسلام د دښمنانو جاسوس دی نو په دې وخت کې د هغه حکم د زنديق (بې دينه) دی مطلب دا چې**

---

۱- الکبائر للذهبي : ۵۰.

۲- شرح مختصر خليل للخرشي : ۳۹۳/۹.

کله پرې وس برشي نو وژل کېږي به او توبه يې نه قبلېږي؛ دا د ابن القاسم او ابن سحنون وينا هم ده )).

جاسوس د اسلام هغه خطرناک دښمن دی چې له جنګېدونکي کافر نه هم زيات دی، ځکه چې دا په ځمکه کې د ورانکارۍ او ارتداد مرتکب شوی دی او دا دواړه هغه لوی جرمونه دي چې د ښښې وړ نه دي خو که له څرګندېدو نه مخکې يې توبه وايسته ، مسلمانانو ته يې غاړه کېښوده او د کافرو له پلمو يې خبر کړل نو بيا ورته ښښنه کېدی شي او که بې له توبې موندل شو نو بيا يې له موندلو وروسته توبه نه قبلېږي .

((...... قال ابن القاسم : (( يجتهد فى الجاسوس و رأيي أن تضرب عنقه و لا نعلم له توبة قال : و ما قاله صحيح و يتخير الإمام بين قتله و صلبه لسعيه فى الأرض بالفساد دون النفى والقطع لبقاء الفساد معهما )).[1]

((...... ابن القاسم ويلي دي : د جاسوس په هکله به اجتهاد کېږي او زما رايه دا ده چې څټ يې پرې شي او توبه ورته نه مومو. قرافي وايي: ابن القاسم چې څه ويلي دي هغه سم دي او امام ته د هغه د وژلو او غرغره کولو اختيار دی ځکه چې جاسوس په ځمکه کې د ورانکارۍ هڅه کړې ده: هغه به نه شړل کېږي او نه به ترې لاسونه پرې کېږي (بلکه وژل کېږي به) ځکه چې له شړلو او غوڅولو سره يې ورانکارۍ پاتې کېږي )).

۱- الذخيرة : ۳/۴۰۰ .

# په تحقيق کې تعذيب او په قرائنو پرېکړه

که د چا په هکله کوم شک پيدا شي او دليل پرې نه وي نو بشپړه پلټنه او تعقيب يې په کار دی تر څو دليل په لاس راشي الله تعالی فرمايي:

(( يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِن جَآءَكُمْ فَاسِقٌۢ بِنَبَإٍ فَتَبَيَّنُوٓاْ أَن تُصِيبُواْ قَوْمًۢا بِجَهَـٰلَةٍ فَتُصْبِحُواْ عَلَىٰ مَا فَعَلْتُمْ نَـٰدِمِينَ )).[1]

(( ای مؤمنانو! که تاسو ته کوم ورانکاری څه خبر راوړي نو پلټنه يې وکړئ هسې نه چې ځينو خلکو ته په ناپوهۍ زيان ورسوئ اوبيا مو چې په ځانونو کوم ناوړه کار کړی وي پرې پښېمانه شئ )).

يوازې په شک او بې له کوم دليل اوبيا وړيو قرينو او ځواکمنو نښو پرېکړه ناروا ده او هره پرېکړه په ګواهانو نا شونې ده اسلام کې بينه (دليل) دی.

او بينه يوازې ګواهان نه دي. (( بينه )) هغه پوخ دليل، بياړې نښې، اعتراف، دلالة الحال، ځواکمنې قرينې او عادلو ګواهانو ته ويل کېږي چې خبره او دعوه پرې ثابتېږي. نو عادل ګواهان د (( بينې )) له افرادو او ډولونو څخه يو فرد او يو ډول دی.

١- سورة الحجرات: ٦.

که يوائحې اعتراف يا ګواهان بينه او دليل وګنل شي بيا خو بـه د ډېرو خلکو حقوق ضايع شي، حدود بـه ناشـوني شـي، د پرېکـړو لارې پـه وتـړل شـي، ورانکـاران او مجرمـان بـه زړور شـي او د جرمونو لارې به ورته خلاصې شي، امـن بـه لـه منځـه لاړ شي او اسلامي شريعت به له پرېکړو کولو او حقوقو ورکولو نه قاصر او بې وسه وګڼل شي.......

مسلمان لپاره له يوه پلوه ډېر احتياط پـه کـار دی چې د هيڅا په هکله هسې په ګومان او شک پرېکړه ونـه کـړي بلکـه تـر خپلـه وسـه پـا خـه دليلونـه، پيـاوړې قرينـې، څرګنـدې نښـې او ځواکمنې اشارې ووينې، و پلټي او بيا هماغسې پرېکـړه وکـړي. او له بله پلوه مسلمان بايد هوښيار، زيرکه او ويښ وي مسلمان له يوې سوړې دوه ځل نه چيچل کېږي، بې غـوره او لـټ تنبـل نـه وي، د دښمنانو پلمو او د سيسو ته بشپړه پاملرنه کوي او هر پـل د اسلام له لارښوونو سره سم اخلي.

په تفتيش او پلټنې کې بې له کوم سم دليـل او ځـواکمنې قرينې وهل ټکول او تعذيب ناروا دی خو کله چې قرينـه او دليـل وي نو بيا روا دی لکه د حاطب په کيسې کې چې ښځې تـه علـی ﷺ وويل :

« لتخرجن الكتاب أو لنلقين الثياب ».[1]

« يا به ليک را اوباسې او يا به در څخه جامې باسو ».

نو د ښځې لغړول په اسلام کې ناروا دي خو دلته دليل بانـدې روا

---

۱- رواه البخاري و مسلم و ابو داود .

شول او هغـه رسـول الله ﷺ تـه د وحـې پـه ذريعـه خبـر ورکـول وو. همدارنګه د حيي بن اخطب تره د تړون په خلاف د حيي څه مال په شاړه ځمکه کې پټ کړی ؤ او منکر ؤ ويل يې چې هغه مصرف شوی دی نو رسول الله ﷺ د قرائنو له کبلـه هغـه دورغجـن وګاڼـهٔ او حديث کې داسې راځي:

فقال ﷺ: « العهد قريب و المال أكثر من ذلك » فدفعه رسول الله ﷺ إلى زبير بن العوام فمسه بعذاب و قد كان حيي قبل ذلك قد دخل خربة فقال: قد رأيت حييا يطوف خربة هاهنا فذهبوا فطافوا فوجدوا المسك فى خربة فقتل رسول الله ﷺ إ بنى أبى الحقيق....... و سبى رسول الله ﷺ نساءهم و ذراريهم و قسم أموالهم للنكث الذى نكثوه ».[1]

« رسول الله ﷺ ورتـه وفرمايـل: « وخـت نـږدې تېـر شـوی دی او مال له دې ډېر زيات ؤ چې په دومره لږه موده کـې دې تـول ولګېږي » بيا رسول الله ﷺ هغه زبير بن العوام رضي الله عنه تـه حوالـه کـړ هغه څه نا څه ووهـه (نو اعتـراف يـې وکـړ) لـه دې مخکـې حيـي يوې شاړې ته ننوتی ؤ نـو تـره يـې وويـل: مـا حيـي ليـدلی ؤ چـې دغلته تاوېدهٔ راتاوېدهٔ صحابه هلتـه لاړل وګرځېـدل راوګرځېـدل او هلته يې هغه ګوډی پيدا کړ نو رسول الله ﷺ د ابوالحقيق دواړه ځامن ووژل، ښځې او ماشومان يې وينځې غلامان کـړل او مـال

[1] ١- رواه ابن حبان والبيهقى و ابوداود فتح الباري: ۴۷۹/۷.

يې وويشۀ او دا ځکه چې هغوی ترون مات کړی ؤ )).

نو دلته د لېږ وخت تېرېدو او د مال د ډېر والي دوه ځواکمني قرينې او د رسول الله ﷺ فراست او زيرکتيا ددې لاملونه شول چې هغه وربړوي او حقيقت پرې معلوم کړي.

همدارنګه صحابه کرامو رضي الله عنهم د شرابو په بوی، د شرابو په کانګو او په بلاربېدو حد جاري کړی دی.[1]

علامه ابن فرحون رحمه الله د قرائنو په ترڅ کې وايي:

(( و منها أنه ﷺ فعل بالعرنيين ما فعل بناء على شاهد الحال ولم يطلب بينةبمافعلوا ولاوقف الأمرعلى إقرارهم )).[2]

(( له دې قرينو او نښو نه دا هم ده چې رسول الله ﷺ چې عرنيينو ته کومه سزا ورکړه هغه يې د حال په ګواهۍ ورکړه نه يې د هغوی په کړو د کوم دليل غوښتنه وکړه او نه يې د هغوی اعتراف پورې خبره وتړله )).

نو دلته د شپانه وژل، د اوښانو تښتول او له اوښانو سره نيول پاخه دليلونه شول. همدارنګه جابر رضي الله عنه ته رسول الله ﷺ وفرمايل چې خيبر کې زما وکيل دی هغه نه پنځلس وسقه خورماوې واخله او راپې وړه که نښه يې درڅخه وغوښته نو د

---

۱- رواه البخاري و مسلم و ابوداود والحاكم. منهاج السنة النبويه: ۹۴/۶. اعلام الموقعين: ۱۰۳/۱. مجموع الفتاوى: ۳۸۴/۲۰. تبصرة الحكام: ۱۶۹/۴.

۲- تبصرة الحكام: ۱۶۹/۴.

**هغه په ګروې لاس کېده .**[۱]

**نو دا نښه د ګواهانو په ځای وګڼل شوه .**

**امام ابن القیم رحمه الله وایي :**

« فالبينة إسم لكل ما يبين الحق و يظهره و من خصها بالشاهدين أو الأربعة أو الشاهد لم يوف مسماها حقه و لم تأت البينة قط في القرآن مرادا بها الشاهدان. و إنما أتت مرادا بها الحجة والدليل والبرهان مفردة و مجموعة. وكذلك قول النبي ﷺ : « البينة على المدعى »[۲] ، المراد به : أن عليه ما يصحح دعواه ليحكم له والشاهدان من البينة. ولا ريب أن غيرها من أنواع البينة قد يكون أقوى منها كدلالة الحال على صدق المدعي فإنها أقوى من دلالة إخبار الشاهد؛ والبينة والدلالة والحجة والبرهان والآية والتبصرة والعلامة والأمارة متقاربة في المعنى ».[۳]

**« نو بینه د هر هغه څه نوم دی چې حق جوتوي او څرګندوي . او چا چې یواځې دوه، څلورو یا یو ګواه پورې خاص کړې ده هغه ددې نوم نومول شوي ته پوره حق نه دی ورکړی او قران کې بینه یواځې د ګواهانو په معنا بېخي نه ده راغلې. قران کې د حجت، دلیل او برهان په معنا راغلې ده. همدارنګه د نبي**

۱- رواه ابن ماجه .

۲- رواه البخاري و مسلم و ابوداود والترمذي والنسائي و ابن ماجة و احمد .

۳- الطرق الحكمية في السياسة الشرعية : ۱۰.

كريم ﷺ دا وينا چې: «البينة على المدعى» «بينه راوړل دعوه كوونكي باندې دي» له دې نه هم مراد دا دی چې مدعي باندې د داسې دليل راوړل دي چې دعوه يې پرې صحيح كېږي او دا ددې لپاره چې د هغه لپاره فيصله وشي، او ګواهان هم له (بينې) څخه دي. او په دې كې هم شک نشته چې كله كله له ګواهانو پرته نورې بينې او دليلونه له ګواهانو څخه زيات پياوړي او ځواكمن وي لكه د مدعي داسې پياوړی حال چې د هغه په رېښتينولۍ دلالت كوي چې دا د شاهد د خبر وركولو نه ډېره ځواكمنه نښه او دليل دی.

بينه، دلالت، حجت، برهان، نښه، زيركتيا، علامه او اماره ،ټول په معنا كې سره نږدې دي.

همدارنګه ابن القيم رحمه الله زياتوي:

«فالشارع لم يلغ القرائن والأمارات و دلائل الأحوال بل من استقرأ الشرع فى مصادره و موارده، وجده شاهدا لها بالإعتبار مرتبا عليها الأحكام».[1]

«نو شارع قرينې، نښې او د احوالو دلائل له منځه نه دي وړي، بلكه چا چې د شريعت سرچينې او ګودرونه پلټلي وي نو دا به يې موندلي وي چې شريعت دې ټولو ته اعتبار وركوي او احكام پرې جاري كوي».

غښتليو قرينو، ځواكمنو نښو او پياوړيو اشارو ته اعتبار وركولو لپاره نور ډېر دليلونه هم شته لكه:

---

۱- الطرق الحكمية: ۱۰.

د داود او سليمان عليهما السلام په وخت کې دوه ښځو په يو ماشوم دعوه وکړه يوه مشره او بله کشره وه داؤد ﷺ مشرې لپاره پرېکړه وکړه سليمان ﷺ وويل: چاړه راوړئ چې دا ماشوم پرې دوه ټوټې کړم او هرې يوې ته يوه ټوټه ورکړم. مشرې وويل: سمه ده، کشرې وويل: مه يې نيموه دا د همدې مشرې دی. نو سليمان ﷺ د کشرې لپاره پرېکړه وکړه او دا ځکه چې د مشرې نه ؤ نو ځکه يې په نيمولو زړه نه خوږېده او د کشرې ځوی ؤ نو ځکه پرې ،تېرېده او په نيمولو يې زړه ونه شو نو دا يوه ځواکمنه قرينه او پياوړې نښه شوه او پرېکړه پرې وشوه همدارنګه د يوسف ﷺ د کميس د شا له پلوه شلېدل ددې پياوړې قرينه او دليل شو چې ښځې لاس وراچولی او يوسف ﷺ بې ګونا ؤ.

عمر ﷺ او نورو صحابه ؤ په هغې ښځې درجم پرېکړه وکړه چې نه يې مېړۀ ؤ او نه وينځه وه خو بلا ربه شوې وه نو دا لويه او جوته نښه ده .

عمر، عبدالله بن مسعود او نورو صحابه ؤ ﷺ خولې نه د شرابو په بوی او د شرابو په کانګو د شرابو دحد دجاري کولو پرېکړه وکړه .

همدارنګه ټول فقهاء وايي چې چا سره د چا غلا شوی مال وموندل شو نو دا د غلا پخه نښه او پياوړی دليل دی .

کله چې دا ثابته شوه چې د مسلمانانو خلاف ملاتړ، د مسلمانانو په زيان کافرو ته جاسوسي کول او هغوی سره ملګرتيا کفر او ارتداد دی نو د مرتد وينه او مال هيڅ حرمت نه

**لري د هغه سر او مال هدر او غنيمت دی .**

**فتاوی قاضي خان ليکي :**

« وردة الرجل تبطل عصمة نفسه حتى لو قتله قاتل بغير أمر القاضي عمدا أو خطأ أو بغير أمر السلطان أو أتلف عضوا من أعضائه لا شئ عليه » .[1]

**« د يو چا مرتد کېدل د هغه د ځان حرمت او ساتنه باطلوي تر دې چې که چا د قاضي او د حاکم له امره پرته کوم مرتد قصدا يا په خطا ووواژه يا يې د هغه کوم غړی له منځه يوړ نو هيڅ سزا پرې نشته ».**

# په اور سېځل منع دي

**په اور باندې د دښمن سېځل منع دي لکه چې حديث کې راځي :**

عن أبي هريرة أنه قال : بعثنا رسول الله ﷺ فى بعث و قال لنا: « إن لقيتم فلانا و فلانا-لِرجلين من قريش سما هما- فحرقوهما با لنار » قال: ثم أتيناه نودعه حيث أردنا الخروج فقال : « إنى كنت أمرتكم أن تحرقوا فلانا و فلانا بالنار و إن

۱- فتاوی قاضي خان على هامش عالمګيرية : ۵۸۱/۳ .

النار لايعذب بها إلا الله فإن أخذتموهما فاقتلوهما ››.[۱]

ابـوهريرة ﷺ نـه روايـت دی هغـه وايـي: رسـول الله ﷺ مونږ په يوه ډله کې ولېږلـوو د قريشـو د دوه کسـانو نومونـه يـې واخيستل اوويې فرمايل: ‹‹ کۀ فلاني او فلاني سره مـخ شـوئ نـو په اور يې وسېځئ ››کله چې مونږ مدينې نه د وتلو اراده وکړه نـو ورته راغلوو چې مخه ښه ورسره وکړو هغۀ وفرمايـل : ‹‹مـا تاسـو ته امر کړی ؤ چې فلانی او فلانی په اور وسېځئ او پـه اور لـه الله پرته نور څوک بايد عذاب ور نه کړي نو کۀ هغـوی موومونـدل و يې وژنئ ››.

له دې حديث څخه څرګنده شوه چې په اور سېځل نـا روا دي خو کۀ دښمن کوم مسلمان يا مسلمانان په اور سېځلي وونـو بيا يې سېځل په کار دي لکه د عکل او عرينـه قبيلـو څه کسـان چې مدينې منورې ته راغلل او د مدينې هوا پرې سمه را نغله نـو رسـول الله ﷺ هغـوی د زکـات او ښـانو تـه ولېـږل هغـوی هلتـه د اوښانو شېدې او ميتيازې وڅښلې او کله چې ښه روغ شـول نـو د رسـول الله ﷺ شـپون (يسـار) يـې ډېـر پـه وحشـي ډول وواژۀ چې سترګې يې ورو‌داغلې، پښـې او لاسـونه يـې ورغـوڅ کړل او بيـا يې وغور ځاوه ، په دې ترتيـب يـې وواژه او د زکـات اوښـان يـې مخکې کړل او وتښتېدل کله چې رسول الله ﷺ ته خبر راغی هغـه خلک ور پسې ولېږل، راويې نيول او بيا رسـول الله ﷺ پـه هماغـه ډول ووژل چې شپون يې وژلی ؤ. نو هغوی يـو د ارتـداد مرتکب

---

۱- رواه البخاري.

شوي وو او کفر يې کړی ؤ، غلا يې کړې وه، شپون يې وژلی ؤ او د الله جل جلاله او د هغهٔ د پيغمبر سره يې حرب (جګړه) کړې وه [۱]

نو کهٔ د اسلام دښمنانو مسلمانانو سره د سپځلو عمل وکړ بيا قصاصا ورسره کول په کار دي.

همدارنګه په اوسني عصر کې اورغورځوونکي بمونه، توغندي، اتومي وسلې او نوې ډول ډول اور بلوونکي او اور غورځوونکې وسلې د مسلمانانو خلاف جوړېږي او استعمالېږي لکه د امريکا او ناټو پوځونه يې چې په افغانستان او عراق کې استعمالوي نو مسلمانانو ته هم په کار دي چې د هغوی په خلاف دغه ډول وسلې جوړې کړي، لاس ته يې راوړي او د هغوی په خلاف يې استعمال کړي.

۱- دا روايت بخاري او نورو د احاديثو، سيرت او تاريخ کتابونو په تفصيل راخيستی.

# مُثْله منع ده

مثله د پوزې، غوږونو، شونډو او د نور وغړو پرې کولـو او د مړي بدرنګه کولو ته ويل کيږي اسـلام کې مثلـه منـع ده تـر دې چې جهاد کې دښمن کله ووژل شي نو د هغه مثله کـول نـا روا دي.

**حديث کې داسې راځي:**

عن عمران بن حصين قال : ما خطبنا رسول الله ﷺ خطبة إلا أمرنا بالصدقة و نهانا عن المثلة . [1]

**عمران بن حصين رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي : رسول الله ﷺ به چې هر کله مونږ ته خطبه راکوله نو پـه خيـرات ورکولـو بـه يې امر کاوه او له مثلې به يې منع کوله .**

**بل حديث کې داسې راځي:**

عن سليمان بن بريدة عن أبيه قال : (( كان رسول الله ﷺ إذا أمر أميرا على جيش أو سرية أوصاه فى خاصته بتقوى الله و من معه من المسلمين خيرا ثم قال : (( أغزوا بسم الله فى سبيل الله قاتلوا من كفر بالله أغزوا ولا تغلوا ولا تغدروا ولا تمثلوا .............)). [2]

---

۱- رواه اصحاب السنن و المسانيد .

۲- رواه مسلم . دا حديث مخکې د جهاد په ادابو کې مفصل تېر شوی دی .

سليمان بن بريده خپل پلار نه روايت کوي هغه وايي: رسول الله ﷺ به چې کله په کوم لښکر يا ټولګي کوم اميرو ټاکه نو د هغه د ځان په هکله به يې ورته الله نه د وېرې او هغه سره چې کوم مسلمانان وو هغوي سره د ښېګړې حکم وکړ بيا به يې وفرمايل: «د الله په نامه د الله په لار کې غزا وکړئ چا چې الله باندې کفر کړی دی هغه سره وجنګېږئ غزا وکړئ او خيانت مه کوئ، ژمنې مه ماتوئ، او مثله مه کوئ ......».

نو مثله ناروا ده خو که کافرو د مجاهدينو مثله کړې وه نو بيا د غچ اخيستلو په توګه روا ده خو نه کول يې غوره دي او که هغوی نه وه کړې نو بيا روا نه ده.

الله تعالی فرمايي:

«وَإِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوا۟ بِمِثْلِ مَا عُوقِبْتُم بِهِۦ ۖ وَلَئِن صَبَرْتُمْ لَهُوَ خَيْرٌ لِّلصَّـٰبِرِينَ».[1]

«او که چا ته مو سزا ورکوله نو داسې سزا ورکړئ لکه تاسو چې څرنګه پرې کړول شوي وئ او که صبر مو وکړ نو دا صبر کوونکو لپاره غوره ده».

---

۱- سورة النحل: ۱۲٦.

# د ښځو او ماشومانو وژل

اسلام کې د جهاد په اوږدو کې د ښځو او ماشومانو وژل منع دي ځکه چې هغوی له جنګ څخه ګوښې او کمزوري خلک دي. او د ماشومانو له وسه نه جنګ پوره دی او نه د کفر قصد.

**حدیث کې راځي:**

عن ابن عمر قال: «وُجدت إمرأة مقتولة في بعض مغازي رسول الله ﷺ فنهى رسول الله ﷺ عن قتل النساء والصبيان».[1]

عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه روایت دی هغه وايي: د رسول الله ﷺ له غزا ګانونه په یوې کې یو ځای وژل شوې ښځه وموندل شوه نو رسول الله ﷺ د ښځو او ماشومانو له وژلو منع وکړه.

خو که ښځې په جنګ کې شریکې وې - لکه اوس چې د امریکا او ناټو پوځونو کې ښځینه او نارینه (؟) ګډ وډ په وحشیانه یرغل کې شریک دي - نو بیا د دې ښځو وژل د نارینه و په څېر فرض دي.

په جنګ کې شریکې لاڅه چې که د حملې په وخت کې په دښمن بې له دې برید ممکن نه و چې ښځې او ماشومان پکې

---

۱- رواه البخاری و مسلم.

ووژل شي نو بيا د هغوی وژل هم ورسره روا دي او دا ځکه چې د محارب دښمن په پرېښودلو کې د اسلام او مسلمانانو لوی تاوان دی .

**حديث کې راځي :**

عن الصعب بن جثامة قال : مر بى النبى ﷺ بالأبواء أو بودان وسئل عن أهل الدار يبيتون من المشركين فيصاب من نسائهم وذراريهم قال : (( هم منهم )) .[1]

صعب بن جثامه رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي : ابواء يا ودان ځای کې ما باندې پيغمبر ﷺ تېر شو، هغه نه د مشرکانو د داسې کور په هکله پوښتنه وشوه چې په شپه کې پرې بريد کېږي نو د هغوی ښځو او ماشومانو ته هم يکې زيان رسېږي، هغه وفرمايل: (( هغوی د نارينه جنګېدونکو مشرکانو څخه دي ))

يعنې وژل يې روا دي . خو تروسه به کوښښ کېږي چې نه جنګېدونکې ښځې او ماشومان ونه وژل شي .

همدارنګه د هغه مزدور وژل هم منع دي چې هغه په جنګ کې هيڅ ډول لاس نه لري .

**حديث کې راځي :**

عن رباح بن الربيع قال: قال رسول الله ﷺ لخالد: ((لاتقتل إمرأة و لا عسيفا )).[2]

---

۱- رواه البخاری و مسلم .

۲- رواه ابو داود .

رياح بن ربيع رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: رسول الله ﷺ خالد رضي الله عنه ته وفرمايل: ((مه ښځه وژنه او مه مزدور)).

خو دې کې هغه بې پته او بې ننګه غلامان او مرتدان نه دي داخل چې امريکايانو سره په کارونو بوخت دي. دا مرتد شوي دي په دوي جهاد فرض عين دی خو دوی د جهاد په ځای هغوی سره کار کوي او هغوی ته ګټه رسوي دوی د هغوی ملاتړ ګڼل کېږي او په هر حالت کې وژل کېږي.

# تَتَرسُ

تترس دې ته ويل کېږي چې دښمن لـه بې ګونـا ښـځو او ماشومانو او يا له اهل ذمه او مسلمانانو څخه د سپر کـار واخلـي او د ځان د ژغورلو لپاره د هغوی په منځ کې اوسېږي او ډال يـې کړي .

مجاهدين به تروسه کوښښ کوي چې ښـځو، ماشـومانو او مسلمانانو ته تاوان ونه رسېږي خو که د کافرانو او مرتـدانو د له منځه وړلو په ترخ کې هغوی هم له منځه تلل او بې له دې هـيڅ چاره نه وه نـو بيـا د کفـر او کـافرانو د مـاتولو او د مسـلمانانو او اسلام د بري لپاره پرې بريد روا بلکه فرض دی .

او هغه خلک چې امريکايانو او د ناټو ځواکونو سـره کـار کوي، ترجماني ورته کوي ...... د هغوی وژل خو فرض دي .

مخکـې د صـعب بـن جثامـه رضي الله عنه حـديث تېـر شـو هغـه د متترس د وژلو لپاره دليل دی همدارنګه رسول الله ﷺ د طـائف په محاصره شوې کلا د منجنيق د ګوزارونو حکـم ورکـړی ؤ چـې هلته ښځې او ماشومان هم وو خو بې له دې نه کېدۀ نـو ځکـه يـې اجازه ورکړه .

منجنيـق يـوه داسـې لويـه الـه وه چـې لکـه د لينـدې او مچينوغزې غوندې د تيږو ګوزارونه پرې کېـدل، پـه ځـو کسـانو چلېـدۀ او لـوبې لـويې تيـږې يـې د هـوان پـه څېـر دښـمن بانـدې

**ورګوزارولې . جصاص په احکام القران کې په دې مسالې تفصيلي څېړنه کړې ده او وايي :**

« قال أبوحنيفة و أبو يوسف و زفر و محمد و الثوري : لا بأس برمي حصون المشركين و إن كان فيها أسارى و أطفال من المسلمين و لا باس بأن يحرقوا الحصون و يقصدوا به المشركين و كذلك إن تترس الكفار بأطفال المسلمين رمي المشركون و إن أصابوا أحدا من المسلمين في ذلك فلا دية ولا كفارة ».[1]

« **امام ابوحنيفه، ابويوسف، زفر، محمد او ثوري** رحمهم الله تعالى **وايي : « اګر که د مشرکانو په کلاګانو کې د مسلمانانو بنديان او ماشومان هم وي د هغوی ويشتل روا دي، همدارنګه د هغوی د کلاګانو سېځل هم روا دي خو اراده به د مشرکانو د وژلو وي، همدارنګه که کافرانو د مسلمانانو ماشومان سپر کړل نو هم مشرکان به ويشتل کېږي او که د مسلمانانو نه څوک پکې ولګېدنو په دې کې نه ديت شته او نه کفاره ».**

**بيا وايي :**

« و إذا ثبت ما ذكرنا من جواز الإقدام على الكفار مع العلم بكون المسلمين بين أظهرهم وجب جواز مثله إذا تترسوا بالمسلمين لأن القصد فى الحالين رمي المشركين دونهم و من

١- احكام القران للجصاص : ٥\ ٢٧٣-٢٧۴.

أصيب منهم فلا دية فيه ولا كفارة كما أن من أصيب برمى حصون الكفار من المسلمين الذين فى الحصن لم تكن فيه دية ولا كفارة، ولأنه قد أبيح لنا الرمى مع العلم بكون المسلمين فى تلك الجهة فصاروا فى الحكم بمنزلة من أبيح قتله فلا يجب به شيئ ». [1]

« كله چې دا خبره ثابته شوه چې مونږ كومه ياده كړه چې سره له دې چې په دې پوهېږې چې كافرانو سره مسلمانان هم دي خو په هغوى بريد روا دى نو په همدې ډول چې كله كافران مسلمانانو باندې ځانونه ژغوري نو په هغوى باندې بريد كول هم روا دي ځكه چې دواړو صورتونو كې اصلي اراده د مسلمانانو وژل نه دي بلكه د مشركانو وژل دي خو كه د هغوى په ترخ كې مسلمانانو كې څوک ووژل شي نو نه پكې ديت شته او نه كفاره. همدارنګه كه د كافرانو په كلا ګانو كېمپونو او ځايونو كې له مسلمانانو نه څوک وي او د هغوى په ځايونو د ګوزارونو په ترخ كې ووژل شول نو نه پكې ديت شته او نه كفاره او دا ځكه چې كله مونږ ته دا روا دي. چې د كافرو په خوا كې مسلمان وي او مونږ ته ښه معلومه هم وي خو په هغو كافرانو ګوزارونه روا دي نو هغه مسلمانان هم د هغه چا غوندې شول چې وژل يې روا دي نو هيڅ شى پكې نشته ».

---

۱- احكام القران للجصاص: ٥/ ۲۷٥-۲۷٦ (تفسير سورة الفتح).

**همدارنګه ابن الهمام رحمه الله په فتح القدير کې په دې هکله څېړنه کړې ده او دا يې روا ګڼلي هغه وايي :**

(( ولا بأس برميهم وإن كان فيهم مسلم أسير أو تاجر بل لو تترسوا بأسارى المسلمين وصبيانهم سواء علم أنهم إن كفوا عن رميهم إنهزم المسلمون أو لم يعلموا ذلك إلا أنه لا يقصد برميهم إلا الكفار )).[1]

**(( که د کافرو منځ کې مسلمان بندي يا تاجر هم وي ويشتل يې روا دي بلکه که کافرانو په مسلمانانو بنديانو او د هغوی په ماشومانو ځانونه ژغورل نو که دې باندې پوهېدۀ چې که هغوی ونه ولي نو مسلمانان ماتې خوري او که نه پوهېدل په دواړو حالتو کې پرې بريد روا دی خو اراده به يې يوازې د کافرانو د ويشتلو وي )).**

**شيخ الاسلام رحمه الله وايي :**

(( وقد اتفق العلماء على أن جيش الكفار إذا تترسوا بمن عندهم من أسرى المسلمين وخيف على المسلمين الضرر إذا لم يقاتلوا فانهم يقاتلون و إن أفضى ذلك إلى قتل المسلمين الذين تترسوا بهم )) .[2]

**(( علماؤ په دې اتفاق کړی دی چې د کافرانو په لښکر**

---

۱- فتح القدير لابن الهمام : ۴۴۸۲/۵ .

۲- مجموع الفتاوى : ۵۴۷/۲۸ .

**کې مسلمانان وي، کافرانو هغه ډال کړي وي، که مسلمانان ونه جنګېږي نو زيان ورته رسېږي نو که د هغو مسلمانانو د وژلو لامل جوړېږي چې هغوی ډال کړي دي، هم کافرانو سره به جنګ کېږي ››.**

**شيخ الاسلام رحمه الله د تترس مساله څېړي او وايي چې د کافرانو د ويشتلو په ترڅ کې که مسلمانان ووژل شول هغوی شهيدان دي. هغه وايي:**

‹‹ و هؤلاء المسلمون إذا قتلوا كانوا شهداء ولا يترك الجهاد الواجب لأجل من يقتل شهيدا فان المسلمين إذا قاتلوا الكفار فمن قتل من المسلمين يكون شهيدا و من قتل و هو في الباطن لا يستحق القتل لأجل مصلحة الإسلام كان شهيدا ››.[1]

**‹‹ دغه مسلمانان چې د کافرانو د وژلو په ضمن کې ووژل شي، شهيدان دي نو فرض جهاد له دې کبله نه پرېښودل کېږي چې ځوک شهيد وژل کېږي ځکه چې مسلمانان کله کافرانو سره وجنګېدل نو له مسلمانانو نه که څوک ووژل شو هغه شهيد دی او څوک چې حقيقت کې د وژلو وړ نه وي خو د اسلام د مصلحت لپاره ووژل شي نو هغه شهيد دی ››.**

**ابن قدامه رحمه الله وايي :**

‹‹ و إن تترسوا في الحرب بنسائهم و صبيانهم جاز

---

۱- مجموع الفتاوى : ۵۴۷/۲۸.

رميهم و يقصد المقاتلة لأن النبيﷺ رماهم بالمنجنيق و معهم النساء و الصبيان و لأن كف المسلمين عنهم يفضي إلى تعطيل الجهاد لأنهم متى علموا ذلك تترسوا بهم عند خوفهم فينقطع الجهاد و سواء كانت الحرب ملتحمة أو غير ملتحمة لأن النبي صلى الله عليه وسلم لم يكن يتحين بالرمي حال التحام الحرب)).[1]

(( که د اسلام دښمنانو په جنګ کې خپلې ښځې او ماشومان سپر کړل نو ويشتل يې روا دي او اراده به د جنګياليو کېږي ځکه چې نبي کريم ﷺ په منجنيق ويشتلي وو او هغوی سره يې ښځې او ماشومان هم وو؛ بله دا چې په هغوی د مسلمانانو بريد نه کول د جهاد مخنيوی کوي ځکه چې که هغوی په دې وپوهېدل نو بيا به هر وخت د وېرې په وخت کې هغوی نه ډال جوړوي نو د جهاد مخنيوی به وشي؛ او که جنګ نښتی ؤ او که نه، ويشتل يې روا دي ځکه چې نبي کريم ﷺ د ويشتلو لپاره يوائې د تود جنګ وخت نه دی ټاکلی )) .

---

[1] - المغني لابن قدامة : ۱۰\۵۰۴ .

# استازي نه وژل کيږي

د صلحو، خبرو، مذاکراتو او مرکو هغه استازي چې د دواړو ډلو تر منځ يا د يو لوري له پلوه خبرې ورې راوړي ...... هغوی به نه وژل کيږي.

حديث کې راځي:

عن نعيم بن مسعود أن رسول الله ﷺ قال لرجلين جاءا من عند مسيلمة: «أما والله لولا أن الرسل لا تقتل لضربت أعناقكما».[1]

نعيم بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ هغو دوه سړيو ته چې د مسيلمة الكذاب له لوري راغلي وو وفرمايل: «خبردار په الله قسم دی چې که دا خبره نه وای چې استازي نه وژل کيږي نوستاسو څتونه به مې وهلي وو».

---

۱- رواه احمد و ابوداود.

# دښمنان بنديان نيول

د جهاد فی سبيل الله په ډګرونو کې چې دښمنان ژوندي ونيول شي نو هغوی بايد وتړل شي او وروسته د هغوی په هکله له څلورو پرېکړو يوه مشوره وشي چې:

۱- وژل.

۲- ورسره احسان کول او بې فديې خوشې کول.

۳- په فديې اخيستلو خوشې کول

۴ - او وينځې غلامان جوړول دي.

الله تعالی فرمايي:

(( فَإِذَا لَقِيتُمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ فَضَرْبَ ٱلرِّقَابِ حَتَّىٰٓ إِذَآ أَثْخَنتُمُوهُمْ فَشُدُّواْ ٱلْوَثَاقَ فَإِمَّا مَنًّۢا بَعْدُ وَإِمَّا فِدَآءً حَتَّىٰ تَضَعَ ٱلْحَرْبُ أَوْزَارَهَا )).[1]

(( کله چې کافرانو سره مخ شوئ نو تر هغې يې څټونه ووهئ چې کله مو هغوی په وينو لتاړ کړل (او بنديان مو ونيول) نو کلک يې وتړئ بيا يا پرې احسان وکړئ (او خوشې يې کړئ) او يا يې فديه واخلئ دا کار تر هغې وکړئ چې جنګ خپل سامان کېږدي او بس شي )).

۱- سورة محمد : ۴ .

# وژل

که د بنديانو خوشي کولو او ازادولو کې اسلام ته کوم ګټه نه رسېده او يا ډېر لوی مجرمان وو او اسلام ته يې مخکې ډېر زيان رسېدلی ؤ او يا په راتلونکي کې د هغه ازادولو کې مسلمانانو ته زيان رسېده نو بيا به ووژل شي.

الله تعالى فرمايي:

(( مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَن يَكُونَ لَهُۥٓ أَسْرَىٰ حَتَّىٰ يُثْخِنَ فِى ٱلْأَرْضِ ۚ تُرِيدُونَ عَرَضَ ٱلدُّنْيَا وَٱللَّهُ يُرِيدُ ٱلْـَٔاخِرَةَ ۗ وَٱللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ لَّوْلَا كِتَـٰبٌ مِّنَ ٱللَّهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمْ فِيمَآ أَخَذْتُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ )).[1]

(( هيڅ پيغمبر ته دا روا نه دي چې هغه لپاره بنديان وي تر هغې چې په ځمکې کې وينې توی کړي؛ ايا تاسو د دنيا سامان غواړئ؟ الله خو تاسو لپاره اخرت غواړي او الله غالب او د حکمت څښتن دی که د الله له پلوه مخکني ليکل نه وی نو د هغو مالونو له امله به تاسو ته لوی عذاب رسېدلی ؤ چې اخيستي مو دي )).

---

۱- سورة الانفال: ٦٧-٦٨.

**همدارنګه حدیث کې راځي:**

عن أنس بن مالك أن رسول الله ﷺ دخل عام الفتح و على رأسه المغفر فلما نزعه جاء رجل فقال : إن ابن خطل متعلق بأستار الكعبة فقال: «أقتلوه»[١].

**انس بن مالک رضي الله عنه نه روایت دی چې د مکې د فتحې په کال رسول الله ﷺ مکې مکرمې ته داسې حال کې ننواته چې زغره یې په سروه کله یې چې زغره وایسته یو سړی ورته راغی او ویې ویل چې ابن خطل د کعبې پوخونو پورې نښتی دی هغه فرمایل: «ویې وژنئ».**

**عبدالله بن خطل مخکې مسلمان شوی ؤ بیا بېرته مرتد شو او د رسول الله ﷺ هجوه به یې ویله، یو مسلمان خادم ورسره ؤ هغه یې هم وژلی ؤ نو ځکه رسول الله ﷺ د هغه د وژلو امر وکړ او بیا د زمزم او مقام ابراهیم ترمنځ صحابه ؤ وواژهٔ. حرم کې یوازې رسول الله ﷺ ته د قتال اجازه شوې وه مونږ ته یوازې هغه وخت روا دی چې د اسلام دښمنان یې راسره پکې کوي. خو په نورو جوماتونو کې د ابن خطل غوندې مرتدانو وژل روا دي.**

**د بدر له بندیانو نه دوه کسه لوی ورانکاران رسول الله ﷺ ووژل حدیث کې راځي:**

عن عائشة أن رسول الله ﷺ لما أسر أهل بدر قتل

---

١- رواه البخاري.

عقبة بن أبی معیط والنضر بن الحارث و من علی أبی عزة الجمحي.[۱]

عائشې رضي الله عنها نه روایت دی چې رسول الله ﷺ چې کله د بدر مشرکان بندیان ونیول نو عقبة بن اَبي معیط او نضر بن الحارث یې ووژل او په ابوعزة الجمحي یې احسان وکړ او ازاد یې کړ.

# احسان کول

که مسلمانانو د بندیانو په بې فدیې خوشې کولو کوم مصلحت ګاڼه نو خوشې کولی یې شي خو که په خوشې کولو کې یې مصلحت نه ؤ یا یې اسلام ته ډېر زیان رسولی ؤ او یا په راتلونکي کې ترې خطر محسوسېده نو هغه به وژل کېږي.

حدیث کې راځي:

رسول الله ﷺ ثمامة بن اثال د جومات ستنې پورې تړلی ؤ، بیا یې درې ورځې وروسته ازاد کړ او هغه اسلام قبول کړ.[۲]

همدارنګه د هوازنو وفد چې کله راغی او خپل بندیان قومیان یې وغوښتل نو رسول الله ﷺ د هغوی د بندیانو د

۱- شرح السنة – مشکاة المصابیح – البدا یة وا لنهایة لابن کثیر: ۳/۲۴۲ – ۲۴۳.

۲- رواه البخاري و مسلم.

**ازادولو مشوره صحابه کرامو ﷺ ته ورکړه او بنديان يې ورازاد کړل.** [۱]

**بل حديث کې راځي:**

عن جبير بن مطعم أن النبیﷺ قال فی أساری بدر: «لوکان المطعم بن عدی حيا ثم کلمني فی هؤلاء النتنی لترکتهم له». [۲]

**جبير بن مطعمرضي الله عنه نه روايت دی چې پېغمبر ﷺ د بدر د بنديانو په هکله وفرمايل: «که مطعم بن عدي ژوندی وی او ددې بدبويه خلکو د ازادولو په هکله يې ماسره خبرې کړې وای نو ما به هغه لپاره پرې ايښي وو».**

**بل حديث کې راځي:**

عن أنس أن ثمانين رجلا من أهل مکة هبطوا علی رسول الله ﷺ غرة النبی ﷺ و أصحابه فأخذهم سلما فاستحيوهم فأعتقهم فأنزل الله تعالی: «و هوالذی کف أيديهم عنکم و أيديکم عنهم ببطن مکة». [۳]

**انسرضي الله عنه نه روايت دی چې د مکې اتيا کسه د پېغمبر ﷺ او د هغه د صحابه ؤ د بې پامۍ په وخت کې په رسول الله ﷺ راښکته شول نو هغوی يې روغ ونيول، ژوندي يې پرېښودل**

---

۱- رواه البخاري.

۲- رواه البخاري.

۳- رواه مسلم.

او ازاد یې کړل ، نو الله تعالی دا ایة نازل کړ : (( الله هغه ذات دی چې د مکې په منځ کې یې د مشرکانو لاسونه له تاسو ایسار کړل او ستاسو لاسونه یې له هغوی ایسار کړل )).

د فدیې په اخیستلو خوشې کول او غلامان او وینځې جوړول خو په ډېرو احادیثو کې راغلي دي .

# الله تعالی نه سرغړونکي محاربين او مفسدين

هغه داړه ماران او ورانکاري خلک چې الله تعالی نه یې سرغړونه کړې وي ، د مسلمانانو لارې شوکوي، غلاوې او ډاکې کوي، د پیسو لپاره ناروا اختطافونه کوي او خلک تښتوي، ښځې تښتوي، د خلکو په کورونو، مال، ځان، پت او عزت بریدونه کوي او د اسلامي ټولنې امنیت ړنګوي هغوی سره هم باید جهاد وشي. الله تعالی فرمایي :

(( إِنَّمَا جَزَٰٓؤُاْ ٱلَّذِينَ يُحَارِبُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَيَسۡعَوۡنَ فِي ٱلۡأَرۡضِ فَسَادًا أَن يُقَتَّلُوٓاْ أَوۡ يُصَلَّبُوٓاْ أَوۡ تُقَطَّعَ أَيۡدِيهِمۡ وَأَرۡجُلُهُم مِّنۡ خِلَٰفٍ أَوۡ يُنفَوۡاْ مِنَ ٱلۡأَرۡضِۚ ذَٰلِكَ لَهُمۡ خِزۡيٞ فِي ٱلدُّنۡيَاۖ وَلَهُمۡ فِي ٱلۡأٓخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ )).[1]

(( هغه خلک چې الله او د هغه پیغمبر سره جنګېږي او په ځمکه کې د ورانکارۍ کولو هڅه کوي، د هغوی سزا دا ده چې په سختۍ سره ووژل شي، یا په سختۍ غرغره شي، یا یې

۱- سورة المائدة : ۳۳ .

لاسونه او پښې رد و بدل پرې شي او يا له وطنه وشړل شي، دا د دوی لپاره په دنيا کې سپکاوی دی او دوی لپاره په اخرت کې لوی عذاب دی».

خو هغه خلک چې له نيولو مخکې تسليم شي او اسلامي خلافت او شريعت ته غاړه کېدي او رېښتينې توبه وباسي او پښېمانه شي نو هغوی ته يې عفو ده. الله تعالی فرمايي:

« إِلَّا ٱلَّذِينَ تَابُوا۟ مِن قَبْلِ أَن تَقْدِرُوا۟ عَلَيْهِمْ ۖ فَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ».[1]

« له هغو پرته چې له دې مخکې يې توبه وايسته چې تاسو پرې برلاسي شئ نو وپوهېږئ چې الله بې شکه ډېر بښونکی او خورا زيات لورونکی دی».

د « أَن يُقَتَّلُوٓا۟ أَوْ يُصَلَّبُوٓا۟ أَوْ تُقَطَّعَ ......» په تفسير کې عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه داسې روايت راغلی دی چې:

« إذا قتلوا و أخذوا المال قتلوا و صلبوا و إذا قتلوا و لم يأخذوا المال قتلوا و لم يصلبوا وإذا أخذوا المال و لم يقتلوا قطعت أيديهم و أرجلهم من خلاف و إذا أخافوا السبيل و لم يأخذوا مالا نفوا من الأرض».[2]

---

١- سورة المائدة: ٣٤.

٢- رواه الشافعي في مسنده و احمد.

«که لارو شوکوونکو هم څوک وژلی ؤ او هم یې مال اخیستی ؤ نو هم به ووژل شي او هم به غرغره شي (مړي به یې پند لپاره راوځړول شي) او که څوک یې وژلی ؤ او مال یې نه ؤ اخیستی نو وبه وژل شي او په غرغره کېږي به نه، او که مال یې اخیستی ؤ او څوک یې نه ؤ وژلی نو لاسونه او پښې به یې رد و بدل پرې شي، او که لارویان یې وېرولي وو او مال یې نه ؤ اخیستی (د وسلې ګواښ یې کړی ؤ) نو له وطنه به وشړل شي».

لاسونه او پښې به یې داسې رد و بدل پرې شي چې د هر یو ډاکو ښی لاس او ګینه پښه به پرې شي. او دا ددې لپاره چې خلکو لپاره پند او عبرت شي او بیا څوک داسې ونه کړي.

که لارشوکوونکي او ډاکوان ډېر وو او سره شریک وو د یو انسان په وژلو به ټول وژل کېږي عمر ﷺ د ډاکوانو هغه ملګری هم وژلی ؤ چې په جګه غونډۍ ورته ناست ؤ او څارنه یې کوله.

نو د محاربینو، ډاکوانو او مفسدینو وژل هم جهاد دی د هغوی وینه هدرده او که هغوی سره په جنګ کې څوک ووژل شي هغه شهید دی.

حدیث کې د خپل مال نه د دفاع په هکله داسې راغلي دي:

عن أبی هریرة قال: جاء رجل فقال: یا رسول الله أرأیت إن جاء رجل یرید أخذ مالي؟ قال: «فلا تعطه مالك»، قال: أرأیت إن قاتلنی؟ قال: «قاتله»، قال: أرأیت إن

قتلني؟ قال : «فأنت شهيد»، قال : أرأيت إن قتلته؟ قال : «هو في النار».[1]

**ابوهريره ﷺ نه روايت دی هغه وايي : يو سړی راغی او ويې ويل: ای د الله پيغمبره! ما ته دا ووايه چې که څوک راغی او زما مال لوټل غواړي نو زه څه وکړم؟ هغه وفرمايل : «خپل مال دې مه ورکوه» هغه وويل : دا راته ووايه چې که راسره وجنګېږي نو څه وکړم؟ هغه وفرمايل : «ورسره وجنګېږه» هغه وويل : که ويې وژلم نو بيا؟ هغه وفرمايل : «نو ته شهيد يې» هغه وويل : که ما وواژه نو بيا؟ هغه و فرمايل : «هغه به په اور کې وي».**

**بل روايت کې داسې راځي :**

عن سعيد بن زيد أن رسول الله ﷺ قال : «من قتل دون دينه فهو شهيد و من قتل دون دمه فهو شهيد و من قتل دون ماله فهو شهيد و من قتل دون أهله فهو شهيد».[2]

**سعيد بن زيد ﷺ نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل : «څوک چې دخپل دين په دفاع کې ووژل شو هغه شهيد دی، څوک چې د خپل ځان په دفاع کې ووژل شو هغه شهيد دی، څوک چې د خپل مال په دفاع کې ووژل شو هغه شهيد دی او څوک چې د خپل کور، پت،عزت، ښځې او بچو په دفاع کې ووژل شو هغه شهيد دی».**

---

۱- رواه مسلم.

۲- رواه الترمذي و ابوداود و النسائي و ابن ماجه.

# باغيان اوخارجيان

داړه ماران مومخکې وپېژندل او باغيان هغه خلک دي چې د اسلامي خلافت او عادل مسلمان حاکم په خلاف دبدلون اوسمون لپاره راپاڅېدلي وي اوپياوړې ،غښتلې اوځواکمنه ډله لري، خو حاکم نه مرتد وي، نه يې د انسان په لاس جوړ شوي قوانين نافذ کړي وي، نه منافق وي او نه فاسق فاجر وي . دې خلکو سره بايد اسلامي خلافت دې څو لارو نه کار واخلي او لومړى ورسره جنګ ونه کړي :

١: که حاکم کې شرعي تقصير وي او هغوى په دليل راپاڅېدلي وي نو حاکم به هغه تقصير لرې کړي او د ځان او حکومت اصلاح به وکړي .

٢: که کوم تقصير نه وي نو جرګه به ورولېږي، قناعت به ورکړي او نصيحت به ورته وکړي .

٣: که نه حکومت کې تقصيرو، نه باغيانو سره څه دليل و او نه يې قناعت کاوه نو بيا به ورسره جنګ کېږي چې تر څو غاړه کېدي، خو نه پرې بمبار روا دى، نه يې د کورونو سېځل او عام وژل روا دي، نه يې د بچو او ښځو نيول يا وژل روا دي، نه تښتېدلي پسې تلل روا دي، نه د تسليم شوي نيول او بنديانول روا دي، نه يې د ټپيانو وژل روا دي او نه دا باغيان کافران ګڼل روا دي .

او خارجیان هغه بې لارې خلک دي چې د عادل او مسلمان خلیفه او اسلامي خلافت په خلاف راوتلي وي او هیڅ شرعي دلیل ورسره نه وي. نه حاکم مرتد شوی وي، نه یې قانون وضعي (د انسان په لاس جوړ شوی) وي، نه د کافرو ملګری وي، نه یې اداره سسته او فاسده وي، نه لېونی شوی وي او نه بل کوم د عزل شرط پکې موندل شوی وي نو د دې مسلمان حاکم او اسلامي خلافت په خلاف راوتلي خلک خوارج بلل کېږي او تر هغه به ورسره جنګ کېږي تر څو چې غاړه کېدي او اصلاح شي. زمونږ د عصر ځینې خېتور ملانماګان او د بلعام پرکتمې د ډاکوانو، باغیانو، خارجیانو او د الله د لارې د مجاهدینو تر منځ توپیر نه کوي حال دا چې دا څلورواړه لوی لوی توپیرونه لري چې مخکې یاد شو او محققینو فقهاو په تفصیل څېړلي دي

باغیان هغه خلک دي چې د اسلامي خلافت نه باغیان وي. د اوسنیو طاغوتي نظامونو په خلاف جنګېدونکي، مجاهدین دي او ددې نظامونو د واکمنو وینه مباح او مال یې غنیمت دی. اختطاف،وژل او هر ډول زیان وراړول جهاد دی.

# جهاد او منافقان

منافقانو تل په دوه جالو پښې ایښې وي اود هرې زمانې منافقان یو ډول وي. منافقان غواړي چې د لمر او سیوري تر منځ و اوسېږي او ټول خلک وغولوي، خو د جهاد په ورځ منافقان ډېر ښه څرګندېږي. د احد د غزوې نه چې منافقان راوګرځېدل نو جوت شوو الله تعالی فرمایي:

«وَمَآ أَصَـٰبَكُمۡ يَوۡمَ ٱلۡتَقَى ٱلۡجَمۡعَانِ فَبِإِذۡنِ ٱللَّهِ وَلِيَعۡلَمَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ۝ وَلِيَعۡلَمَ ٱلَّذِينَ نَافَقُواْۚ وَقِيلَ لَهُمۡ تَعَالَوۡاْ قَـٰتِلُواْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ أَوِ ٱدۡفَعُواْۖ قَالُواْ لَوۡ نَعۡلَمُ قِتَالًا لَّٱتَّبَعۡنَـٰكُمۡۗ هُمۡ لِلۡكُفۡرِ يَوۡمَئِذٍ أَقۡرَبُ مِنۡهُمۡ لِلۡإِيمَـٰنِۚ يَقُولُونَ بِأَفۡوَٰهِهِم مَّا لَيۡسَ فِى قُلُوبِهِمۡۗ وَٱللَّهُ أَعۡلَمُ بِمَا يَكۡتُمُونَ». [1]

«په هغه ورځ چې دوه ډلې سره مخامخ شوې او تاسو ته کوم کړاوونه ورسېدل نو د الله په حکم وو او د دې لپاره وو چې مؤمنان په نښه کړي او هغه خلک هم په نښه کړي چې منافقان شوي دي او ورته وویل شول چې راشئ د الله په لار کې وجنګېږئ یا دفاع وکړئ هغوی وویل: که مونږ پوهېدی چې جنګ کېږي نو

---

۱- سورة ال عمران: ۱٦٦-۱٦۷.

هرومرو به در پسې درغلي وو. دوی په دغه ورځ له ایمان څخه کفر ته ډېر نږدې وو، دوی په خپلو خولو هغه څه وایي چې په زړونو کې يې نشته او الله په هغو خبرو ډېر پوه دی چې دوی يې پټوي».

او فرمايي:

«لَوْ كَانَ عَرَضًا قَرِيبًا وَسَفَرًا قَاصِدًا لَّاتَّبَعُوكَ وَلَٰكِن بَعُدَتْ عَلَيْهِمُ الشُّقَّةُ ۚ وَسَيَحْلِفُونَ بِاللَّهِ لَوِ اسْتَطَعْنَا لَخَرَجْنَا مَعَكُمْ يُهْلِكُونَ أَنفُسَهُمْ وَاللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ».[۱]

«که نږدې د ګټې هدف او لنډ سفر وی نو خامخا به در پسې درغلي وو خو لار پرې لرې شوې ده دوی به په الله قسمونه و خوري چې که زمونږ وس وی نو هرو مرو به تاسو سره وتلي وو، دوی خپل ځانونه هلاکوي او الله پوهېږي چې دوی خامخا بې شکه دورغجنان دي».

نو مخلص مؤمنان او منافقان د الله په لار کې د جهاد په ورځ او د کړاوونو د ګاللو په وخت کې ډېر ښه څرګندېږي له همدې امله رسول الله ﷺ ته په مدينې منورې کې د جهاد نه پاتې منافقانو په هکله الله سبحانه و تعالى فرمايي:

---

۱- سورة التوبة: ۴۲.

(( عَفَا ٱللَّهُ عَنكَ لِمَ أَذِنتَ لَهُمْ حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَكَ ٱلَّذِينَ صَدَقُواْ وَتَعْلَمَ ٱلْكَٰذِبِينَ )).[1]

(( الله درته ښښنه کړې ده ولې دې هغوی ته (د پاتې کېدو) اجازه وکړه چې تر څو هغه خلک درته څرګند شوي وای چې رېښتیا یې ویلي دي او دروغجنان دې هم پېژندلي وای )).

منافقان به جهاد ته د تللو په وخت کې رسول الله ﷺ ته راتلل او په ډول ډول د دروغو بهانو باندې به یې هغه نه د پاتې کېدو اجازه غوښته او رسول الله ﷺ خو د غیبو علم نه لاره نو هغوی به یې رېښتیني ګڼل او اجازه به یې ورکوله. اوس هم د منافقانو همدغه حال دی.

الله تعالی فرمايي:

(( لَا يَسْتَـْٔذِنُكَ ٱلَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْأَخِرِ أَن يُجَٰهِدُواْ بِأَمْوَٰلِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ ۗ وَٱللَّهُ عَلِيمُۢ بِٱلْمُتَّقِينَ إِنَّمَا يَسْتَـْٔذِنُكَ ٱلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْأَخِرِ وَٱرْتَابَتْ قُلُوبُهُمْ فَهُمْ فِى رَيْبِهِمْ يَتَرَدَّدُونَ وَلَوْ أَرَادُواْ ٱلْخُرُوجَ لَأَعَدُّواْ لَهُۥ عُدَّةً وَلَٰكِن كَرِهَ ٱللَّهُ ٱنۢبِعَاثَهُمْ فَثَبَّطَهُمْ وَقِيلَ ٱقْعُدُواْ مَعَ ٱلْقَٰعِدِينَ لَوْ

---

١- سورة التوبة: ۴۳.

خَرَجُواْ فِيكُم مَّا زَادُوكُمْ إِلَّا خَبَالًا وَلَأَوْضَعُواْ خِلَٰلَكُمْ يَبْغُونَكُمُ ٱلْفِتْنَةَ وَفِيكُمْ سَمَّٰعُونَ لَهُمْۗ وَٱللَّهُ عَلِيمُۢ بِٱلظَّٰلِمِينَ ». [١]

«څوک چې په الله او د قيامت په ورځ ايمان راوړي هغوی له تا له دې نه اجازه نه غواړي چې په خپلو مالونو او خپلو ځانونو جهاد وکړي او الله په پرهېزګارانو ډېر پوه دی، له تا يوائې هغه منافقان اجازه غواړي چې په الله او د قيامت په ورځ ايمان نه راوړي او زړونو يې شک کړی نو هغوی په خپل شک کې ربغړي دي. که د وتو نيت يې کړی وای نو خامخا به يې د هغې لپاره څه تياری کړی وای خو الله د هغوی پاڅون بد ګڼلی ؤ نو سست يې کړل او ورته وويل شول چې د ناستو خلکو سره کېنئ، که هغوی تاسو سره وتلي وای نو له ورانکارۍ پرته به يې هيڅ ګټه نه وه دررسولې او خامخا به يې ستاسو تر منځ د شيطانۍ منډې وهلې وې، هغوی تاسو کې بې اتفاقي غواړي تاسو کې د هغوی جاسوسان دي او الله په ظالمانو ډېر پوه دی».

«إِن تُصِبْكَ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْۖ وَإِن تُصِبْكَ مُصِيبَةٌ يَقُولُواْ قَدْ أَخَذْنَآ أَمْرَنَا مِن قَبْلُ وَيَتَوَلَّواْ وَّهُمْ

---

١- سورة التوبة: ٤٤-٤٧.

فَرِحُونَ قُل لَّن يُصِيبَنَآ إِلَّا مَا كَتَبَ ٱللَّهُ لَنَا هُوَ مَوْلَىٰنَاۚ وَعَلَى ٱللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ ٱلْمُؤْمِنُونَ ».[1]

« کهٔ څه ښېګړه در ورسېږي نو هغوی خفه کوي او کهٔ څه کړاو درورسېږي نو وايي چې مونږ لامخکې خپله سر شته نيولې وه او په داسې حال کې شاکوي چې هغوی خوشحاله وي، ورته ووايه: مونږ ته يوائې هغه رارسېږي چې الله مونږ لپاره ليکلې وي هغه زمونږ مدر ګار دی او مؤمنان دې يوائې په الله ځانونه وسپاري ».

او د منافقانو د لمونځونو ، خيراتونو او انفاق په هکله فرمايي:

«وَلَا يَأْتُونَ ٱلصَّلَوٰةَ إِلَّا وَهُمْ كُسَالَىٰ وَلَا يُنفِقُونَ إِلَّا وَهُمْ كَٰرِهُونَ ».[2]

« لمانځه ته ببخي سست رائحي او مال چې لګوي نو مجبور وي ».

او د منافقانو د ايمان د دعوې په هکله فرمايي:

« وَيَحْلِفُونَ بِٱللَّهِ إِنَّهُمْ لَمِنكُمْ وَمَا هُم مِّنكُمْ وَلَٰكِنَّهُمْ قَوْمٌ يَفْرَقُونَ لَوْ يَجِدُونَ مَلْجَـًٔا أَوْ مَغَٰرَٰتٍ

---

۱- سورة التوبة: ۵۰-۵۱.

۲- سورة التوبة: ۵۴.

أَوْ مُدَّخَلًا لَّوَلَّوْاْ إِلَيْهِ وَهُمْ يَجْمَحُونَ ».[1]

« او په الله قسمونه خوري چې هغوی بې شکه خامخا ستاسو ملګري دي حال دا چې هغوی له تاسو نه دي خو هغوی داسې خلک دي چې وېرېږي، کهٔ کوم د پنا ځای یا غارونه یا د پټېدو سوره ومومي نو خامخا به ور واوړي او منډې به وروهي ».

سبحان الله ! قران کریم چې زمونږ د اوسنیو منافقانو په هکله وپوښتې نو تهٔ به وایې چې دا اوس د همدې منافقانو په هکله نازل شوی دی اوس هم د کافرانو د خیرات په خوا کې ډډه کوي، هغوی ته وايي تاسو سره یوو، کوښښ کوي چې مجاهدینو سره اړیکې ونیسي او په دې یې وغولوي چې ګنې مونږ د کوم مجبوریت له مخې امریکایانو سره یوو او د مجاهدینو له وېرې هغوی ته هم غوړه مالي کوي.

څو ډالر یې سود کړي دي او ګومان کوي چې امریکایان به هم وغولوو، ډالرې به هم واخلو او مجاهدین به هم وغولوو! دا خلک په هر چوکاټ کې خپل ځان برابروي او په هره درنه تله کې ځانونه وراچوي کهٔ د مجاهدینو او طالبانو تله درنه وګوري نو بیا پګړۍ ووهي، ږیره اوږده کړي جمپر واغوندي او د ایمان او یقین خبرې پیل کړي، کهٔ د غربیانو، سیکولر ستانو او دیموکراتانو تله درنه وګوري نو په هغه ورځ ږیره لنډه یا کله کړي، پګړۍ او جمپر پټ کړي، پتلون او ټایې واچوي او یا بې پتلونه دیموکرات شي بیا داسې ښځ چې ګنې په کور کې مور او

[1] - سورة التوبة : ٥٦-٥٧.

ماندينه يې هم ازاد خياله او ديموكراتان دي .

د تبوک له غزا چې منافقان پاتې شول نو بيا الله تعالی رسول الله ﷺ ته حکم وکړ چې کۀ بيا درسره جهاد ته وتل نو له ځان سره يې مه پرېږده او کۀ کوم يو يې مري نو د جنازې لمونځ هم پرې مه کوه .

الله تعالى فرمايي :

(( فَرِحَ ٱلْمُخَلَّفُونَ بِمَقْعَدِهِمْ خِلَٰفَ رَسُولِ ٱللَّهِ وَكَرِهُوٓا۟ أَن يُجَٰهِدُوا۟ بِأَمْوَٰلِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ وَقَالُوا۟ لَا تَنفِرُوا۟ فِى ٱلْحَرِّ ۗ قُلْ نَارُ جَهَنَّمَ أَشَدُّ حَرًّا ۚ لَّوْ كَانُوا۟ يَفْقَهُونَ فَلْيَضْحَكُوا۟ قَلِيلًا وَلْيَبْكُوا۟ كَثِيرًا جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوا۟ يَكْسِبُونَ فَإِن رَّجَعَكَ ٱللَّهُ إِلَىٰ طَآئِفَةٍ مِّنْهُمْ فَٱسْتَـْٔذَنُوكَ لِلْخُرُوجِ فَقُل لَّن تَخْرُجُوا۟ مَعِىَ أَبَدًا وَلَن تُقَٰتِلُوا۟ مَعِىَ عَدُوًّا ۖ إِنَّكُمْ رَضِيتُم بِٱلْقُعُودِ أَوَّلَ مَرَّةٍ فَٱقْعُدُوا۟ مَعَ ٱلْخَٰلِفِينَ وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰٓ أَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ أَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلَىٰ قَبْرِهِۦٓ ۖ إِنَّهُمْ كَفَرُوا۟ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَمَاتُوا۟ وَهُمْ فَٰسِقُونَ )).[1]

(( له جهاده وروسته پاتې شوي د الله د پېغمبر په خلاف د

---

۱- سورة التوبة : ۸۱-۸۴ .

خپلې ناستې ځايونو کې خوشحاله دي او د ابده ګڼي چې د الله په لار کې په خپلو مالونو او خپلو ځانونو جهاد وکړي او وايي چې په ګرمۍ کې جهاد ته مه اوځئ ورته ووايه! د دوزخ اور ډېر سخت ګرم دی کاشکې چې دوی پوهېدی. نو لږ دې وخاندي او ډېر دې وژاړي دا د هغو عملونو جزا ده چې دوی کول. کۀ الله د دوی کومې ډلې ته ورستون کړې او له تا يې (بيا) جهاد ته د وتلو لپاره اجازه وغوښته نو ورته ووايه: ماسره به هيڅکله تل تر تله بيا نه اوځئ او نه به کوم دښمن سره جنګېږئ تاسو په لومړي ځل (له جهاده) په کېناستو خوښ شوئ نو اوس د ناستو سره کېنئ، په دوی کې چې څوک ومړ هيڅکله پرې (د جنازې) لمونځ ونه کړې او نه يې په قبر ودرېږې دوې بې شکه په الله او د هغه په پېغمبر کفر کړی دی او داسې حال کې مړۀ شوي دي چې دوی بد کاران وو)).

او د منافقانو د ښځه نوکيتوب په هکله فرمايي:

(( وَإِذَآ أُنزِلَتۡ سُورَةٌ أَنۡ ءَامِنُواْ بِٱللَّهِ وَجَٰهِدُواْ مَعَ رَسُولِهِ ٱسۡتَـٔۡذَنَكَ أُوْلُواْ ٱلطَّوۡلِ مِنۡهُمۡ وَقَالُواْ ذَرۡنَا نَكُن مَّعَ ٱلۡقَٰعِدِينَ رَضُواْ بِأَن يَكُونُواْ مَعَ ٱلۡخَوَالِفِ وَطُبِعَ عَلَىٰ قُلُوبِهِمۡ فَهُمۡ لَا يَفۡقَهُونَ )).[1]

(( او کله چې کوم سورت نازل شي چې په الله ايمان

---

۱- سورة التوبة: ۸۶-۸۷.

راوړئ او د هغه پېغمبر سره جهاد وکړئ نو د دوی مالدار له تا اجازه غواړي او وايي: مونږ پرېږده چې د ناستو سره پاتې شوو، دايې خوښه کړې ده چې د وروسته پاتې ښځو سره پاتې شي او د دوی په زړونو مهر لګول شوی دی نو دوی نه پوهېږي».

او د منافقانو د بزدلۍ په هکله فرمايي:

«فَإِذَآ أُنزِلَتۡ سُورَةٞ مُّحۡكَمَةٞ وَذُكِرَ فِيهَا ٱلۡقِتَالُ رَأَيۡتَ ٱلَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٞ يَنظُرُونَ إِلَيۡكَ نَظَرَ ٱلۡمَغۡشِيِّ عَلَيۡهِ مِنَ ٱلۡمَوۡتِۖ فَأَوۡلَىٰ لَهُمۡ»[1].

«کله چې کوم جوت سورت نازل شي او د جنګ يادونه پکې شوې وي نو هغه خلک به ګورې چې په زړونو کې يې د نفاق مرض دی چې تاته به داسې ګوري لکه د مړينې بې سدي چې پرې راغلې وي نو دوی لپاره دې هلاکت وي».

لکه اوس چې منافقان او مرتدان د الله تعالی د لارې مهاجرين او مجاهدين سپک ګڼې د دې منافقانو پخواني مشر او پلندر عبدالله بن ابی هم رسول الله ﷺ او مهاجرين سپک ګڼل د عبد الله بن ابی او نورو منافقانو په هکله الله تعالی فرمايي:

«يَقُولُونَ لَئِن رَّجَعۡنَآ إِلَى ٱلۡمَدِينَةِ لَيُخۡرِجَنَّ ٱلۡأَعَزُّ مِنۡهَا ٱلۡأَذَلَّۚ وَلِلَّهِ ٱلۡعِزَّةُ وَلِرَسُولِهِۦ وَلِلۡمُؤۡمِنِينَ وَلَٰكِنَّ

---

١- سورة محمد : ٢٠ .

ٱلۡمُنَٰفِقِينَ لَا يَعۡلَمُونَ ». [۱]

« منافقان وايي چې كۀ مدينې ته ستا نه شوونو عزتمنه به خامخا ذليلان له مدينې څخه باسي حال دا چې عزت يوائې د الله د هغه د پيغمبر او مؤمنانو لپاره دی خو منافقان نه پوهيږي ».

خو د غښتلي او سپېڅلي ايمان خاوند د عبد الله بن ابی زوی : عبد الله چې كله خبر شو چې زما پلار داسې ناوړه خبرې كړې دي نو مدينې منورې ته د ننوتو په لار كې ودرېد او كله يې چې منافق پلار راغی نو توره يې را وايسته په پلار يې پورته كړه او ورته ويې ويل : تر هغه مدينې ته نه شې ننوتی چې تر څو دې نه وي ويلي چې ته ذليل يې او رسول الله ﷺ او صحابه يې عزتمند دي او كه نه اوس دې په دې توره سره پرې كوم. پلار يې دې ته اړ ايسته چې همدغسې يې وويل .

دې ته ايمان وايي دې ته غيرت وايي او دې ته توره، مړانه او اخلاص وايي .

د منافقانو د بزدلۍ، دوه مخۍ او چالاكۍ په هكله فرمايي :

« قَدۡ يَعۡلَمُ ٱللَّهُ ٱلۡمُعَوِّقِينَ مِنكُمۡ وَٱلۡقَآئِلِينَ لِإِخۡوَٰنِهِمۡ هَلُمَّ إِلَيۡنَاۖ وَلَا يَأۡتُونَ ٱلۡبَأۡسَ إِلَّا قَلِيلًا أَشِحَّةً عَلَيۡكُمۡۖ فَإِذَا جَآءَ ٱلۡخَوۡفُ

---

۱- سورة المنافقون : ۸ .

رَأَيْتَهُمْ يَنظُرُونَ إِلَيْكَ تَدُورُ أَعْيُنُهُمْ كَالَّذِى يُغْشَىٰ عَلَيْهِ مِنَ ٱلْمَوْتِ ۖ فَإِذَا ذَهَبَ ٱلْخَوْفُ سَلَقُوكُم بِأَلْسِنَةٍ حِدَادٍ أَشِحَّةً عَلَى ٱلْخَيْرِ ۚ أُوْلَٰٓئِكَ لَمْ يُؤْمِنُواْ فَأَحْبَطَ ٱللَّهُ أَعْمَٰلَهُمْ ۚ وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ يَسِيرًا يَحْسَبُونَ ٱلْأَحْزَابَ لَمْ يَذْهَبُواْ ۖ وَإِن يَأْتِ ٱلْأَحْزَابُ يَوَدُّواْ لَوْ أَنَّهُم بَادُونَ فِى ٱلْأَعْرَابِ يَسْـَٔلُونَ عَنْ أَنۢبَآئِكُمْ ۖ وَلَوْ كَانُواْ فِيكُم مَّا قَٰتَلُوٓاْ إِلَّا قَلِيلًا ».[1]

« الله بې شکه په تاسو کې د جهاد په لاره کې خنډونه پیدا کوونکي او هغه خلک پېژني چې خپلو قومیانو ته یې ویل: زمونږ لور ته راشئ او هغوی جنګ ته ډېر لږ راځي ستاسو په خلاف ډېر حریصان دي، کله چې وېره راشي نو ګورې یې چې تا ته ګوري او سترګې یې داسې چورلېږي لکه د مړینې بې سدې چې پرې راځي، خو کله چې وېره لاړه شي نو په تېروژبو درسره داسې مخ کېږي لکه چې د خیر حریصان وي، دوی ایمان نه دی راوړی نو الله د دوی عملونه برباد کړل او دا کار الله ته اسان دی، دوی ګومان کوي چې د مشرکانو ډلې نه دي تللي او کهٔ د مشرکانو ډلې جنګ ته راشي نو دوی دا خوښوي چې کاشکې دوی د کوچیانو سره (لرې دښتو کې) اوسېدی او خلکو نه یې ستاسو د خبرونو په هکله پوښتنې کولی او کهٔ تاسو کې وی نو

---

۱- سورة الاحزاب: ۱۸-۲۰.

ډېر لږ جنګ به يې کړی وُ».

د احزاب په جنګ کې چې کله د مشرکانو لوی لښکر د مدينې پولو ته راورسېدنو منافقانو پوچ ويل او نا وړه تبليغات پيل کړل.

الله تعالی فرمايي:

«وَإِذۡ يَقُولُ ٱلۡمُنَٰفِقُونَ وَٱلَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ مَّا وَعَدَنَا ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥٓ إِلَّا غُرُورٗا وَإِذۡ قَالَت طَّآئِفَةٞ مِّنۡهُمۡ يَٰٓأَهۡلَ يَثۡرِبَ لَا مُقَامَ لَكُمۡ فَٱرۡجِعُواْۚ وَيَسۡتَـٔۡذِنُ فَرِيقٞ مِّنۡهُمُ ٱلنَّبِيَّ يَقُولُونَ إِنَّ بُيُوتَنَا عَوۡرَةٞ وَمَا هِيَ بِعَوۡرَةٍۖ إِن يُرِيدُونَ إِلَّا فِرَارٗا».[1]

«او هغه وخت را ياد کړئ چې منافقانو او هغو خلکو به ويل چې په زړونو کې يې ناروغي ده: مونږ سره الله او د هغه پېغمبر يوائې د تېر ايستلو وعده کړې وه. او کله چې د هغوی يوې ډلې ويل: ای د مدينې خلکو! تاسو نه شئ ټينګېدی نو (کورونو ته) ستا نه شئ د هغوی يوې ډلې د پېغمبر نه اجازه غوښته او ويل يې چې زمونږ کورونه څارنې ته اړدي حال دا چې هغه څارنې ته اړتيا نه لري هغوی يوائې تېښته غواړي».

منافقان تل د الله تعالی په لار کې شهادت بې ځايه مړينه ګڼي او وياړ، ثواب او فضيلت يې نه ګڼي.

---

۱- سورة الاحزاب: ۱۲-۱۳.

**د همدې نا وړه صفتونو په هکله يې الله تعالی فرمايي:**

(( يُخْفُونَ فِىٓ أَنفُسِهِم مَّا لَا يُبْدُونَ لَكَ ۖ يَقُولُونَ لَوْ كَانَ لَنَا مِنَ ٱلْأَمْرِ شَىْءٌ مَّا قُتِلْنَا هَـٰهُنَا ۗ قُل لَّوْ كُنتُمْ فِى بُيُوتِكُمْ لَبَرَزَ ٱلَّذِينَ كُتِبَ عَلَيْهِمُ ٱلْقَتْلُ إِلَىٰ مَضَاجِعِهِمْ ۖ وَلِيَبْتَلِىَ ٱللَّهُ مَا فِى صُدُورِكُمْ وَلِيُمَحِّصَ مَا فِى قُلُوبِكُمْ ۗ وَٱللَّهُ عَلِيمٌۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ )).[1]

**(( دوی په خپلو زړونو کې هغه خبرې پټوي چې تا ته يې نه ښکاره کوي وايي چې که مونږ لپاره له دې کاره څه وي نو دلته به نه وو وژل شوي ورته ووايه: که تاسو په خپلو کورونو کې هم وای نو هغه خلک به هرومرور د خپلو پرڅېدو ځايونو ته راوتلي وو چې وژل ورته ليکل شوي وو او دا د دې لپاره وشوو چې الله ستاسو د سينو خبرې وازمېيي او د زړونو خبرې موچا ڼ کړي او الله د سينو په خبرو ډېر پوه دی )).**

**او فرمايي:**

(( يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَكُونُوا۟ كَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ وَقَالُوا۟ لِإِخْوَٰنِهِمْ إِذَا ضَرَبُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ أَوْ كَانُوا۟ غُزًّى لَّوْ كَانُوا۟

---

۱- سورة ال عمران : ۱۵۴ .

عِندَنَا مَا مَاتُواْ وَمَا قُتِلُواْ لِيَجۡعَلَ ٱللَّهُ ذَٰلِكَ حَسۡرَةٗ فِي قُلُوبِهِمۡۗ وَٱللَّهُ يُحۡيِۦ وَيُمِيتُۗ وَٱللَّهُ بِمَا تَعۡمَلُونَ بَصِيرٞ ››.[١]

‹‹ **ای مؤمنانو! د هغو خلکو غوندې مه کېږئ چې کفر يې کړی دی او د خپلو هغو قوميانو په هکله چې کله يې سفر کاوۀ يا غازيان وو، ويل چې کۀ مونږ سره وای نو نه به مړۀ شوي وو او نه به وژل شوي وو. او دا د دې لپاره چې الله دا کار د دوی په زړونو کې خواشيني جوړه کړي. او الله ژوندي کول او مړه کول کوي او الله په هغو کړو ښه ليدونکی دی چې تاسو يې کوئ** ››.

**او فرمايي:**

‹‹ ٱلَّذِينَ قَالُواْ لِإِخۡوَٰنِهِمۡ وَقَعَدُواْ لَوۡ أَطَاعُونَا مَا قُتِلُواْۗ قُلۡ فَٱدۡرَءُواْ عَنۡ أَنفُسِكُمُ ٱلۡمَوۡتَ إِن كُنتُمۡ صَٰدِقِينَ ››.[٢]

‹‹ **هغه منافقان چې خپله ناست وو او د خپلو قوميانو په هکله يې ويل چې: کۀ زمونږ يې منلي وای نو نه به وو وژل شوي. ورته ووايه: که ريښتيني يې نو د خپلو ځانونو نه مرګ واړوئ** ››.

**او فرمايي:**

‹‹ وَإِنَّ مِنكُمۡ لَمَن لَّيُبَطِّئَنَّ فَإِنۡ أَصَٰبَتۡكُم مُّصِيبَةٞ قَالَ قَدۡ أَنۡعَمَ ٱللَّهُ عَلَيَّ إِذۡ لَمۡ أَكُن مَّعَهُمۡ شَهِيدٗا وَلَئِنۡ أَصَٰبَكُمۡ فَضۡلٞ

---

١- سورة ال عمران : ١٥٦ .

٢- سورة ال عمران : ١٦٨ .

مِّنَ ٱللَّهِ لَيَقُولَنَّ كَأَن لَّمْ تَكُنۢ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُۥ مَوَدَّةٌ يَٰلَيْتَنِى كُنتُ مَعَهُمْ فَأَفُوزَ فَوْزًا عَظِيمًا ». [1]

« او له تاسو ځينې داسې کسان دي چې خامخا د جهاد نه وروسته پاتې کېږي، که څه کړاو دروړسېږي نو وايي چې الله را باندې احسان وکړ چې هغوی سره حاضر نه وم او که د الله له لوري درته څه مهرباني دروړسېږي نو- لکه چې ستاسو او د هغه په منځ کې کومه دوستي نه وه - وايي: کاشکې چې زه هغوی سره وای نو په لويه بريا به برياليی شوی وم ».

او فرمايي:

« أَيْنَمَا تَكُونُواْ يُدْرِككُّمُ ٱلْمَوْتُ وَلَوْ كُنتُمْ فِى بُرُوجٍ مُّشَيَّدَةٍۗ وَإِن تُصِبْهُمْ حَسَنَةٌ يَقُولُواْ هَٰذِهِۦ مِنْ عِندِ ٱللَّهِۖ وَإِن تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَقُولُواْ هَٰذِهِۦ مِنْ عِندِكَۚ قُلْ كُلٌّ مِّنْ عِندِ ٱللَّهِۖ فَمَالِ هَٰٓؤُلَآءِ ٱلْقَوْمِ لَا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ حَدِيثًا ». [2]

« هر ځای چې شئ مرينه به مو راګېر کړي اګر که په سختو کلکو برجونو کې هم واوسئ - که دوی ته څه ښېګړه ورسېږي نو وايي چې دا د الله له پلوه ده او که څه کړاو ور ورسېږي نو وايي چې دا ستا له پلوه دی ورته ووايه: ټول د الله له

---

۱- سورة النساء: ۷۲ - ۷۳.

۲- سورة النساء: ۷۸.

لوري دي نو دغو خلکو باندې خه شوي دي چې نږدې نه دي چې په خبره پوهېږي».

د احزاب په جنګ کې چې کله منافقانو له میدانه د تښتېدو لپاره بهانې کولې نو د هغوی په هکله الله تعالی فرمایي:

«قُل لَّن يَنفَعَكُمُ ٱلْفِرَارُ إِن فَرَرْتُم مِّنَ ٱلْمَوْتِ أَوِ ٱلْقَتْلِ وَإِذًا لَّا تُمَتَّعُونَ إِلَّا قَلِيلًا ۝ قُلْ مَن ذَا ٱلَّذِى يَعْصِمُكُم مِّنَ ٱللَّهِ إِنْ أَرَادَ بِكُمْ سُوٓءًا أَوْ أَرَادَ بِكُمْ رَحْمَةً ۚ وَلَا يَجِدُونَ لَهُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا».[1]

«ورته ووایه: کله مړینې یا وژلو نه وتښتېدئ نو تېښته به هېڅکله ګټه درونه رسوي او په دغه وخت کې په ډېره لږه ګټه درکول شي، دراته ووایه: کهٔ الله په تاسو ته زیان در رسول وغواړي یا در باندې لور ښه وغواړي نو هغه به څوک وي چې له الله مو وژغوري او هغوی به د ځانونو لپاره له الله پرته نه کوم دوست ومومي او نه مدرګار».

د کافرانو په څنګ کې منافقانو سره هم جهاد فرض دی. الله تعالی فرمایي:

«يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِىُّ جَٰهِدِ ٱلْكُفَّارَ وَٱلْمُنَٰفِقِينَ وَٱغْلُظْ

---

۱- سورة الاحزاب: ۱٦-۱۷.

عَلَيۡهِمۡۚ وَمَأۡوَىٰهُمۡ جَهَنَّمُۖ وَبِئۡسَ ٱلۡمَصِيرُ ».[۱]

« ای پیغمبره! کافرانو او منافقانو سره جهاد وکړه او په هغوی سختي وکړه د هغوی پنا ځای دوزخ دی او هغه دورتللو ډېر بد ځای دی ».

# د منافقانو وژل

د کفر او کافرانو سره ښکاره ملګرتیا کفر او ارتداد دی او مرتد به وژل کېږي خو پټه ملګرتیا ورسره نفاق دی که د چا نفاق په کره دلیلونو ثابت شو نو هغه به وژل کېږي ځکه چې نفاق کله ښکاره شي نو ارتداد ترې جوړ شي او خاوند یې د منافق په ځای مرتد ګڼل کېږي . د رسول الله صلی الله علیه وسلم په وخت کې چې کوم منافقان نه وو وژل شوي هغه د همغه وخت د مصلحت پورې تړلي وو او هغه دا چې :

۱ : په ځینو خو کره ښکاره دلیلونه نه وو او ظاهر کې یې د اسلام پوره ملاتړ کاوه او هېڅ سرغړونه یې نه کوله نو که وژل شوي وای ناخبرو صحابه و او نورو خلکو به ګومان کړی و چې پیغمبر خپل ملګري وژني .

۲ : د ځینو ځیني نښې چې ښکاره شوې هغوی د توبې اظهار وکړ او عذرونه او بهانې یې وړاندې کړې نو اسرار یې الله

---

۱- سورة التوبة : ۷۳. سورة التحريم : ۹ .

سره دي او ظاهر کې د هغوی توبه د قبول وړ وه.

۳: د وحې د نزول د عهد، د څرګندو معجزو او فتوحاتو له کبله يې د توبې او راستنېدو هيله وه. او نور ډېر پټ او له مونږ پنا مصلحتونه هم کېدی شي خو د رسول الله صلى الله عليه وسلم د وفات او د هغه د زمانې له تېرېدو نه راوروسته چې د چا په نفاق کره دليلونه ثابت شي هغه به وژل کېږي. حذيفه رضي الله عنه ته د فتنو زيات احاديث معلوم وو او د نفاق احکام يې تر نورو ښه پېژندل او دا ځکه چې هغه خپله وايي:

"كان الناس يسألون رسول الله صلى الله عليه وسلم عن الخير و كنت أساله عن الشر مخافة أن يدركني" [۱]

"خلکو به رسول الله صلى الله عليه وسلم نه د خير په هکله پوښتنې کولې او ما به ورځخه د شر په هکله پوښتنې کولې او دا له دې وېرې چې شر راونه رسېږي، پکې بوخت نه شم او پرې اخته نه شم".

له همدې امله حذيفه رضي الله عنه نه د فتنو او نفاق احاديث زيات روايت شوي دي او صحابه کرامو به هغه نه په دې هکله زياتې پوښتنې کولې تر دې چې عمر رضي الله عنه به په مړي د جنازې په وخت کې ليدل چې که حذيفه رضي الله عنه به په چا د جنازې لمانځه کې ګډون وکړ نو عمر رضي الله عنه به هم وربانديې لمونځ کاوه، او که هغه به پرې جنازه ونه کړه نو عمر رضي الله عنه به هم په هغه مړه جنازه نه کوله ځکه چې حذيفه ته ډېر منافقان معلوم وو. او له همدغه

---

۱ - رواه البخاري ومسلم.

**حذیفه** رضي الله عنه **نه د منافقانو او نفاق په هکله داسې روایت راغلی دی** :

عن حذيفة قال : " إنما النفاق كان على عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم فأما اليوم فإنما هو الكفر أو الإيمان ".[1]

**حذیفه** رضي الله عنه **نه روایت دی هغه وایي چې** : " **نفاق د رسول الله** صلی الله علیه وسلم **په وخت کې و خو نن یا کفر دی او یا ایمان دی** ".

**معنا دا چې اوس د منافق حکم د څرګند کافر غوندې دی او مونږ به یې وژنو** .

« أشعة اللمعات » **کې د دې حدیث لاندې داسې وایي** :

" إنما النفاق أى حكمه بعدم التعرض لأهله و الستر عليهم . وقوله : كان على عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم أى لمصالح كانت مقتصرة على ذلك الزمان أما اليوم فلم تبق تلك المصالح فنحن إن علمنا أنه كافر سرا قتلناه حتى يؤمن ".[2]

**د** (إنما النفاق) **معنا دا ده چې منافقانو ته تعرض نه کول او په هغوی پرده اچول . او د حذیفه دا وینا چې** : (**دا د رسول الله** صلی الله علیه وسلم **په زمانه کې وو**) **د دې معنا دا ده چې دا نه تعرض د ځینو هغو مصلحتونو له کبله و چې هغه زمانې پورې یې اړه درلوده . خو نن هغه مصالح نه دي پاتې نو که مونږ په چا**

---

۱- رواه البخاري .

۲- مشکاة ص : ۱۸ \ حاشیه : ٦ .

وپوهېدو چې هغه پټ کافر دی نو چې تر څو يې ايمان نه وي راوړی وژنو يې) د صحابي داسې وينا حکمي مرفوع ګڼل کېږي ځکه چې د چا وژل يا يو بريد تاکل صحابه له ځانه نه کوي او دا مشهوره خبره وه چې د فتنو او نفاق په هکله رسول الله صلی الله عليه وسلم حذيفه رضي الله عنه ته څه پټې پټې خبرې کړې وې نو يوه دا هم شوه.

او الله تعالى فرمايي:

«يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ جَـٰهِدِ ٱلْكُفَّارَ وَٱلْمُنَـٰفِقِينَ وَٱغْلُظْ عَلَيْهِمْ ۚ وَمَأْوَىٰهُمْ جَهَنَّمُ ۖ وَبِئْسَ ٱلْمَصِيرُ».[1]

«اى پېغمبره! کافرانو او منافقانو سره جهاد وکړه او په هغوی سختي وکړه د هغوی پنا ځای دوزخ دی او هغه دورتللو ډېر بد ځای دی».

نو رسول الله صلی الله عليه وسلم ته الله تعالى امر کړی دی چې کافرانو او منافقانو سره جهاد وکړه او هغه ته امر کې چې د تخصيص دليل نه وي نو ټول امت ته امر دی نو د کافرانو او منافقانو دواړو سره جهاد فرض دی او پېغمبر چې د کوم مصلحت له کبله منافقان نه وژل نو هغه هم د الله په حکم وو ځکه چې پېغمبر له ځانه کوم کار نه کوي او هغه مصلحت او حکم د هغه زمانې په تېرېدو پای ته ورسېد او د دې ايت حکم پاتې دی. نو دې تاويل ته اړتيا نشته چې کافرانو سره په تورې

---

۱- سورة التوبة: ۷۳. سورة التحريم: ۹.

او منافقانو سره په حجت جهاد وکړه ځکه چې منافقان خو په ظاهر کې مسلمانان وي د نفاق ناروغي خو یې په زړه کې وي او هغه تا سره د اسلام د حقانیت په هکله کوم بحث نه کوي او ظاهر کې پوره تسلیم وي نو د حجت اړتیا به له کومه شي ؟!. لکه څرنګه چې عامو مسلمانانو ته د اسلام احکام او دلیلونه ښوول کېږي او مني یې هغوی ته هم هماغسې ښوول کېږي او د زړه نفاق یې مسلمانانو ته نه څرګندېږي . بله دا ده چې مجازي معنا هله اخیستل کېږي چې حقیقي معنا متعذره وي دلته د جهاد شرعي حقیقت دا دی چې تورې، ژبې، قلم او حجت ټولو ته شامل دی او فرد کامل پکې د تورې جهاد دی او یو شی چې مطلق یاد شي نو مراد ترې فرد کامل وي لکه عامو نصوصو کې چې د جهاد نه د تورې جهاد اخیستل کېږي او دا نور یې په ترڅ کې پراته دي . دلته منافقان په کافرانو عطف شوي دي او له صارف دلیل پرته د معطوف او معطوف علیه حکم یو وي نو دلته جهاد نه هماغه د شرعي حقیقت معنا اخیستل کېږي او منافقان په کافرانو عطف دي نو د دواړو حکم یو دی او دواړو سره د تورې او حجت دواړو جهاد فرض دی نو ځکه حذیفه رضي الله عنه هم همدا معنا اخیستې ده .

او الله تعالی فرمایي :

«لَّئِن لَّمْ يَنتَهِ ٱلْمُنَٰفِقُونَ وَٱلَّذِينَ فِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ وَٱلْمُرْجِفُونَ فِى ٱلْمَدِينَةِ لَنُغْرِيَنَّكَ بِهِمْ ثُمَّ لَا يُجَاوِرُونَكَ

فِيهَآ إِلَّا قَلِيلًا ۝ مَّلْعُونِينَ ۖ أَيْنَمَا ثُقِفُوٓاْ أُخِذُواْ وَقُتِّلُواْ تَقْتِيلًا ››.[۱]

‹‹قسم دی چې که منافقان ، هغه خلک چې په زړونو کې يې ناروغي ده او مدينې کې د دروغو اوازې خپروونکي منع نه شي نو مونږ به خامخا تا پرې مسلط کړو بيا به تا سره پکې ډېر لږ ګاونډيتوب وکړي په لعنت شوي دي هر ځای کې چې وموندل شي وبه نيول شي او په سختۍ به ووژل شي››.

نو څرګنده شوه چې د منافقانو نفاق کله څرګند شي او توبه ونه باسي وژل کېږي به. اوسني طاغوتان او د هغوی ملګري همداسې دي چې نفاق يې ښکاره شوی دی او نفاق چې کله ښکاره شي نو بيا نفاق پاتې نه شي بلکه ارتداد ورڅخه جوړ شي او د مرتد وژل خو څرګند دي د دوی ارتداد له دې امله ښکاره دی چې دوی د اسلام د نواقضو مرتکب شوي دي.

---

۱- سورة الاحزاب: ۶۰ - ۶۱.

# ازمېښتونه

د الله سبحانه و تعالی له سننو څخه دا دی او دا د حق طبیعت دی چې مؤمنو مجاهدینو باندې به ازمېښتونه او ابتلاوې راځي، له پېښو او کړاوونو سره به مخ کېږي.

او د الله سبحانه و تعالی د لارې مجاهدین به په سختې ګرمۍ او سختې یخنۍ کې د غرونو او رغونو مزلونه، د پښوتڼا کې کېدل، ستړیا اوستوماني، ولږې او تندې، بندونه او زندانونه، زولنې او زنځیرونه، وهل ټکول اوبو ګنوونکي تعذیبونه، ټپونه او تیندکونه، د کورونو ړنګېدل او شهادتونه زغمي او ګالي او په دې ټولو کې به الله تعالی نه د اجر هیله لري، په هر وخت، هر ځای او هر ډول حالاتو کې به الله تعالی نه هېروي، د هغه احکامو ته به پوره پاملرنه کوي، لمونځ، تلاوت، ذکر اودعاء، امر بالمعروف او نهی عن المنکر یو بل ته د صبر تلقین د شپې تهجد او نور عبادتونه به کوي، د دین زده کړه او د علم د حصول هڅې به کوي او څه یې چې زده وو په هغو پخپله د عمل کولو او نورو ته د رسولو کوښښ به کوي، الله تعالی نه به هیڅکله نه نهیلي کېږي او د خوف اورجاترمنځ به په زغرده زغرده یون کوي

الله تعالی مونږ نازولي، سست پست او خوړین پړین نه پرېږدي، له مونږ هغه فارمي چرګوړي نه جوړوي چې ټوله ورځ

خوراک کوي او ځای په ځای ولاړ وي کۀ په پښه یې تېل وهې هم نه تښتي، رانیولو او حلالولو ته تل تیار چمتور ولاړ وي .........
بلکه الله تعالی مونږ ته تمرین او تدریب راکوي، د کړاوونو ګاللو سره مو روږدي کوي او هر مسلمان نه یو تکړه، غښتلی، پیاوړی، جنګیالی، توریالی، ننګیالی، پتیالی، مستغني، پرهېزګار، ویښ، هوډمن، پتمن، واکمن، مېړنی، ازاد، ټنګېدلی، کلک ،مسئولیت پېژندونکی، په منظم صف کې پېیلی او اتل مجاهد جوړوي. الله تعالی اسلامي ټولنه او اسلامي امت وخت په وخت چاڼوي، د نفاق او شقاق بدمرغه ښځلې او نا پاکي ترې لرې کوي او پاک، سوچه، نږه، سپین او روڼ امت پرېږدي ....... او دا ټول هله کېږي چه څه کړاوونه، دردونه، ټپونه اوازمېښتونه راشي نو ځکه پرې وخت په وخت ډول ډول ازمېښتونه راوړي. الله سبحانه و تعالی فرمايي :

(( مَّا كَانَ ٱللَّهُ لِيَذَرَ ٱلْمُؤْمِنِينَ عَلَىٰ مَآ أَنتُمْ عَلَيْهِ حَتَّىٰ يَمِيزَ ٱلْخَبِيثَ مِنَ ٱلطَّيِّبِ )).[1]

(( الله مؤمنان په هغه (ګډوډ) حال کې نه پرېږدي چې تاسو پکې يئ تر هغې چې پليت له پاک څخه بيل کړي )).

نو کۀ ازمېښتونه او کړاوونه نه وي، هر څوک دعوه کوي چې زه د اسلام پتنګ یم ،خو کله چې د ازمېښت ورځ راشي نو بیا منافقان او دروغجنان معلوم شي، بیا منافقان او د دروغو

---

۱- سورة ال عمران : ۱۷۹.

دعوېداران په مختلفو بهانو او پلمو دښمنو له ډېر ګر څخه تښتي او د دښمنانو تر څنګ ودرېږي. بیا یوائې خالص، نره او سوچه اتلان وي چې په مېړانه ټولو ازمېښتونو اوکړاوونوته غاړه ورکوي او خپل ځان، مال او هر څه د الله سبحانه و تعالی په لار کې قربانوي.

نو له همدې کبله په خپلو بندګانو کې د الله تعالی سنن دا دي چې ازمېښتونه به خامخا پرې راولي. الله تعالی فرمايي:

(( أَحَسِبَ ٱلنَّاسُ أَن يُتۡرَكُوٓاْ أَن يَقُولُوٓاْ ءَامَنَّا وَهُمۡ لَا يُفۡتَنُونَ  وَلَقَدۡ فَتَنَّا ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِمۡۖ فَلَيَعۡلَمَنَّ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ صَدَقُواْ وَلَيَعۡلَمَنَّ ٱلۡكَٰذِبِينَ )) . ۱

(( ايا خلک دا ګمان کوي چې په دې به پرېښودل شي چې وايي: مونږ ايمان راوړی دی او ازمېښت به پرې نه کېږي؟ حال دا چې مونږ هغه خلک هم په ګړاوونو ازمېيلي وو چې له دوی مخکې وو نو الله به هرومرو هغه خلک هم څرګند کړي چې رېښتيا يې ويلي دي او دروغجنان به هم خامخا په نښه کړي )).

او الله تعالی فرمايي:

(( وَلَنَبۡلُوَنَّكُم بِشَيۡءٖ مِّنَ ٱلۡخَوۡفِ وَٱلۡجُوعِ وَنَقۡصٖ مِّنَ ٱلۡأَمۡوَٰلِ وَٱلۡأَنفُسِ وَٱلثَّمَرَٰتِۗ وَبَشِّرِ ٱلصَّٰبِرِينَ  ٱلَّذِينَ إِذَآ

---

۱- سورة العنكبوت :۲-۳ .

أَصَٰبَتۡهُم مُّصِيبَةٞ قَالُوٓاْ إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّآ إِلَيۡهِ رَٰجِعُونَ أُوْلَٰٓئِكَ عَلَيۡهِمۡ صَلَوَٰتٞ مِّن رَّبِّهِمۡ وَرَحۡمَةٞۖ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُهۡتَدُونَ » [1]

« او تاسو به هرومرو په څه نا څه وېرې، ولږې، د مالونو، ځانونو او مېوو په کمولو وازمېيوو او هغو صبر کوونکو ته زېرى ورکړه چې کله ورته څه کړاو ورسېږي نو وايي: مونږ بې شکه د الله يوو او مونږ بې شکه يواځې هغه ته ورستنېدونکي يوو. دوى هغه خلک دي چې د خپل رب له لوري به پرې پېرزوينې او لورينې وي او همدوى سمه لارموندونکي دي ».

او فرمايي:

« أَمۡ حَسِبۡتُمۡ أَن تَدۡخُلُواْ ٱلۡجَنَّةَ وَلَمَّا يَأۡتِكُم مَّثَلُ ٱلَّذِينَ خَلَوۡاْ مِن قَبۡلِكُمۖ مَّسَّتۡهُمُ ٱلۡبَأۡسَآءُ وَٱلضَّرَّآءُ وَزُلۡزِلُواْ حَتَّىٰ يَقُولَ ٱلرَّسُولُ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مَعَهُۥ مَتَىٰ نَصۡرُ ٱللَّهِۗ أَلَآ إِنَّ نَصۡرَ ٱللَّهِ قَرِيبٞ ». [2]

« ايا تاسو ګومان کوئ چې جنت ته به ننوځئ او د هغو خلکو مثالونه به درته نه وي راغلي چې له تاسو مخکې تېر شوي وو؟ هغوى ته ولږې او کړاوونه رسېدلي وو او تر هغې جړکېدلي وو چې پېغمبر او هغه سره مؤمنانو وويل: د الله مرسته

---

۱- سورة البقرة: ۱۵۵-۱۵۷.

۲- سورة البقرة: ۲۱۴.

به کله وي؟ ورته ووایه: خبردار د الله مرسته نږدې ده ».
او فرمايي:

« وَلَيَعۡلَمَنَّ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَلَيَعۡلَمَنَّ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ ».[1]

« او الله به هرومرو هغه خلک را څرګند کړي چې ایمان يې راوړی دی او منافقان به هم خامخا په نښه کړي ».
او فرمايي:

« وَلَا تَهِنُواْ وَلَا تَحۡزَنُواْ وَأَنتُمُ ٱلۡأَعۡلَوۡنَ إِن كُنتُم مُّؤۡمِنِينَ إِن يَمۡسَسۡكُمۡ قَرۡحٞ فَقَدۡ مَسَّ ٱلۡقَوۡمَ قَرۡحٞ مِّثۡلُهُۥۚ وَتِلۡكَ ٱلۡأَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيۡنَ ٱلنَّاسِ وَلِيَعۡلَمَ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَيَتَّخِذَ مِنكُمۡ شُهَدَآءَۗ وَٱللَّهُ لَا يُحِبُّ ٱلظَّٰلِمِينَ وَلِيُمَحِّصَ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَيَمۡحَقَ ٱلۡكَٰفِرِينَ أَمۡ حَسِبۡتُمۡ أَن تَدۡخُلُواْ ٱلۡجَنَّةَ وَلَمَّا يَعۡلَمِ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ جَٰهَدُواْ مِنكُمۡ وَيَعۡلَمَ ٱلصَّٰبِرِينَ ».[2]

« مه سستېږئ او مه خفه کېږئ که مؤمنان وئ نو تاسو ډېر پورته یئ .که تاسو ته زخم رسېدلی وي نو کافرانو ته هم همداسې زخم رسېدلی دی او مونږ د خلکو تر منځ دا ورځې د دې لپاره اړوو را اړوو چې الله مؤمنان په نښه کړي او تاسو نه شهیدان ونیسي الله ظالمان نه خوښوي . او دا بدلون د دې لپاره

---

۱- سورة العنكبوت : ۱۱ .
۲- سورة ال عمران : ۱۳۹-۱۴۲ .

کوي چې مؤمنان چاڼ کړي او کافران له منځه یوسي ایا تاسو ګومان کوئ چې جنت ته به ننوځئ او الله به مجاهدین او صبر کوونکي نه وي په نښه کړي )).

او فرمایي:

(( وَكَأَيِّن مِّن نَّبِيٍّ قَـٰتَلَ مَعَهُۥ رِبِّيُّونَ كَثِيرٌ فَمَا وَهَنُواْ لِمَآ أَصَابَهُمۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ وَمَا ضَعُفُواْ وَمَا ٱسۡتَكَانُواْۗ وَٱللَّهُ يُحِبُّ ٱلصَّـٰبِرِينَ وَمَا كَانَ قَوۡلَهُمۡ إِلَّآ أَن قَالُواْ رَبَّنَا ٱغۡفِرۡ لَنَا ذُنُوبَنَا وَإِسۡرَافَنَا فِيٓ أَمۡرِنَا وَثَبِّتۡ أَقۡدَامَنَا وَٱنصُرۡنَا عَلَى ٱلۡقَوۡمِ ٱلۡكَـٰفِرِينَ )).[1]

(( او ډېر پېغمبران داسې وو چې ډېرو نېکانو د هغوی په ملګرۍ کې جنګېدلي وو نو د هغو کړاوونو له امله نه ووسست شوي چې د الله په لار کې ورته رسېدلي وو، نه کمزوري شوي وو او نه ستړي شوي وو او الله صبر کوونکي خوښوي. او د هغوی وینا له دې پرته بله نه وه چې ویل یې: ای زموږ ربه! موږ ته زموږ ګناوې او زموږ په مسئولیت کې نیمګړتیاوې راوبښه، قدمونه موټینګ کړه او د کافرانو خلکو په خلاف را سره مدد وکړه ))

---

۱- سورة ال عمران : ۱۴۶-۱۴۷ .

او فرمايي:

(( وَمَآ أَصَٰبَكُمۡ يَوۡمَ ٱلۡتَقَى ٱلۡجَمۡعَانِ فَبِإِذۡنِ ٱللَّهِ وَلِيَعۡلَمَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ وَلِيَعۡلَمَ ٱلَّذِينَ نَافَقُواْۚ )). ۱

(( په هغه ورځ چې دوه ډلې سره مخامخ شوې او تاسو ته کوم کړاوونه در ورسېدل نو دا د الله په حکم وو او د دې لپاره وو چې مؤمنان په نښه کړي او د دې لپاره چې منافقان هم په نښه کړي )).

د احزاب يا خندق (کندې) په جنګ کې د مشرکانو مختلفې قبيلې د قريشو په مشرۍ سره راټولې شوې او د (ناټو) په څېر يوه لويه منحوسه ټلواله يې جوړه کړه او په مدينې منورې د يرغل سر شته يې ونيوه. رسول الله ﷺ چې کله خبر شونو صحابه ؤ رضي الله عنهم سره يې مشوره وکړه د مدينې منورې نورو خواوته د خورما ؤ باغونه او ځينې موانع وو خويو لورته هيڅ نه وواو له هغه لور د دښمن د يرغل لپاره لار اسانه وه نو د سلمان رضي الله عنه په مشوره رسول الله ﷺ هغه لور ته يو پلن اوږد او ژور خندق (کنده) وکنه او پخپله يې صحابه ؤ سره د کندې په کنلو کې برخه واخيسته کنده وکنستل شوه او د مشرکانو احزابو (ډلو) د مدينې منورې په لور د يرغل په نيت حرکت وکړ تر دې چې د مدينې طيبې پولو ته راورسېدل، رسول الله ﷺ د صحابه ؤ سره د مدينې نه د دفاع سر شته نيولې وه او د مشرکانو ټلوالې

---

۱- سورة ال عمران: ۱٦٦- ۱٦۷.

خندق ته څېرمه پړاو واړاوۀ دا ډېر سخت وخت ؤ. صحابه کرامو رضي الله عنهم د اندېښنو سره سره د صبر او ثبات مظاهره وکړه او منافقانو زهرجن تبليغات پيل کړل. د مشرکانو يورا تېر شوی جنګيالی مجاهدينو وواژه او نورو باندې الله تعالی داسې سخته سيلۍ رالوځوله چې هر څه يې ورړنګ کړل، د هغوی په زړونو کې وېره پيدا شوه ټول ترغۍ په ترغۍ شول، وتښتېدل او په دې ترتيب د ازمېښت مرحله تېره شوه او اندېښنې په خوښۍ بدلې شوې.

د سيلۍ د رالوتلو په څنګ کې الله تعالی د پرښتو مرسته هم رالېږله او د هغوی په زړونو کې يې وېره او اندېښنې هم ورواچولې چې دا ټول د هغوی د ماتې او تېښتې لاملونه شول.

الله تعالی د همدې پېښې په هکله فرمايي:

« يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱذْكُرُوا۟ نِعْمَةَ ٱللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ جَآءَتْكُمْ جُنُودٌ فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا وَجُنُودًا لَّمْ تَرَوْهَا ۚ وَكَانَ ٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرًا إِذْ جَآءُوكُم مِّن فَوْقِكُمْ وَمِنْ أَسْفَلَ مِنكُمْ وَإِذْ زَاغَتِ ٱلْأَبْصَـٰرُ وَبَلَغَتِ ٱلْقُلُوبُ ٱلْحَنَاجِرَ وَتَظُنُّونَ بِٱللَّهِ ٱلظُّنُونَا۠ هُنَالِكَ ٱبْتُلِىَ ٱلْمُؤْمِنُونَ وَزُلْزِلُوا۟ زِلْزَالًا شَدِيدًا ».[۱]

«ای مؤمنانو! د الله هغه نعمت را ياد کړئ چې کله

---

۱- سورة الاحزاب: ۹-۱۱.

لښکرې دریاندې راغلې نو مونږ پرې سیلۍ او داسې لښکرې رالیږلې چې تاسو نه وې لیدلې او الله په هغو کړو ښه لیدونکی دی چې تاسو یې کوئ. کله چې هغوی له تاسو پورته او له تاسو ښکته نه دریاندې راغلل، او کله چې سترګې کږې شوې، زړونه ستوني ته راورسېدل او په الله مو ډول ډول ګومانونه کول دغلته مؤمنان وازمېیل شول او په سختو جړکېدو وجړکیدل )).

او فرمايي:

(( ٱلَّذِينَ ٱسۡتَجَابُواْ لِلَّهِ وَٱلرَّسُولِ مِنۢ بَعۡدِ مَآ أَصَابَهُمُ ٱلۡقَرۡحُۚ لِلَّذِينَ أَحۡسَنُواْ مِنۡهُمۡ وَٱتَّقَوۡاْ أَجۡرٌ عَظِيمٌ ٱلَّذِينَ قَالَ لَهُمُ ٱلنَّاسُ إِنَّ ٱلنَّاسَ قَدۡ جَمَعُواْ لَكُمۡ فَٱخۡشَوۡهُمۡ فَزَادَهُمۡ إِيمَٰنًا وَقَالُواْ حَسۡبُنَا ٱللَّهُ وَنِعۡمَ ٱلۡوَكِيلُ فَٱنقَلَبُواْ بِنِعۡمَةٍ مِّنَ ٱللَّهِ وَفَضۡلٍ لَّمۡ يَمۡسَسۡهُمۡ سُوٓءٌ وَٱتَّبَعُواْ رِضۡوَٰنَ ٱللَّهِۗ وَٱللَّهُ ذُو فَضۡلٍ عَظِيمٍ )).[1]

(( هغه مؤمنان چې هغوی ته د زخم رسېدو نه وروسته یې د الله او د پېغمبر منلې دي د هغوی هغو خلکو لپاره لوی اجر دی چې نېکي یې کړې ده او ځانونه یې ژغورلي دي. هغه مؤمنان چې خلکو ورته وویل: دښمنان په تاسو د یرغل لپاره راټول شوي دي نو په کار دا ده چې ترې ووېرېږئ، دې خبرې د

۱- سورة ال عمران : ۱۷۲-۱۷۴.

هغوی ایمان نور هم زیات کړ او ویې ویل: مونږ لپاره الله بس دی او هغه ښه ذمه وار دی نو هغوی د الله د نعمت او مهربانی سره خپلو کورونو ته ستانه شول چې هیڅ زیان نه ؤ ور رسېدلی، هغوی د الله رضا پسې لاړل او الله د لویې ښېګړې څښتن دی».

د الله تعالی په لار کې د کړاوونو ګالل د ګناهونو د ښښنې او جنت ته د تللو لاملونه دي.

الله تعالی فرمايي:

«فَٱلَّذِينَ هَاجَرُواْ وَأُخۡرِجُواْ مِن دِيَٰرِهِمۡ وَأُوذُواْ فِي سَبِيلِي وَقَٰتَلُواْ وَقُتِلُواْ لَأُكَفِّرَنَّ عَنۡهُمۡ سَيِّـَٔاتِهِمۡ وَلَأُدۡخِلَنَّهُمۡ جَنَّٰتٖ تَجۡرِي مِن تَحۡتِهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُ ثَوَابٗا مِّنۡ عِندِ ٱللَّهِۗ وَٱللَّهُ عِندَهُۥ حُسۡنُ ٱلثَّوَابِ».[1]

«نو هغه خلک چې هجرت یې کړی دی، له خپلو کورونو ایستل شوي دي، زما په لار کې کړول شوي دي، جنګېدلي دي او وژل شوي دي خامخا به د هغوی ګوناوې ور څخه لرې کړم او هرومرو به یې هغو جنتونو ته ننباسم چې ویالې پکې بهېږي، دا د الله له پلوه بدله ده او الله سره ښه بدله ده».

د الله په لار کې ستونزې او کړاوونه، تېپونه او شهادتونه ګالل د فتحې، نصرت او غنیمت نه زیات اجرونه لري.

---

۱- سورة ال عمران: ۱۹۵.

**حديث کې راغې:**

**عن عبد الله بن عمرو قال: قال رسول الله ﷺ : « ما من غازية أو سرية تغزو فتغنم و تسلم الاكانوا قد تعجلوا ثلثى أجورهم، وما منغازية أوسرية تخفق وتصاب الاتم أجور هم».[1]**

**عبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «هره غزا کوونکې ډله چې غزا کوي او هغوی ته غنيمت په لاس ورشي او روغ پاتې شي نو هغوی ته دوه دريمې $\frac{2}{3}$ برخې اجرونه را مخکې شول اوهره غزا کوونکې ډله چې په غزا کې بې غنيمته نهيلې پاتې کېږي او کړاو ورته رسېږي نو د هغوی اجرونه بشپړ شي».**

**خبيب رضي الله عنه چې کله مشرکانو اسير ونيوه او بيا يې د حارث بن عامر په ځامنو مکې مکر مې کې خرڅ کړ نو هغوی سره بندي ؤ، خبيب رضي الله عنه د بدر په ورځ د هغوی پلار: حارث وژلی ؤ نو هغوی د غچ اخيستلو لپاره واخسيت.**

**د حارث لور کيسه کوي او وايي: د خبيب د وژلو لپاره د حارث ځامن راټول شول، خبيب مانه د زياتي وېښتانو د لرې کولو لپاره چاړه وغوښته ما ورکړه، زما پام نه ؤ زما وړوکی ماشوم زوی خبيب ته ورغلی ؤ، چې زما ور پام شو ګورم چې زما ماشوم زوی يې په ورانه کېنولی دی او لاس کې يې چاړه ده. زه داسې تروره او وارخطا شوم چې خبيب راباندې پوه شو، راته**

---

۱- رواه مسلم.

ويې ويل: ايا ته وېرېږې چې زه به داماشوم ووژنم؟! دا کار هيڅکله نه کوم.

د حارث لور وايي: په الله قسم دی چې د خبيب نه ښه بندي ما هيڅکله نه دی ليدلی، په الله قسم دی چې يوه ورځ مې وليد چې د اوسپنې زولنو کې تړلی ؤ او مکې کې هيڅ مېوې نه وې او نه د مېوو موسم ؤ خو د خبيب په لاس کې د انګورو غوشمه وه او انګور يې تړې خوړل نو څرګنده ده چې دا د الله تعالی له پلوه وو چې خبيب ته يې ورکړي وو.

کله چې هغوی خبيب د وژلو لپار د حرم له حدودو وايسته نو خبيب ورته وويل: ما پرېږدئ چې دوه رکعته لمونځ وکړم، هغوی پرېښود، دوه رکعته يې وکړل او بيا يې هغوی ته مخ راواړا وه او ورته ويې ويل: که دا وېره نه وای چې تاسو به ګومان وکړئ چې ګنې زه وېرېږم او وار خطا يم نو لمونځ به مې اوږد کړی ؤ خو داسې مې ونه کړل بيا يې هغوی ته ښېرې وکړې او ويې ويل:

«اللهم احصهم عددا» «ای الله! دا يو يو وشمېره او هلاک يې کړه» بيا يې داسې حماسي او پاروونکي اشعار وويل چې د خبيب د زړه له تله راوتلي وو او د هغه د ايمان، غيرت، همت، سپېڅلتيا او پخې عقيدې ترجماني يې کوله او هغه دا دي:

وَلَسْتُ أُبَالِيْ حِيْنَ أُقْتَلُ مُسْلِماً

عَلى أَي شِق كَاَن لِلهِ مَصْرَعِيْ

وَ ذٰلِكَ فِيْ ذَاتِ ٱلْإِلَهِ وإِنْ يَشَأْ
يُبَارِكْ عَلى أَوْصَالِ شِلْوٍ مُمَزعِ

«کله چې مسلمان وژل کېږم او په هر اړخ مې الله لپاره پرځېدل وي نو پروا مې نشته او دا ځکه چې دا د الله په لار کې دي، که هغه وغواړي نو د شلېدلو غړو په بندونو او درزونو به برکت واچوي».

سبحان الله! الله اکبر! دې ته د ایمان ولولې ویل کېږي او دا دی ننګ، غیرت، جرات، مېړانه او ثبات ..........

نو مجاهدین به تل د کړاوونو د طوفانونو او د ظالمانو د بندونو، زولنو او تعذیبونو سره ډغرې وهي او په ورین تندي، مېړانه او خوشحالۍ به د شهادت لوړ مقام ته غاړه ږدي.

که خبیب غوندې پخه عقیده، پوخ باور او ایمان څوک ولري نو الله تعالی به همغه غوندې کرامت او عزت ورکړي چې په زنځیرونو او زولنو کې یې بې موسمه انګور خوړل.

نو مجاهد به د الله په لار کې هرې پېښې ته غاړه ږدي او په مړانه به اوږه ورکوي. ولږه، تنده، تېونه، ستړیا، هجرت او کړاوونه به تمرین او تدریب ګڼي.

بندي کېدل او جېلونه به خلوت او الله تعالی سره د رابطې اواړیکو جوړولو لپاره یو ښه فرصت او ذریعه ګڼي. تاسو په الله سبحانه و تعالی یقین وکړئ چې مونږ: کله د پېښور د ای ایس ای په پټو جېلونو، د باګرام او قندهار امریکایي زندانونو،

د کیوبا د ګوانتنامو په ټاپو کې د امریکا په وحشي پنجرو، دوهم ځل بیا د ای ایس ای په پټو جېلونو او بیا د لنډیکوتل په توقیف او اوس د پېښور په سنټرل جېل (مرکزي زندان) کې یوو، نو دارا ته جوته شوه چې جېلونو کې څومره الله تعالی سره تعلق او رابطه پیدا کېږي او ټینګېږي هغه د باندې نه کېږي، هغه به ډېر بد مرغه وي چې جېل ته لاړ شي او بیا د اسلام او مسلمانۍ په ګونا لاړ شي او د هغه رابطه الله تعالی سره غښتلې او ټینګه نه شي.

تاسو باور وکړئ چې هغه اطمینان، سکون او د ایمان او احساس پیاوړتیا چې د الله په لار کې جېل او جهاد کې دي هغه په کورونو کې نشته او هغه خوند، سپېڅلتیا ځواکمن باور او پوخ یقین چې د جېلونو او سنګرونو په عبادت کې دي هغه په مرمرینو جوماتونو کې نشته، دا چې د جېل د تورو تمبو شاته په زولنو او زنځیرونو کې وږی تږی او ټوک ټوک د الله تعالی حضور ته په لمانځه ولاړ یې او یا د غره په سریالمن کې په یوه پلنه ګټه یا د تیږو منځ کې په شکو اوخاورو باندې ودرېږې، ملا بند دې تړلی وي، د سترې په ځای دې ټوپک ایښی وي، د اوبو پتکی دې تخرګ ته زوړندوي ....... او پاک رب ته په لمانځه ولاړ یې او د هغه د رضا لپاره د هغه په لار کې راوتلی یې ....... دا یو بیل کیف لري چې د قلم په څوکه یې د بیان حق نه شي ادا کېدی او یواځې د معاینې او مشاهدې پورې اړه لري.

باور وکړئ هغه پټ خوږ احساس او خوند زما او س هم یادېږي چې د جهاد په اوږدو کې د سپین غره په دواړو غاړو، د

ننګرهار، د (کوټ) (کڅونو) او (اوغز) تر منځ د غرونو په لوړو ژورو کې په مزلونو او اوسېدلو کې مونږ لیدلی، حس کړی او څکلی..... او هغه معنوي ګټې چې جېلونو کې زمونږ په برخه شوې دي په کورونو کې هیڅکله نشته کۀ د اسلام هغه دښمنان چې زه یې تر اوسه د جېلونو تورو تمبو شاته د اسارت په زولنو کې ساتلی یم، زما د پټ احساس او معنویاتو د لوړوالي او زما د باطني صیقل او اطمینان نه خبر شي نو بې له ځنډه به مې ازاد کړي او د خواشینیو اواند ښنونه ډک د کور ژوند ته به مې ستون کړي او که د حرمینو عابدان، حاجیان او معتمرین د اسلام په لار کې د استخبارتي خفیه ادارو د وحشي جېلونو د وحشي انفرادي کوټنیو د عبادت د کیف او خلوت نه خبر شي نو د حرمینو په ځای به ټول جېلونو ته لاړ شي. نو ای د اسلام د لارې لارویو! او ای د الله د لارې د جهاد په تودو سنګرونو کې میشتو مجاهدینو! د زندانونو او جېلونو نه هیڅکله ونه وېرېږئ او د جېلونو له وېرې د حق پلوي او د جهاد سنګرونه پرې نه ږدئ چا چې د الله په لار کې خپل سر په لاس کې نیولی وي هغه ولې له جېلونو او زولنو ووېرېږي ؟! .........

په ازمېښت کې اخته کېدل او ابتلا ګانو کې بوختېدل په لوی لاس مه غواړئ او کوښښ وکړئ چې تر خپله وسه د طاغوتانو له زاندانو نه بچ شئ هسې نه چې د کړاوونو د زغم وس ونه لرئ او د ځینو ضعیفو شخصیتونو په ډول د ایمان د پیاوړتیا په ځای ونه ښوییږئ او ابتلا او ازمېښت کې ناکام نه شئ خو کۀ ازمېښتونه، کړاوونه او زندانونه پېښ شول نو ترې مه

ډارېږي زندانونه مدرسې او د خلوت عبادتځايونه وګڼي. او خپلو د زندانونو اسيرانو او د سنګرونو اتلانوورونو او ټول اسلامي امت ته دعاوې وکړي او د ا سيرانو د ازادولو کوښښ وکړي.

ځکه چې د اسيرانو ازادول د مسلمانانو مسئوليت دی.

مجاهدين به د اسيرانو د ازادولو لپاره هر ډول کوښښ، هڅې او جهاد کوي.

# اسارت ته ځان ورکول

مجاهدین باید تروسه هڅه او کوښښ وکړي چې د دښمن په لاس اسیر نه شي. په مونږ د اسارت کړاوو نه تېر شول او ومولیدل چې اسارت او بندکې پرېوتل ډېر سخت کار دی الله تعالی دې ټول مسلمانان له اسارت څخه وژغوري.

اسارت کې وهل ټکول، تعذیبونه، دردونه او ډول ډول کړاوونه او توهین دی، شهادت له اسارت څخه ډېر غوره دی.

که ډېر مجبور شې او بې له دې هیڅ چاره نه وي چې د دښمن په اسارت کې ځان ورکړې نو روا دی خو دار خصت دی عزیمت، فضیلت او پیاوړتیا په دې کې ده چې شهادت ته ځان ورکړې خو له اسارت څخه ځان وژغورې.

په دې لاندې روایت کې دا دواړه شته (عاصم بن ثابت) او ځینو صحابه ؤ رضي الله عنهم شهادت ته ځان ورکړ خو اسارت یې قبول نه کړ او (خبیب او زید بن دثنه) رضي الله عنهما اسارت ته ځانونه وسپارل چې وروسته هغوی هم شهیدان کړی شول.

روایت داسې دی چې رسول الله ﷺ د عاصم بن ثابت رضي الله عنه په مشرۍ کې د ترصد لپار لس کسه صحابه ولېږل هغوی چې کله د عُسفان اود مکې مکر مې تر منځ (هداة) ځا ی ته ورسېدل د هذیل قبېلي یو ه پښه (بنولحیان) پرې خبر شول هغوی دوه سوه غشي ویشتونکي ور پسې راولېږل د دوی د پلونو نښو

(ښکالو) پسې روان وو يو ځای کې يې د صحابه ؤ د خورماو زړي وموندل اوويې ويل چې دا د مدينې خورما دي بيا يې د هغوی لار تعقيب کړه تر څو چې ويې موندل صحابه چې کله هغوی ته متوجه شول نو يوې غونډۍ ته وختل او مشرکانو محاصره کړل.

مشرکانو ورته وويل: راښکته شئ مونږ تاسو سره ژمنه او کلک تړون کوو چې په تاسو کې به هيڅوک نه وژنو. د ډلې امير: عاصم بن ثابت وويل چې په الله لوړه کوم چې زه خو د کافر په ضمانت نه ښکته کېږم. دعاء يې وکړه چې الله خپل پيغمبر له مونږ خبر کړه مشرکانو عاصم او د هغه نور ملګري وويشتل او شهيدان يې کړل.

او درې صحابه: خبيب انصاري، زيد بن دثنه او يو بل د هغوی په ژمنو او تړون وغولېدل او ورښکته شول. کله چې د مشرکانو په منګولو کې پرېوتل، د ليندو مزي يې ورته راپرانيستل او پرې ويې تړل، دريم صحابي وويل:

دا لومړی غدر او ژمنه ماتول دي په الله قسم دی چې زه خو در سره نه ځم زه دې شهيدانو پسې ځم په زوره يې راښکود او کوښښ يې وکړ چې ورسره لاړ شي خو هغه کلک شو نو شهيد يې کړ او خبيب او ابن دثنه يې بوتلل او مکې مکر مې کې يې وپلورل.

چې د حارث بن عامر بن نوفل بن عبد مناف ځامنو واخيست او بيا يې د خپل پلار: حارث په غچ کې وواژه، او دا ځکه چې خبيب ﷺ د بدر په ورځ حارث بن عامر وژلی ؤ. عاصم

پسې مشركانو څوک ولېږل چې نښه ترې راوړي خو الله تعالى د هغه د جسد د دفاع لپاره مچۍ راولېږلې چې يو سيورى يې پرې جوړ كړ او مشركان نه شو ورنږدې كېدى .
د خبيب مشهور شعرونه مخكې تېر شول، او ابن الدثنه صفوان بن اميه واخيست او ويې وژاه . داكيسه امام بخاري او نورو محدثينو او مؤرخينو روايت كړې ده .
نو له دې روايت څخه دواړه حكمونه څرګند شول چې د مجبوريت په وخت كې دښمن ته په اسارت كې ځان وركول رخصت دى خو ځان نه وركول او شهادت ته ترجيح وركول عزيمت او فضليت دى .
ابن قدامه رحمه الله وايي :

« وإذا خشى الأسر فالأولى له أن يقاتل حتى يقتل ولايسلم نفسه بالأسر لأنه يفوز بثواب الدرجة الرفيعة ويسلم عن تحكم الكفار بالتعذيب والإستخدام والفتنة و إن استأسر جاز »[1]

« او كله چې يو مجاهد له بندي كېدو وېرېږي نو غوره خبره ورته دا ده چې تر هغه وجنګېږي چې ووژل شي او بندي كېدو ته دې ځان نه سپاري ځكه چې په شهادت د لوړې درجې په ثواب ګټلو بريالى كېږي او د كافرانو له واكه روغ پاتې كېږي چې بيا يې په عذابوي، خادم يې جوړوي او فتنې كې يې اخته

۱- رواه البخارى .

کوي او که بند کې د ځان ورکولو ته اړ شو نو هم روا دي». 

امام احمد او امام اجري رحمهما الله بند ته ځان سپارل ناروا ګڼي او دا کار چې چا وکړ هغه ګوناهګار ګڼي.[1]

خو که ډېر مجبور شي نو بند ته ځان ورکول روا دي خو فضیلت نه دی فضیلت دا دی چې تر هغه وجنګېږي تر څو شهید شي دا له اسارت ته ځان ورکولو نه ډېر لوی فضیلت او عزیمت دی.

او هسې بې ځایه او بې مجبوریته د دښمن اسارت کې ځان ورکول خو بېخي ناروا دي او په دې کې هیڅ خلاف نشته. زه چې کله د پېښور په جېل کې وم ځینو طالبانو یواځې په یو ځواب لېږلو پخپله په لوی لاس ځانونه تانو ته ورکړي وو او بیا جېل کې پښېمانه پراته وو. الله تعالی دې هغوی ته دا ګونا وروبښي.

دا خبره باید له پامه ونه غورځول شي چې مجاهد باید په لوی لاس ځان اسارت ته ورنه کړي.

---

۱- الانصاف فی معرفة الخلاف للمرادي: ۴/۱۲۴

# اور بند

د اسلام له دښمنانو سره د مسلمانانو جنګ د دې لاندې امورو نه د یو په کېدو او تحقق سره بند یږي .

## ۱- د اسلام قبلول :

د اسلام دښمنان چې مسلمانان شي او اسلام ته غاړه کېدي نو بیانه یوائې دا چې جنګ بند شي، بلکه هغوی د مسلمانانو په څېر مسلمانان او زمونږ ورونه شي، د هغوی وینې، مال، پت، عزت او هر څه په مسلمانانو حرام شي او د اسلام ټول احکام په هغوی داسې جاري شي لکه په نورو مسلمانانو او مجاهدینو .

## ۲- ماتې :

کله چې اسلام او مسلمانانو سره جنګېدونکي کافران او مشرکان مات شي او مسلمانانو ته فتحه په برخه شي نو هم اور بند وشي او جنګ پای ته ورسېږي .

## ۳- تړون :

کله چې د اسلام جنګېدونکي دښمنان د اوربند لپاره د تړون غوښتنه وکړي نو هم جنګ د خپلو شرطونو سره سم تر ټاکلې نېټې پورې بند یږي. خو تړون اصلی کافرو سره کېږي مرتدانو سره هیڅ تړون نشته .

**۴- د جزيې منل:**

**د اسلام اهل كتاب دښمنان: (يهود او نصارى) چې مسلمانانو ته د جزيې وركول ومني او د اسلامي خلافت په سيوري كې د امن او محكوميت ژوند وغواړي او په خپل دين پاتې كېدل وغواړي نو هم جنګ ورسره نه كېږي بلكه د جزيې په بدل كې د هغوى د امنيت ساتل هم د اسلامي خلافت په غاړه شي.**

# سوله

**(سلم) يا د اسلام دښمنانو سره سوله په دوه ډوله ده:**

**(۱) روا. (۲) نا روا.**

# روا سوله

**روا سوله هغه ده چې كله د دښمنانو قوت زيات وي او د مسلمانانو خير او مصلحت په سوله كې وي، د سولې بلنه د كفارو له پلوه وي، د مسلمانانو د بې زړه توب او بزدلۍ نه نه وي، د مسلمانانو سپكاوى او ذلت پكې نه وي، كافرانو د مسلمانانو په خاوره او حريم تېرى نه وي كړى، د مسلمانانو په خلاف پټې او ښكاره پلمې او د سيسې نه جوړوي او د**

مسلمانانو نورو دښمنانو سره ولاړ نه وي .

نو هغوی سره سوله کول روا دي د همدغې رواه سولې پـه هکله الله تعالی فرمايي :

(( وَإِن جَنَحُواْ لِلسَّلۡمِ فَٱجۡنَحۡ لَهَا وَتَوَكَّلۡ عَلَى ٱللَّهِۚ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلۡعَلِيمُ )). [1]

(( او که کافرانو سولې ته غاړه کېښوده نو ته هم سولې ته غاړه کېږده او په الله ځان وسپاره هغه بې شکه ښه اورېدونکی او ډېر پوه دی )).

ځينو مفسرينو دا د سولې ايت بېخي منسوخ ګڼلی دی .

او ځينې وايي چې د (( فَٱجۡنَحۡ لَهَا )) معنا دا ده چې د جزيې اخيستلو تـه غـاړه کېـږده. يعنـې دلتـه دسـولې نـه مـراد د جزيـې ورکولو ته غاړه ايښودل دي، کۀ هغوی د جزيې ورکولو تـه غـاړه کېښوده نو ته د جزيې اخيستلو ته غاړه کېـږده. نـور د کـافرانو او مشرکانو سره سوله نشته .

# نا روا سوله

ناروا سوله دا ده چې له پورتنيو شـرطونو څخـه يـو يکـې متحقق نه وي يعنې مسلمانان قوي او پوره وي، په سـولې کـې د

---

۱- سورة الانفال : ٦١ .

مسلمانانو خیر او مصلحت نه وي بلکه ضرر یې پکې وي، د سولې بلنه د مسلمانانو له پلوه وي، د مسلمانانو د بزدلۍ او بې زړه توب له کبله وي، په سوله کې د مسلمانانو سپکاوی او توهین وي، کافرانو د مسلمانانو په خاوره او حریم تېری کړی وي، د مسلمانانو په خلاف پلمې او دسیسې جوړوي، سوله هسې بهانه او پلمه وي او په دې بهانه مسلمانانو ته لنګته ږدي، د مسلمانانو له دښمنانو سره پټ یا څرګند ولاړ وي.

نو په دې صورتونو کې چې یو هم وي بیا کافرانو سره سوله کول ناروا دي ، او د همدې نا روا سولې نه مونږ الله تعالی منع کوي او فرمایي:

(( فَلَا تَهِنُوا۟ وَتَدْعُوٓا۟ إِلَى ٱلسَّلْمِ وَأَنتُمُ ٱلْأَعْلَوْنَ وَٱللَّهُ مَعَكُمْ وَلَن يَتِرَكُمْ أَعْمَٰلَكُمْ )).[1]

(( او مه سستېږئ او سولې ته بلنه مه ورکوئ تاسو ډېر لوړ یاست الله تاسو سره مل دی او هیڅکله به مو عملونه نیمګړي نه کړي )).

او روا سوله یوازې اصلي کافرو سره کېږي مرتدانو سره سوله کول هم نا روا دي.

---

۱- سورة محمد : ۳۵.

# د بنديانو را ازادول

کله چې مسلمانان د کافرو او طاغوتانو په اسارت کې پر يوځي او بنديان شي نو د هغوی را ازادول په مسلمانانو فرض دي په هر کوښښ او هرې وسيلې چې کېږي مسلمانان به د خپلو ورونو درا ازادولو کوښښ کوي.

**حديث کې راځي:**

عن أبي موسى قال: قال رسول اللهﷺ : « فكوا العاني يعنى الأسير و أطعموا الجائع وعودوا المريض ».[1]

د ابو موسى رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي: « بندي را ازاد کړئ، وږي ته خواړهٔ ورکړئ او د ناروغ پوښتنه وکړئ ».

**بل حديث کې راځي:**

عن أبى جحيفة قال: قلت لعلى: هل عندكم شئ من الوحى الاما فى كتاب الله؟ قال: لاوالذى فلق الحبة وبرء النسمة ما أعلمه الافهما يعطيه الله رجلا فى القرآن و ما في هذه الصحيفة . قلت : و ما فى هذه الصحيفة ؟ قال: العقل

---

۱- رواه البخارى.

و فكاك الأسير و أن لايُقتل مسلم بكافر». [۱]

د ابو جحيفه رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي چې ما علی رضي الله عنه ته وويل: ايا د الله له کتاب پرته تاسو سره له وحې څه شته؟ هغه وويل: په هغه ذات دې زما قسم وي چې دانه يې چولې او نفس يې پيدا کړی دی چې ماته له دې پرته بل هيڅ معلوم نه دي چې الله يو چاته په قران کې پوهه ورکړي او په دغه کاغذ کې چې څه دي دارا سره دي . ما ورته وويل: دې پاڼې کې څه دي؟ هغه وويل: ديت دی، د بندي را ازادول دي او دا چې مسلمان به د کافر په بد له کې نه وژل کېږي » .

اوس دې مسلمانان خپلو مسئوليتونو ته وګوري چې د ای ايس ای د طاغوتانو، د افغانستان د شمالي منحوس اتحاد د طاغوتانو په جېلونو، د باګرام، ګوانتنامو ابو غريب او نورو امريکايي جېلونو کې څومره بې وسه مسلمانان د تورو تمبو شاته وحشي پنجرو کې پراته دي او د نورو طاغوتانو په جېلونو کې څومره مسلمانان د اسلام په ګونا پراته دي؟ د ايران، عراق، سعودي، يمن، اردن، مصر، الجزائر، تونس، ليبيا، المغرب او نورو ګڼو هېوادونو کې نارينه او ښځينه بنديان يوازې په دې ګونا پراتۀ دي چې مسلمانان دي .

«وَمَا نَقَمُواْ مِنۡهُمۡ إِلَّآ أَن يُؤۡمِنُواْ بِٱللَّهِ ٱلۡعَزِيزِ ٱلۡحَمِيدِ ». [۲]

« او هغوی له مسلمانانو يوازې ددې غچ اخيستۀ چې

---

۱- رواه البخاري .

۲- سورة البروج : ۸ .

هغوی په غالب او د حکمت څښتن الله ایمان راوړي)).

زمونږ کتابونه: د (ګوانتنامو ماتې زولنې) او (تورې زولنې او تورې بهانې) وګورئ چې درمعلومه شي چې امریکایانو او د (ای ایس ای) مرتدانو د مسلمانانو سره څومره ظلمونه کړي دي؟ د ابو غریب له زندانه د (فاطمې) رالېږلی لیک به مواورېدلی وي چې هلته د مسلمانانو عفیفو او پاکلمنو پېغلو سره د امریکا وحشي پوځیان په جېلونو کې ډله ایزې زناوې کوي، جامو اغوستلو ته یې نه پرېږدي او بوګنوونکي ظلمونه ورسره کوي.

یو وخت هغه ؤ چې د هندوستان پاچا (داهر) د سند او پنجاب مسلمانې ښځې اسیرې کړې او کله چې د اسلام خلیفه خبر شو نو د خپلو سندي او پنجابي خویندو د راازادولو لپاره یې یو جرار او کرار لښکر تیار کړ او د محمد بن قاسم د قوماندې او مشرۍ لاندې یې سند ته ولېږۀ سره له دې چې هغه وخت نه الوتکې وې او نه رېل ګاډي، نه موټرې وې او نه دغه اوسني ګړندي وسائل، خو غیر تیانو مسلمانانو د بغداد او سند تر منځ دا اوږده فاصله ووهله، راغلل، سند یې فتح کړ، مسلمانې بندیانې یې را ازادې کړې او د تاریخ په پاڼو کې یې د غیرت، عظمت او تورې نوې پاڼې او نوي بابونه په زرینو کرښو ولیکل خو د هغو سندیانو او پنجابیانو بې غیرتو، بې پتو، دین فروشو، وطن فروشو او بزدلو بچیانو: (د ای ایس ای جرنېلانو، کرنیلانو او د حکومت او پوځ ټولو چارواکو) د محمد بن قاسم، ابدالي، غزنوي، بخاري، عبدالحمید

......... باديسي، ابو بكر، عمر، عثمان علي رضي الله عنهم او نورو بچي او د رسول الله ﷺ بچي او امت د څو ډالرو په بدله کې راونیول ، ويې تړل او په تړلو لاسونو، تړلو پښو او تړلو سترګو يې امريکايانو باندې د څو ډالرو په بدل کې وپلورل ، د امام بخاري او محمد بن قاسم لونې او خويندې خرڅيلي سرونه او بر بنډې د پاکستاني هوا يې ډګرونونه امريکا يې الوتکو ته پورته شوې، د ای ایس ای په پټو جېلونو کې د زنا نه بلار بې او لنګې شوې او تر اوسه لا دا سلسله راوانه ده د پاکستان چارواکو د تاريخ په پاڼو کې د شرم، عار او پېغور نه ډک تور بابونه وليکل، د پاکستان بې غيرته اومرتد پوځ تل د مسلمانانو په خلاف استعمال شوی دی، تل يې د مسلمانانو په وينولاسونه سرۀ دي، د مير علي اسلامي مدرسه د باجوړ اسلامي مدرسه، د اسلام اباد د حفصې او فريديه اسلامي مدرسې، او نورتر اتوسوو جوماتونه او مدرسې او په زرونوکورونه د پاکستان پوځ رنګ کړل، تنګۍ وړې ماشوماني جنکۍ، ماشومان هلکان، د کشمير د زلزلو يتميان، د قران حافظان او حافظانې، د دين علماء او طالبان او د قبائلو عام مسلمانان يې ووژل، و يې سېځل او د بارودو او کېمياوي بمونو په اورونو او لوګيو يې د هغوی هډوکي تور سکارۀ کړل، قرانونه يې د حافظانو او حافظاتو په وينو لتاړ توټه توټه وسېځل ،خپله ای ایس ای د عوامو منځ کې بمونه الوزوی او بيا يې په طالبانو وراړوي .

د ای ایس ای په جېلونو کې مسلمانان وهل کېږي تر ورځو ورځو زوړندول کېږي، هډوکي يې برمه کېږي په خوټو کې ورته پړي تړل کېږي او بيا په وحشيانه ډول راښکودل کېږي، د وهلو ټکولو، بجلۍ ته ورکولو او تعذيبونو لاندې خلک وژل کېږي او بيا چېرته نهر يا ګنده اوبواوکندو مندکې اچول کېږي او يا ور کېږي . نو اوس ووايئ چې زمونږ او ستاسو مسئوليت به څه وي؟ الله تعالى ته به څه ځواب وايوو .

د پاکستان د حکومت او پوځ په خلاف او د نړۍ د ټولو طاغوتانو او مرتداو په خلاف جهاد فرض عين دی، اموال او املاک يې غنيمت دی او هر ډول زيان ور رسول جهاد دی د پاکستان قانون انګرېزي دی او ولاء (دوستي) او ملاتړ يې د کافرو سره او براء (دښمني) يې د اسلام سره ده ، دا چې کفر نه وي نو کفر به نور څه وي او اوس خو يې کفر لا را څرګند شو .[1]

ځينې مسلمان نما نا اهله او جاهلان د خلفاء نصوص په دې مرتدانو تطبيقوي هغوی د اسلام نه خبر نه دي هغوی هم د دې مرتدانو ملګري دي هغوی هم مرتد دي او د هغوی په خلاف هم زمونږ جهاد جاري دی . د مسلمانانو مسئوليت د مسلمانو بنديانو را ازادول دي، د هغوی رانيول او په کافرانو پلورل يوائې مرتدان کولی شي .

د معتصم بالله خليفه په وخت کې روميانو مسلمانان

---

۱- د دې مسئلې د زيات وضاحت او دلائلو لپاره زمونږ کتابونه: (توحيد رښا) او (ملګري او غليمان) وګورئ .

بندیان ونیول، هغوی کې یوې ښځې وویل: «وا معتصماه» «وا معتصمه چېرته یې ......» معتصم چې کله خبر شو نو یو جرار او کرار لښکر یې تیار کړ او ور ویې لېږه، خپل بندیان یې را خلاص کړل او لویه فتحه یې په برخه شوه.

داسې نه لکه د اوسنیو طاغوتانو چې د اسلام په خاوره قابض دي، اسلام خوري، اسلامي اغوندي، اسلام باندې سپرېږي، د اسلام نوم د خپلو حیواني او شیطاني غوښتنو لپاره استعمالوي، خو اسلام او مسلمانان په کافرانو پلوري، د اسلام او مسلمانانو د له منځه وړلو هوډ یې کړی دی او د اسلامي امت د رنګولو، نړولو او چیتولو هڅې کوي.

دا هیڅکله مسلمانان نه شي ګنل کېدی، دریا کارۍ غولونې او تېر ایستلو لمونځونه، حجونه او عمرې مونږ نه شي غولولی، مونږ د قران او سنت نه اسلام زده کړی دی دې ته اړتیا نه لرو چې دغه مرتدان مونږ ته د اسلام نوم واخلي او وموغولوي.

تر هغې به ورسره جنګېږو تر څو چې د «الامامة العظمى والخلافة الكبرى» قیام صورت ومومي او ټول اسلامي امت یو امت، یو دولت، یو خلافت شي او د یو اقتصاد، یو سیاست او یو ثقافت ورونه شي.

د «ای ایس ای» جوړ کړي ځینې د اسلام او جهاد په نامه تنظیمونه د کشمیر سیاسي جنګ د قربانۍ په څرمنو کوي او د پاکزړو مسلمانانو بچي د في سبیل ای ایس ای په جنګ کې قرباني کوي، او اسلام او جهاد یې په څو ناڅیزو پیسو خرڅ کړ.

دوی هم د اسلام، اسلامي امت او جهاد لوی دښمنان دی.

دا یاده لرئ چې چا اسلام اباد کې جهاد نه کاوه او د اسلام اباد په خوښه کشمیر کې جنګېږي هغوی مجاهدین نه بلکه د مجاهدینو دښمنان دي.

# عذر

چاسره چې د جهاد نیت او ولوله وي خو د کوم شرعي او بدني عذر له امله په سنګر کې ونډه وانخلي هغه هم مجاهدینو سره په ثواب کې شریک دی خو د بې ځایه بهانو لټول، له سنګره تېښته او سستي الله تعالی پېژني او کله کله یې انسانانو ته هم څرګندوي.

عذر دا دی چې امیر یې په کوم کاروګماري، کومه ناروغي یا پېښه پرې راغلې وي، ړوند، ګوډ، شوتی یا شل وي ........ نو دا خلک معذور دي او چې نیت کې یې په ریښتیا د جهاد ارمان وي نو د جهاد ثواب کې مجاهدینو سره شریک دی خو کهٔ نیت کې ریښتینی نه وي او یا وایي ښه دی چې معذور یم چې جهاد را باندې نشته نو هغه ثواب نه محروم دی.

**حدیث کې راځي:**

عن أنس أن النبیﷺ کان فی غزوة فقال: «إن أقواما بالمدینة خلفنا ما سلکنا شعبا ولاوادیا الا و هم معنا فیه

حبسهم العذر». [1]

**انس رضي الله عنه نه روایت دی چې پیغمبر ﷺ په یوه غـزا کې ؤ نو ویې فرمایل: «زمونږ شاته مدینې کې داسې خلک دي چې مونږ هرناو او هرې درې ته تنوځوو هغوی مونږ سره پکې شریک دي هغوی عذر له جهاد څخه ایسار کړي دي».**
**او الله تعالی فرمایي:**

« لَّيْسَ عَلَى ٱلضُّعَفَآءِ وَلَا عَلَى ٱلْمَرْضَىٰ وَلَا عَلَى ٱلَّذِينَ لَا يَجِدُونَ مَا يُنفِقُونَ حَرَجٌ إِذَا نَصَحُوا۟ لِلَّهِ وَرَسُولِهِۦ ۚ مَا عَلَى ٱلْمُحْسِنِينَ مِن سَبِيلٍ ۚ وَٱللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ وَلَا عَلَى ٱلَّذِينَ إِذَا مَآ أَتَوْكَ لِتَحْمِلَهُمْ قُلْتَ لَآ أَجِدُ مَآ أَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ تَوَلَّوا۟ وَّأَعْيُنُهُمْ تَفِيضُ مِنَ ٱلدَّمْعِ حَزَنًا أَلَّا يَجِدُوا۟ مَا يُنفِقُونَ إِنَّمَا ٱلسَّبِيلُ عَلَى ٱلَّذِينَ يَسْتَـْٔذِنُونَكَ وَهُمْ أَغْنِيَآءُ ۚ رَضُوا۟ بِأَن يَكُونُوا۟ مَعَ ٱلْخَوَالِفِ وَطَبَعَ ٱللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ فَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ». [2]

**« کمزوري، ناروغان او هغه کسان چې څه نه مومي چې و یې لګوي چې کله الله او د هغه پیغمبر لپاره مخلص وي په**

---

۱- رواه البخاری و مسلم.
۲- سورة التوبة: ۹۱-۹۳.

هغوی کوم پاک نشته په نیکانو کومه پره نشته او الله ډېر ښونکی او خورازیات لوروونکی دی، او نه په هغو خلکو کومه ګونا شته چې تا ته د دې لپاره راغلل چې سپرلي ورکړې او تا ورته وویل چې زه کومه سپرلي نه لرم چې تاسو پرې سپارهٔ کړم هغوی ستانه شول او له دې غمه یې له سترګو اوښکې څڅېدې چې داسې څه نه مومي چې (په جهاد کې) یې ولګوي. پړه په هغو خلکو ده چې مالدار دي او له تا اجازه غواړي هغوی دا خوښوي چې د پاتې شویو ښځو سره پاتې شي او د هغوی په زړونو الله مهر لګولی دی نو نه پوهېږي )).

او فرمايي:

(( لَّيْسَ عَلَى ٱلْأَعْمَىٰ حَرَجٌ وَلَا عَلَى ٱلْأَعْرَجِ حَرَجٌ وَلَا عَلَى ٱلْمَرِيضِ حَرَجٌ ۗ وَمَن يُطِعِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ يُدْخِلْهُ جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ ۖ وَمَن يَتَوَلَّ يُعَذِّبْهُ عَذَابًا أَلِيمًا )).[1]

(( نه په ړاندهٔ کومه تنګي شته، نه په ګوډ او نه په ناروغ، او چا چې د الله او د هغه د پیغمبر ومنل نو هغو جنتونو ته به یې ننباسي چې ویالې یکې بهېږي او چا چې سرغړونه وکړه نو درد ناک عذاب به ورکړي )).

د اسلام ټول احکام د انسان دوس مناسب دی الله تعالی فرمايي:

---

۱- سورة الفتح: ۱۷.

(( لَا يُكَلِّفُ ٱللَّهُ نَفۡسًا إِلَّا وُسۡعَهَاۚ )). [1]

(( الله هيڅوک خپل وس څخه زيات نه مجبوروي )).

نو په ناروغانو، بې وسو، ګوډانو، شوتيانو او ړندو مسلح جهاد فرض نه دی.

د هغوی په زړونو کې هرومرو دا ګرځي چې مونږ د جهاد کولو د فضائلو او ثوابونو نه محروم يوو نو ځکه يې وفرمايل چې ( ومن يطع الله ورسوله.......... ) نو د ژوند نور ګڼ اړخونه دي او د ژوند په هر اړخ کې د الله او د هغه د پيغمبر د طاعت لپاره احکام او فرصتونه شته نو هغوی دې د خپل وس سره سم په نورو احکامو د عمل کولو کوښښ وکړي او په دې ترتيب دې د الله رضا حاصله کړي.

---

[1] - سورة البقرة: ۲۸٦.

# جهاد کې د ټپي کېدو فضيلت

د الله سبحانه و تعالی په لار کې هر ډول کړاو، ستونزه، ستړيا، ولږه، تنده او سختي ګالل ثواب او اجرونه دي او د هغه جل جلاله په لار کې جهاد کې ټپي کېدل لوی فضيلت لري لکه چې حديث کې راغلي:

عن أبی هريرة أن رسول الله ﷺ قال: «والذی نفسي بيده لايكلم أحد فی سبيل الله والله أعلم بمن يكلم فی سبيله الاجاء يوم القيامة واللون لون الدم والريح ريح المسک».[1]

له ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «په هغه ذات قسم کوم چې زما ځان د هغه په لاس کې دی چې د الله په لار کې جهاد کې څوک ټپي شي نو د قيامت په ورځ به راشي او د ټپونو د وينو رنګ به د وينې وي خو بوی به يې د مشکو وي او د الله په لار کې چې څوک ټپي کېږي الله يې ډېر ښه پېژني».

پېغمبر ﷺ د احد په ورځ ټپي شوی ؤ حديث کې راغلي:

عن سهل أنه سئل عن جرح النبی ﷺ يوم أحد فقال:

---

۱- رواه البخاری و مسلم.

« جرح وجه النبی ﷺ وکسرت رباعیته وهشمت البیضة علی رأسه فکانت فاطمة تغسل الدم و علی یمسک فلما رأت أن الدم لایزید الاکثرة أخذت حصیرا فأحرقته حتی صار رمادا ثم الزقته فاستمسک الدم ».[1]

چا سهل رضي الله عنه نه د احد په ورځ د پېغمبر ﷺ د زخم په هکله پوښتنه وکړه هغه وويل: د پېغمبر ﷺ مخ ټپي شو، رباعي غاښ يې مات شو اوبه سرکې يې زغره دننه شوه ، نوفاطمې رضي الله عنها به يې وينه مينځله او علي رضي الله عنه اوبه نيولې وې کله چې فاطمې رضي الله عنها وليدل چې وينه نوره هم زياتېږي نو پيزی يې راواخيست او ويې سېځهٔ چې کله ايره شو نو زخم پورې يې کړ او وينه ودرېده.

---

۱- رواه البخاری.

# شهادت

شهادت هغه لوړ مقام دی چې هر مجاهد يې هيله لري، د الله سحبانه و تعالی په لار کې وژل کېدل د چا اجل او د مړينې نېټه نه را مخکې کوي بلکه مړينه په ټاکلي وخت کې مقدره او ليکل شوې ده په شهادت مړينه ښايسته، پتمنه، وياړمنه او عزت شي.

مسلمان به په دې پخه عقيده لري چې مړينه په اجل ده او له مخکې په تقدير کې ليکل شوې ده چې نه مخکې کېږي او نه وروسته کېږي او نه څوک له مړينې ځان ژغورلی شي.

په روغتونونوکې د ماهرو ډاکټرانو د څارنې لاندې هره ورځ د نړۍ په ګوټ ګوټ کې بې شمېره داسې ناروغان مري چې د ناروغۍ تشخيص يې هم شوی وي، دوا هم وي، ډاکټر هم وي خو دا ټول يې له مړينې نه شي ژغورلی او ټول په هغو مرضونو هم نه مري چې لاعلاجه دي بلکه په داسې ناروغيو مري چې هغه درملنه لري خو درملنه د تقدير په وخت کې هيڅ کار نه کوي.

الله تعالی فرمايي:

(( أَيْنَمَا تَكُونُوا يُدْرِككُّمُ الْمَوْتُ وَلَوْ كُنْتُمْ فِي بُرُوجٍ مُشَيَّدَةٍ )).[1]

---

١- سورة النساء: ٧٨.

«هر ځای کې چې شئ اګر کۀ په سختو پخو برجونو کې هم وئ مرينه به موراګې کړي».

او فرمايي:

«قُل لَّن يُصِيبَنَآ إِلَّا مَا كَتَبَ ٱللَّهُ لَنَا هُوَ مَوۡلَىٰنَاۚ وَعَلَى ٱللَّهِ فَلۡيَتَوَكَّلِ ٱلۡمُؤۡمِنُونَ». [1]

«ورته ووايه! مونږ ته يوائې هغه رارسېږي چې الله مونږ لپاره ليکلي دي هغه زمونږ بادار دی او مؤمنان دې يوائې په الله ځانونو وسپاري».

نو مرينه هر چا ته رائي او له مرينې څخه د پټېدو هيڅ ځای نشته او کۀ الله تعالی چا ته مرينه نه وي ټاکلې هغه د لويو لويو پېښونه ژغورل کېږي او چې ټاکلې يې وي هغه هيڅ نه ژغورل کېږي.

خو شهادت ژوند دی، مغفرت دی، رحمت دی، ويار دی او د جنت او اخروي عزت لنده لار ده الله تعالی فرمايي:

«وَلَئِن قُتِلۡتُمۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ أَوۡ مُتُّمۡ لَمَغۡفِرَةٞ مِّنَ ٱللَّهِ وَرَحۡمَةٌ خَيۡرٞ مِّمَّا يَجۡمَعُونَ وَلَئِن مُّتُّمۡ أَوۡ قُتِلۡتُمۡ لَإِلَى ٱللَّهِ تُحۡشَرُونَ». [2]

«او که خامخا د الله په لار کې ووژل شوئ يا مړه شوئ

---

۱- سورة التوبة: ۵۱.

۲- سورة ال عمران: ۱۵۷-۱۵۸.

نو د الله له پلوه ښښنه او لورېنه د هغو مالونونه غوره ده چې دوی يې راټولوي او كۀ خامخا مړه شوئ يا ووژل شوئ نو هرومرو به الله ته ورټول شئ ».

او فرمايي :

« وَلَا تَقُولُوا۟ لِمَن يُقْتَلُ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ أَمْوَٰتٌۢ ۚ بَلْ أَحْيَآءٌ وَلَٰكِن لَّا تَشْعُرُونَ ». [1]

« څوک چې د الله په لار كې وژل كېږي هغوی ته مړۀ مه وايئ بلكه هغوی ژوندي دي خو تاسو نه پوهېږي ».

او فرمايي :

« فَٱلَّذِينَ هَاجَرُوا۟ وَأُخْرِجُوا۟ مِن دِيَٰرِهِمْ وَأُوذُوا۟ فِى سَبِيلِى وَقَٰتَلُوا۟ وَقُتِلُوا۟ لَأُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّـَٔاتِهِمْ وَلَأُدْخِلَنَّهُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ ثَوَابًا مِّنْ عِندِ ٱللَّهِ ۗ وَٱللَّهُ عِندَهُۥ حُسْنُ ٱلثَّوَابِ ». [2]

« نو هغه خلک چې هجرت يې كړی دی، له خپلو كورنو ايستل شوي دي زما په لار كې كړېدلي دي، جنګېدلي دي او وژل شوي دي، خامخا به له هغوی د هغوی ګوناوې لرې كړم او هرومرو به يې داسې جنتونو ته ننباسم چې ويالې پكې بهېږي دا

---

[1] - سورة البقرة : ۱۵۴ .

[2] - سورة ال عمران : ۱۹۵.

د الله له پلوه بدله ده او الله سره ښې بدلې دي».
او فرمايي:

«وَلَا تَحۡسَبَنَّ ٱلَّذِينَ قُتِلُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ أَمۡوَٰتَۢاۚ بَلۡ أَحۡيَآءٌ عِندَ رَبِّهِمۡ يُرۡزَقُونَ فَرِحِينَ بِمَآ ءَاتَىٰهُمُ ٱللَّهُ مِن فَضۡلِهِۦ وَيَسۡتَبۡشِرُونَ بِٱلَّذِينَ لَمۡ يَلۡحَقُواْ بِهِم مِّنۡ خَلۡفِهِمۡ أَلَّا خَوۡفٌ عَلَيۡهِمۡ وَلَا هُمۡ يَحۡزَنُونَ يَسۡتَبۡشِرُونَ بِنِعۡمَةٍ مِّنَ ٱللَّهِ وَفَضۡلٍ وَأَنَّ ٱللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجۡرَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ». [1]

«او په هغو خلکو د مړو ګومان مه کوه چې د الله په لار کې وژل شوي دي بلکه هغوی د خپل رب سره ژوندي دي او روزي ورکول کېږي، په هغو نعمتونو خوشحاله دي چې الله د خپلې مهربانۍ له مخې ورکړي دي او هغو خلکو ته زېری ورکوي چې نه دي وررسېدلي او له هغوی وروسته پاتې دي، چې نه به په هغوی وېره وي او نه به هغوی خفه کېږي ،د الله له لوري د نعمت او مهربانۍ او د دې زېری ورکوي چې الله د مؤمنانو اجر نه ضائع کوي».

مسروق نه روايت دی هغه وايي چې مونږ د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه نه د دې اية په هکله پوښتنه وکړه هغه وويل:

«إنا قد سألنا عن ذلك فقال: «أرواحهم في أجواف

[1] - سورة ال عمران: ۱۶۹-۱۷۱.

طير خضر لها قناديل معلقة بالعرش تسرح من الجنة حيث شاءت ثم تأوى إلى تلك القناديل .......» .[1]

«**مونږ په دې هکله (پېغمبر ﷺ) نه پوښتنه کړې وه هغه وفرمايل** : «**د شهيدانو روحونه به دشنو مرغانو په ججورو کې وي او پنجرې به يې وي چې عرش پورې به ځوړندې وي جنت کې يې چې هر چېرته خوښه وي ځرېږي به بيا به دغو پنجرو ته راستنېږي**».

**او فرمايي** :

«وَٱلَّذِينَ قُتِلُوا۟ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ فَلَن يُضِلَّ أَعْمَٰلَهُمْ ۝ سَيَهْدِيهِمْ وَيُصْلِحُ بَالَهُمْ ۝ وَيُدْخِلُهُمُ ٱلْجَنَّةَ عَرَّفَهَا لَهُمْ». [2]

«**هغه خلک چې د الله په لار کې وژل شوي وي نو الله به يې هيڅکله عملونه ورک نه کړي، زر ده چې هغوی ته به لارښوونه وکړي، حال به يې سم کړي او هغه جنت ته به يې ننه باسي چې وربېژندلی به يې وي**».

**د شهادت فضيلت او د الله په لار کې د رسول الله ﷺ د شهادت ارمان داسې راغلی دی** :

عن أبى هريرة قال: سمعت النبى ﷺ يقول: «والذى نفسى بيده لو أن رجالا من المؤمنين لاتطيب أنفسهم

---

[1]- رواه مسلم.

[2]- سورة محمد : ۴-۶.

أن يتخلفوا عنى ولا أجد ما أحملهم عليه ما تخلفت عن سرية تغزو فى سبيل الله والذى نفسى بيده لوددت أنى أقتل فى سبيل الله ثم أحى ثم أقتل ثم أحى ثم أقتل ثم أحى ثم أقتل». [۱]

**ابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي: ما پېغمبر ﷺ نه اورېدلي دي چې فرمايل يې: «زما دې په هغه ذات قسم وي چې زما ځان د هغه په لاس کې دى چې کۀ دا خبره نه وى چې د مؤمنانو ځينې سړي دانه خوښوي چې له ما وروسته پاتې شي او زه د سپرلۍ لپاره څه نه مومم چې ورېې کړم، نو د هيڅ کومې ډلې نه به نه وم وروسته شوى چې د الله په لار کې جهاد کوي. او زما دې په هغه ذات قسم وي چې زما ځان د هغه په لاس کې دى چې زه خامخا دا خوښوم چې د الله په لار کې ووژل شم بيا را ژوندى شم، بيا ووژل شم بيا را ژوندى شم، بيا ووژل شم بيا را ژوندى شم او بيا ووژل شم».**

**بل حديث کې د شهادت فضيلت داسې څرګند شوى دى:**

عن أنس بن مالك عن النبى ﷺ قال: «ما أحد يدخل الجنة يحب أن يرجع إلى الدنيا و له ما على الأرض من شئ إلا الشهيد يتمنى أن يرجمع إلى الدنيا فيقتل عشر مرات لمايرى من الكرامة». [۲]

**انس بن مالک رضي الله عنه له پېغمبر ﷺ نه روايت کوي چې هغه**

---

۱- رواه البخارى و مسلم.

۲- رواه البخارى و مسلم.

فرمايلي دي : (( جنت ته چې څوک ننوځي هغوی کې هيڅوک دانه خوښوي چې دنيا ته ستون شي او د ځمکې په مخ هر څه د هغه شي يوائې شهيد دا هيله کوي چې دنيا تـه ستون شي او د الله په لار کې لس ځل ووژل شي او داله دي امله چې د شهيد عزت ګوري )) .

شهيد د ټپونو، هډوکو ماتېدو او بدن ټوټې ټوټې کېدو درد يوائې دومره محسوسوي لکه د مېږي خوله لګول.

حديث کې راځي :

عن أبي هريرة قال: قال رسول الله ﷺ : (( الشهيد لايجد ألم القتل إلا كما يجد أحدكم ألم القرصة )). [1]

ابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: رسول الله ﷺ وفرمايل : (( شهيد د وژلو يوائې همدومره درد مومي لکه ستاسو يو کس چې د مېږي د چيچلو درد مومي )) .

بل حديث کې د شهيد د وينې د څاڅکي فضيلت داسې راغلی دی :

عن أبي أمامة عن النبی ﷺ قال: (( ليس شئ أحب إلى الله من قطرتين و أثرين: قطرة د موع من خشية الله و قطرة دم يهراق فی سبيل الله. و أما الأثران: فأثر فی سبيل الله و أثر فی فريضة من فرائض الله تعالی )).[2]

---

[1] - رواه الترمذي و النسا ئی والدارمي .

[2] - رواه الترمذي وحسنه .

ابـو امامـه لـه پېغمبـرﷺ نـه روایـت کـوي چـې هغـه وفرمایل: «الله ته له دوه څاڅکو او دوه نښـونه بـل څـه شـی ډېـر خوښ نـه دی، د الله لـه وېـرې د اوښـکو څـاڅکی او د هغـې وینـې څاڅکی چې د الله په لار کې جهاد کې تویېږي. او دوه نښې: یـوه د الله پــه لار کــې د جهــاد نښــه ده او بلــه نښــه د الله تعــالی د فریضونه د یو فرض د ادا کولو نښه ده».

د جهـاد نښـو کـې د ټپـي کېـدو نښـه، د ګردونـو، ولـړو، تنـدو، سـتړیا، انفـاق، جنګونـو او نـورې پېښـې او نښـې ټـولې داخلې دي.

او پـه فریضـې کـې نښـه د لمانځـه لـه سـجدې پـه تنـدہ (تندي) نښه، په یخو اوبو د او داسه له امله کومـه نښـه، د لمـونځ کولـو، روژې نیولـو، حـج، زکـات او نـورو عبـادتونو او ښـېګړو ګواهي، پېښې، کیسې او نښې دي.

د رسول اللهﷺ په وخت کې یو سړی مسلمان شو نـه یـې سه روزه ولګوله، نه چېله او نه کال.د مسلمانۍ سره سم جهاد تـه لاړ چې نه پرې د لمانځه وخت راغی نه د روژې، نه د زکات، نـه د حج ........بس د توحید پاکه کلمه یې وویلـه او د ښندنې ډګـر او سنګر ته یې ورو د انګل او شهید شو. د هغـه پـه هکلـه دا حـدیث ولولئ:

عن البراء قال: أتی النبیﷺ رجل مقنع بالحدید فقال یا رسول الله! أقاتل أو أسلم؟ قال: «أسلم ثم قاتل» فأسلم ثم

قاتل فقتل فقال رسول الله ﷺ : «عمل قيلا و أُجر كثيرا».[۱]

د براء بن عازب رضي الله عنه نه روايت دى چې پېغمبر ﷺ ته يو سړى راغى چې د اوسپنې وسلو او زغرو کې نغښتى ؤ نو ويې ويل: اى د الله پېغمبره! وجنګېږم او کهٔ اسلام قبول کړم؟ هغه ورته وفرمايل: «مسلمان شه بيا وجنګېږه» هغه مسلمان شو بيا وجنګېدهٔ او ووژل شو نو رسول الله ﷺ وفرمايل: «لږ عمل يې وکړ او ډېر اجر ورکول شو».

بل حديث کې د شهادت فضيلت داسې راغلى دى:

عن أبى هريرة أن رسول الله ﷺ قال: «يضحك الله إلى رجلين يقتل أحد هما الأخريدخلان الجنة يقاتل هذا فى سبيل الله فيقتل ثم يتوپ الله على القاتل فيستشهد».[۲]

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل: «الله تعالى دوه کسانو ته خاندي چې يو يې دا بل وژني او دواړه جنت ته ننوځي. دا يو د الله تعالى په لار کې جنګېږي او وژل کېږي بيا وژونکي باندې الله تعالى مهرباني کوي (مسلمانېږي بيا جهاد کوى) او شيهد کېږي».

بل حديث کې شهيد لپاره شپږ انعامونه داسې راغلي دي:

عن المقدام بن معديكرب قال: قال رسول الله ﷺ «للشهيدعن الله ست خصال: يغفر له فى أول دفعة ويرى

۱- رواه البخارى.
۲- رواه البخارى و مسلم.

مقعده من الجنة، ويجار من عذاب القبر و يأمن من الفزع الأكبرويوضع على رأسه تاج الوقار الياقوتة منها خير من الدنيا و ما فيها، ويزوج ثنتين و سبعين زوجة من الحور العين، و يُشفع في سبعين من أقر بائه »[۱]

مقدام بن معد يكرب رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «شهيد لپاره الله تعالى سره شپږ انعامونه دي:

۱. د وينې د لومړني څاڅكي د توييدو سره ورته بښنه كيږي او جنت كې خپل د اوسيدو ځاى وينې.
۲. د قبر له عذاب څخه ژغورل كيږي.
۳. د قيامته ډيرې لويې وېرې نه په امن كيږي.
۴. په سر يې د عزت داسې تاج ايښودل كيږي چې يو يا قوت (لال) يې له دنيا او هغو ټولو شيانو نه غوره دی چې په دې دنيا كې دي.
۵. د غټو سترګو والا دوه او يا (۷۲) حورې ورته ور ودېږي
۶. د خپلو او يا (۷۰) خپلوانو په هكله يې شفاعت منل كيږي».

شهادت د ګناهونو د بښنې لامل ګرځي لكه چې بل حديث كې داسې راځي:

عن أبى قتادة أن رسول الله ﷺ قام فيهم فذكر لهم

---

۱- رواه الترمذى و ابن ماجه.

«أن الجهاد فى سبيل الله والإيمان بالله أفضل الأعمال» فقام رجل فقال: يا رسول الله! أرأيت إن قتلت فى سبيل الله يكفر عنى خطاياى؟ فقال له رسول الله ﷺ: «نعم إن قتلت فى سبيل الله وأنت صابر محتسب مقبل غير مدبر». ثم قال رسول الله ﷺ : «كيف قلت؟» فقال: أرأيت إن قتلت فى سبيل الله أيكفر عنى خطاياى فقال رسول الله ﷺ : «نعم و أنت صابر محتسب مقبل غير مدبر الا الدين فإن جبريل قال لي ذلك». [١]

ابو قتاده رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله ﷺ په هغوى کې اودرېد او دا يې وفرمايل چې: «د الله په لار کې جهاد او په الله ايمان په ټولو عملونو کې ښه عملونه دي» نو يو سړى را پاڅېد او ويې ويل: اى د الله پېغمبر! ماته دا ووايه چې که زه د الله په لار کې ووژل ثم نو له مابه زما ګناوې لرې شى؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: «هو که ته د الله په لار کې ووژل شې او ته صبر کوونکى يې الله نه د اجر هيله لرونکي يې دښمن باندې مخامخ ورتلونکى يې او شاته تښتېدونکى نه يې» (هو همداسې ده) بيا رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: «تا څه وويل؟» هغه وويل: ماته دا ووايه چې که زه د الله په لار کې ووژل شم نو ايا زما ګوناوې به له مالرې شي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: «هو که ته دالله په لار کې ووژل شې او ته صبر کوونکى يې الله نه د اجر هيله لرونکى يې دښمن باندې مخامخ ورتلونکى يې او شاته

١- رواه مسلم.

تښتېدونکی نه يې د نو همداسې ده )) .

عن عبدالله بن عمرو بن العاص أن النبى ﷺ قال :
((القتل فى سبيل الله يكفر كل شئ الا الدين)) [١]

**عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما نه روايت دی چې پېغمبر ﷺ وفرمايل : (( د الله په لار کې جهاد کې وژل کېدل له پور پرته هره ګناه لرې کوي )).**

**چا چې د زړهٔ له اخلاصه په رېښتيا د الله په لار کې د شهادت هيله لرله هغه که په خپله بستره ومري هم الله تعالی د شهيد درجه ورکوي .**

**حديث کې راځي :**

عن سهل بن حنيف قال: قال رسول الله ﷺ: من سأل الله الشهادة بصدق بلغه الله منازل الشهداء و إن مات على فراشه)) [٢]

**سهل بن حنيف رضي الله عنه وايي: رسول الله ﷺ وفرمايل : (( چا چې په رېښتيا الله نه شهادت وغوښته نو اګر که په خپلې بسترې ومري هم الله تعالی به يې د شهيدانو مرتبو ته ورسوي )).**

**صحابه کرامو د الله تعالی او د هغه د پېغمبر ﷺ په خبرو کلکه عقيده او پوخ باور لاره .**

---

[١]- رواه مسلم .

[٢]- رواه مسلم .

**حدیث کې راځي:**

عن أنس قال: إنطلق رسول الله ﷺ و أصحابه حتى سبقوا المشركين إلى بدر و جاء المشركون، فقال رسول الله ﷺ: «قوموا إلى جنة عرضها السموات والأرض» قال عمير بن الحمام: بخ بخ. فقال رسول الله ﷺ: «مايحملك على قولك: بخ بخ ؟» قال: لا والله يا رسول الله الارجاء أن أكون من أهلها. قال: «فإنك من أهلها» قال: فأخرج تمرات من قربه فجعل يأكل منهن ثم قال: لئن أنا حييت حتى أكل تمراتي إنها لحياة طويلة. قال: فرمى بما كان معه من التمر ثم قاتلهم حتى قتل»[1]

**انس رضي الله عنه نه راویت دی هغه وایي: رسول الله ﷺ او د هغه صحابه لاړل او بدر ته له مشرکانو نه مخکې ورسېدل مشرکان راغلل نو رسول الله ﷺ وفرمایل: «هغه جنت ته ور پاځېږئ چې پلنوالی او پراخي یې د اسمانونو او ځمکې په اندازه ده» عمیر بن حمام وویل: واه واه. رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: «په تا کوم باعث ؤ چې واه واه دې وویل؟» هغه وویل: ای د الله پیغمبره! له دې پرته مې بل هیڅ مقصد نه ؤ چې هیله مې وکړه چې زه د جنت له اوسېدونکو نه شم. هغه ورته وفرمایل: «ته له جنتیانو څخه یې» انس وایي: عمیر خپلې د غشو**

---

[1]- رواه مسلم.

دکځوړې نـه څـو خورمـاوې راوايسـتلې او خـوړلې يـې. بيـا يـې وويل : که زه تر هغې ژوندی يم چې خپلـې دا خورمـاوې و خـورم نو دا خو ډېـر اوږد ژونـد دی. انـس وايـي: کـومې خورمـاوې چې ورسره وې هغه يـې وغورځـولې بيـا تـر هغـې وجنګېـد چې ووژل شو )).

# په خپله وسله شهادت

مجاهد چې کله د الله سبحانه و تعالی په لار کې د جهـاد لپاره له کوره ووځي نو تر څو چې بيرته کور ته راستـون شـوی او رارسېدلی نه وي تر هغه چې په هر ډول مرينې ومـري هغـه شـهيد دی. که کوم مجاهد په کور يا سنګر يـا لاره کـې د جهـاد لپـاره د وسلې پاکولو، برابرولو او تيارولو کې په تېروتنه پـه خپلـه وسـله ووژل شو يا په دښـمن د بريـد پـه وخت کـې پـه تېروتنـه پـه خپلـه وسله يا د بل کوم مجاهد په تېروتنـه او سـهوې ووژل شـو دا ټـول شيهدان دي.

په حديث کې راځي :

عـامر رضي الله عنه د خيبر په ورځ د خيبر پاچـا : مرحب تـه ميـدان ته ورووته او کله يې چې پـه مرحـب د تـورې ګـوزار وکـړ نـو هغـه خطا شو او له همدې ټـپ نـه ومـړ د عـامر ورارۀ سـلمة بـن الاکـوع وايي :

(( فخرجت فإذا نفر من أصحاب النبی ﷺ يقولون:

بطل عمل عامر قتل نفسه.قال: فأتيت النبى ﷺ و أنا أبكي فقلت: يا رسول الله! أبطل عمل عامر؟ قال رسول الله ﷺ : «من قال ذلك؟» قال: قلت ناس من أصحابك. قال: «كذب من قال ذلك بل له أجره مرتين». [1]

«زه ووتم چې ګورم د پېغمبر ﷺ ځينې صحابه وايي: د عامر عمل باطل شو ځان يې پخپله وواژه. هغه وايي: زه پېغمبر ﷺ ته ورغلم او ژړل مې، ورته و مې ويل: اى د الله پېغمبره! ايا د عامر عمل باطل شو؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: «دا چا ويل؟» ما ورته وويل: ستا له صحابه و نه ځينو کسانو هغه و فرمايل: «چا چې دا خبره کړې ده دروغ يې ويلي دي، بلکه هغه لپاره دوه ځل اجرونه دي».

نو عامر په خپله توره ووژل شو خو دا تېروتنه وه هغه د الله په لار کې جهاد کاو ه نو ځکه شيهد بلل کېږي.

همدارنګه که نا معلومه ګولۍ راغله او په سنګر کې مجاهد پرې ولګېد هغه هم شهيد دی.

بل حديث کې راځي:

عن أنس بن مالك أن أم الربيع بنت البراء – وهى أم حارثة بن سراقة – أتت النبى ﷺ قالت: يا نبى الله! ألا تحدثنى عن حارثة؟ – و كان قتل يوم بدر أصابه سهم غرب – فإن كان فى الجنة صبرت و إن كان غير ذلك إجتهدت عليه

---

۱- رواه مسلم.

في البكاء. قال: «يا أم حارثة! إنها جنان في الجنة و إن إبنك أصاب الفردوس الأعلى». [۱]

انس بن مالک رضي الله عنه نه روایت دی چې د حارثة بن سراقه مور: ام الربیع بنت البراء پیغمبر ﷺ ته راغله او ویې ویل: ای د الله پیغمبره! ایا د حارثه په هکله راته څه نه وایې؟ - هغه د بدر په ورځ نا معلوم غشي باندې لګېدلی او وژل شوی ؤ - که جنت کې وي نو زه به صبر وکړم او که بله خبره وي نو په ژړا کې به پرې ښه خواري وکړم. هغه وفرمایل: «ای د حارثه مورې! جنت کې ډېر جنتونه دي او ستا ځوی او چت فردوس ته رسېدلی دی».

نو معلومه شوه چې د سنګر مجاهد په نا معلوم ګوزار یا نا معلومه ګولۍ ووژل شي او ویشتونکی یې معلوم نه وي یا هوا یي ګولۍ باندې ومري نو هغه هم شهید دی.

همدارنګه بل حدیث کې راغلي چې د الله د لارې مجاهد په هر ډول مړینه ومري هغه شهید دی:

عن أبي مالك الأشعري قال: سمعت رسول الله ﷺ يقول: «من فصل في سبيل الله فمات أو قتل أو وقصه فرسه أو بعيره أو لدغته هامة أو مات على فراشه بأي حتف شاء الله فإنه شهيد و إن له الجنة». [۲]

ابو مالک اشعری ﷺ نه روایت دی هغه وایي: ما رسول

---

۱- رواه البخاري.

۲- رواه مسلم.

الله ﷺ نه واورېدل چې فرمايل يې: «څوک چې د الله په لار کې جهاد لپاره له خپله کوره جلا شو بيا مړ شو، يا ووژل شو، يا خپل اس يا اوښ وغورځاوه او ومړ، يا وژونکي زهرجن شي وچيچه او ومړ، يا په خپله بستره په هر ډول چې د الله خوښه وه و مړ نو هغه بې شکه شهيد دی او هغه لپاره بې شکه جنت دی».

# ( سر ټکي )
# استشهادي بريدونه

جهاد في سبيل الله ټول استشهادي عمل دی ځکه چې په جهاد کې ګوري نه وېشل کېږي .

بلکه جهاد کې وينې بهېږي ټپونه او زخمونه پيدا کېږي، سرونه او غړي غوڅېږي او مسلمان مجاهد دا ټول زغمي بلکه د الله سبحانه و تعالی په لار کې شهادت د مسلمان ځانګړې او تر ټولو لوړه هيله ده .

په اوسني عصر کې چې د امريکا په مشرۍ د اسلام ټول دښمنان سره يو شوي دي او په اسلامي امت او د مسلمانانو په خاوره (افغانستان، عراق ......) يې وحشيانه يرغل کړی دی، جوماتونه، کورونه، او ودانۍ مو په خرورونو بمونو ړنګوي، ماشومان، ښځې، بوډاګان، ځوانان او ټول وګړي مو وژني او په وحشي بمبار يو توغنديو او توپونو يې غوښې ټوټه ټوټه شيندي، د قران کريم له پاسه پښې ږدي، ميتيازې پرې کوي او سپځې يې، بې وسه او بې دفاع نارينه او ښځينه ورونه او خويندې مو رانيسي، جامې ترې اوباسي، ږيرې، وروځې او سرونه وچ ور خريي، لاسونه، پښې، سترګې او غوږونه تړلي يې په الوتکو کې د بوجيو غوندې وراچوي او د باګرام، ابو غريب

او ګوانتهنامو غونډې وحشي زندانونو ته يې لېږي او هلته بوربنوونکي او د وحشت نه ډک سلوک ورسره کوي ........
کورونو ته مو را دننه کېږي، وحشي تالاشي کوي، پټونه او عزتونه مو لوټي ......

او په دې ټولو کې دګر دې نړۍ کفري ځواکونه او د اسلامي نړۍ مرتد حاکمان ورسره ولاړ دي او د مسلمانانو خپله خاوره يې پرې راتنګه کړې ده، هوډمن مسلمان د ترهګر تر نامه لاندې په دې پراخه نړۍ کې نه د اوسېدو حق لري او نه نور سياسي، اقتصادي، فرهنګي .... حقوق لري، مدرسې مورنګېږي، علماء مو سپکېږي، بنديانېږي، تعذيبېږي او وژل کېږي ..........

نو اوس ووايئ چې مجاهد مسلمان استشهادي بريد ونه کړي اود ځان په مرګ جهان، دين، وطن، پت، عزت، ناموس وياړونه او ارزښتونه ژوندي ونه ساتي نو څه وکړي؟!

استشهادي بريدونه اوښندني عمليات د جهاد فی سبيل الله تر ټولو لوړه مرتبه ده دا هغه ناروا انتحار نه دی چې اسلام منع کړی دی. اسلام هغه ځان وژنه په کلکه منع کړې ده چې له دنيوي ستونزو او کړاوونو نه يو څوک تنګ شي او خپل ځان ووژني.

دا ناروا عمل دی او يا هغه څوک له ځان سره ووژني چې اسلام يې وژل منع کړي وي دا هم ناروا دی.
خو د انتحار او استشهاد تر منځ ډېر لوی توپير دی. هغه خلک چې استشهاد انتحار بولي او د ناروا فتوې پرې ورکوي هغوی

یا جاهلان دي اسلام نه نا خبره دي او یا د ډالرو له سوبه متجاهلان دي .

الله سبحانه و تعالی فرمايي :

«مِّنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُواْ مَا عَٰهَدُواْ ٱللَّهَ عَلَيۡهِۖ فَمِنۡهُم مَّن قَضَىٰ نَحۡبَهُۥ وَمِنۡهُم مَّن يَنتَظِرُۖ وَمَا بَدَّلُواْ تَبۡدِيلٗا ». [1]

« له مؤمنانو څخه داسې سړي دي چې هغه ژمنه یې رېښتیا کړې ده چې الله سره یې پرې تړون کړی دی نو له دوی ځینې هغه دي چې خپل نذر یې پوره کړ او ځینې یې هغه څوک دي چې انتظار کوي او په ژمنو کې یې هیڅ بدلون نه دی کړی ».

له «مَا عَٰهَدُواْ ٱللَّهَ عَلَيۡهِۖ » نه مراد جهاد ، صبر، ثبات، ټېنګه نه کول او د شهادت هیله او شهادت سره مینه ده .

او « نحب » نذر او منښتې ته ویل کېږي؟ صحابه کرامو رضي الله عنهم کې داسې خلک وو چې دا نذر یې منلی ؤ چې که مونږ رسول الله ﷺ سره د جنګ ډګر ته حاضر شوو نو تر هغې به جنګېږو تر څو چې شهیدان شوو نو د همدوی په هکله دا ایة راغی چې: « صَدَقُواْ مَا عَٰهَدُواْ ٱللَّهَ عَلَيۡهِۖ » نو «فَمِنۡهُم مَّن قَضَىٰ نَحۡبَهُۥ » هغه صحابه وو چې نذر یې پوره کړ او شهیدان شول. او «وَمِنۡهُم مَّن يَنتَظِرُۖ » هغه صحابه وو چې د شهادت انتظار یې کاوه.

---

۱- سورة الاحزاب : ۲۳ .

**علامه الوسي حنفي رحمه الله د (کشاف) په حواله وايي:**

«و فی الکشاف: نذر رجال من الصحابة أنهم إذا لقوا حربا مع رسول الله ﷺ ثبتوا و قاتلوا حتی یستشهدوا. أی نذروا الثبات التام و القتال الذي یفضی بحسب العادة إلی نیل الشهادة، و هم: عثمان بن عفان و طلحة بن عبید الله و سعید بن زید بن عمروبن نفیل وحمزة و مصعب بن عمیر وغیرهم». [1]

**«په کشاف کې راغلي دي چې د صحابه و ځینو سړیو دانذر ومانه چې کله رسول الله ﷺ سره کوم جنګ ته حاضر شول نو تر هغې به تېنګ پاتې کېږي او جنګېږي به تر څو چې شهیدان شي. معنا دا چې د پوره ثبات او داسې جنګېدو نذر یې منلی ؤ چې په عامو حالاتو کې یکې خامخا سړی شهید یږي. دغه صحابه: عثمان بن عفان، طلحة بن عبید الله، سعید بن زید بن عمرو بن نفیل، حمزه او مصعب بن عمیر رضي الله عنهم وو».**

**صحابه کرامو به رسول الله ﷺ سره په استشهادي جهاد بیعت کاوه لکه چې حدیث کې داسې راځي:**

عن سلمة قال: «بایعت النبی ﷺ ثم عدلت إلی ظل شجرة فلما خف الناس قال: «یا ابن الأکوع! ألا تبایع؟» قال: قلت: قد بایعت یا رسول الله. قال: «و أیضا» فبایعته الثانیة.

---

۱- تفسیر روح المعاني: ۲۱/ ۱۷۰.

فقلت له: يا أبا مسلم! على أى شئ كنتم تبايعون يومئذ؟ قال: على الموت».[1]

**سلمه رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: «ما پېغمبر ﷺ سره بيعت وکړ بيا د يوې ونې سيوري ته ګوښې شوم کله چې خلک کم شول و يې فرمايل: «ای د اکوع زويه! بيعت نه کوې؟» سلمه وايي: ما ورته وويل: ای د الله پېغمبره! ما خو بيعت وکړ. هغه وفرمايل: «بيا هم» نو ما دوهم ځل ورسره بيعت وکړ (راوي وايي) ما ورته وويل: ای ابو مسلمه! په دغه ورځ تاسو په څه شي بيعت کاوه؟ هغه وويل: په مرګ».**

**په مرګ د بيعت دا معنا چې په استشهادي او ځانمرګي جهاد، مرګاني بريدونو، ترمرګه او تر شهادت جهاد او له شهادت څخه په نه ډارېدو مو ورسره بيعت کاوه نو د استشهادي عملياتو لپاره دا ښه ځواکمن، قوي او غښتلی دليل دی.**

**صحابه کرامونه د استشهادي بريدونو او ځانمرګي عملياتو ډېري کيسې د احاديثو او تاريخ کتابونو کې روايت شوي دي چې يوه يې دا ده:**

عن أنس بن مالك قال: «غاب عمى أنس بن النضر عن قتال بدر فقال: يا رسول الله! غبت عن أول قتال قاتلت المشركين لئن الله أشهدنى قتال المشركين ليرين الله ما أصنع فلما كان يوم أحد و انكشف المسلمون قال: اللهم إنى اعتذر

---

۱- رواه البخاری.

إليك مما صنع هؤلاء يعنى أصحابه و أبرأُ إليك مما صنع هؤلاء يعنى المشركين ثم تقدم فاستقبله سعد بن معاذ فقال: يا سعد بن معاذ! الجنة و رب النضر إنى أجد ريحها من دون أحد فقال سعد: فما استطعت يا رسول الله ما صنع: قال أنس: فوجدنا به بضعا و ثمانين ضربة بالسيف أو طعنة بالرمح أو رمية بسهم ووجدناه و قد قتل و قد مثل به المشركون فما عرفه أحد إلا أخته ببنانه. قال أنس: كنا نرى أو نظن أن هذه الأية نزلت فيه و فى أشباهه: «مِّنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُواْ مَا عَـٰهَدُواْ ٱللَّهَ عَلَيْـهِ ........... إلى أخر الأية ».[1]

**انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي : «زما تره انس بن نضر د بدر له جنګه غير حاضر شوى ؤ نو بيا يې وويل: اى د الله پيغمبره! زه له هغه لومړني جنګ نه غير حاضر شوم چې تا مشركانو سره وكړ، كه الله زه مشركانو سره جنګ ته حاضر كړم نو الله به خامخا وګوري چې زه څه كوم، كله چې د احد ورځ شوه او مسلمانان مخ په شاشول نو انس بن نضر وويل: اى الله! دې زما ملګرو چې څه وكړل زه تا ته له دې عذر وړاندې كوم او دې مشركانو چې څه وكړل له هغې درته بېزاريم بيا وړاندې شو نو سعد بن معاذور سره مخ شو او ورته ويې ويل: اى د معاذ ځوى سعده! «د نضر په رب قسم كوم چې زه له احد څخه د ښخوا د جنت**

---

١- رواه البخارى و مسلم و الترمذي و النسا ئى واحمد..

بوی مومم) سعد وویل: ای د الله پیغمبره! انس بن نضر چې ځومره زړورتیا او توره وکړه ما هغه ونه شوه کولی . انس بن مالک وایي: مونږ پرې د تورو د وهلو د نېزو د ځیرلو او د غشو د ویشتلو څه د پاسه اتیا زخمونه ولیدل او وموموندو چې وژل شوی ؤ او مشرکانو یې غوږې غوڅ کړي وو د هغه له خور پرته هچا ونه پیژنده خور یې د ګوتو په بندونو وپیژنده. انس بن مالک وایي: مونږ ته دا معلومېده او دا رایه مووه چې د انس بن نضر او د هغه غوندې نورو شهیدانو په هکله دا ایة نازل شوی دی چې: ((مِّنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا۟ مَا عَـٰهَدُوا۟ ٱللَّهَ عَلَيْهِ ........ تر اخره)). [۱]

شهیدان خو تول شهیدان دي خو انس بن نضر استشهادي بریدونه وکړل او له مخکې یې د شهادت په نیت ډګر ته وردانګلي وو نو ځکه انس بن ملک وایي چې صحابه ؤ دا ویل چې دا ایة د هغه او د هغه د امثالو په څېر شهیدانو کې نازل شوی دی .

حافظ ابن حجر رحمه الله وایي :

(( وروى ابن جرير وابن المنذر بإسناد صحيح عن مدرك بن عوف قال: إنى لعند عمر فقلت: إن لى جارا رمى بنفسه فى الحرب فقتل فقال ناس: ألقى بيده إلى التهلكة، فقال عمر:

۱- د ایة کنه او ترجمه مخکې تېر شول.

كذبوا، ولكنه إشترى الأخرة بالدنيا ». [2]

**« ابن جرير او ابن المنذر دواړو په صحيح سند له مدرک بن عوف نه روايت کړی دی هغه وايي: زه عمر رضي الله عنه سره وم نو ورته و مې ويل چې زما يو ګونډي دی د جنګ ډګر ته يې ورودانګل او ووژل شو نو څه خلکو وويل: ځان يې هلاکت ته وروا چاوه هغه وويل: هغوی دروغ ويلي دي، بلکه هغه په دنيا باندې اخرت واخيست ».**

**په يو بل روايت کې راځي:**

« عن حماد أن ثابت بن قيس بن شماس جاء يوم اليمامة و قد تحنط و لبس ثوبين أبيضين يكفن فيهما و قد انهزم القوم فقال: اللهم إنى أبرأ إليك مما جاء به هؤلاء المشركون و أعتذر إليك مما صنع هؤلاء. ثم قال: بئس ماعودتم أقرانكم منذ اليوم خلوا بيننا و بينهم ساعة فحمل فقاتل حتى قتل ». [1]

**« حماد نه روايت دی چې ثابت بن قيس بن شماس د يمامې [2] په ورځ راغی تحنط [3] يې کړی ؤ او دوه سپين رختونه**

---

۲- فتح الباري كتاب التفسير.

۱- رواه البخارى والطبراني و الحاكم واللفظ له وابن سعد .

۲- (يمامه) هغه جنګ ؤ چې مسيلمة الكذاب باندې مسلمانانو بريد کړی و او محاصره کړی يې ؤ.

۳- (تحنيط) په بېرو او کافورو د مړي لمبولو ته ويل کېږي يعنی ځان ته يې د مړي غسل ورکړی ؤ.

يې اغوستې وو چې کفن ورته پکې ورکول شي . مسلمانانو ما تې خوړلې وه؟ نو ثابت وويل! اى الله! زه تا ته له هغه څه بېزاره يم چې دې مشرکانو وکړل او مسلمانانو چې څه وکړل د هغې عذر درته وړاندې کوم . بيا يې وويل: تاسو چې له نن راهيسې خپل همزولي په څه روږدي کړي دي دا مو ډېر بد کار کړی دی اوس نو مونږ او دوی يو ساعت سره پرېږدئ » .

دغه دی فدايي بريد ، له دې به بل فدايي بريد بل کوم يو وي چې يو څوک له مړينې مخکې د مړي غسل ځان ته ورکړي، کفن واغوندي او تر هغې وجنګېږي چې شهيد شي .

د انس روايت مخکې تېر شو چې يو صحابي خور ما وغور ځولې او فدايي بريد ته ور مخکې شو .

بل حديث کې داسې راځي :

عن أنس أن رجلا قال : « يا رسول الله! أرأيت إن إنغمست في المشركين فقاتلتهم حتى قُتلت أ إلى الجنة ؟ قال :

« نعم »، فانغمس الرجل في صف المشركين فقاتل حتى قتل» . [١]

انس رضي الله عنه نه روايت دی چې يو سړي وويل : « اى د الله پېغمبر! که زه مشرکانو کې ورننوځم او تر هغه ورسره وجنګېدم چې ووژل شوم نو ايا جنت ته به لاړ شم؟ هغه وفرمايل: « هو » نو

---

١- رواه الحاکم .

هغه سړی د مشرکانو په کتار کې ورننووت او تر هغه وجنګد چې ووژل شو».

دا هم فدايي بريددی او په دې نيت او پوخ با ور د مشرکانو په لښکر کې ور دننه شو چې شهيد شي.

امام قرطبي وايي:

« قال ابن خويزمنداد: فأما أن يحمل الرجل على مائة أو على جملة العكسر أو جماعة اللصوص و المحاربين و الخوارج فلذلك حالتان: إن علم و غلب على ظنه أن سيقتل من حمل عليه و ينجو فحسن و كذلك لو على ظنه أن سيُقتل ولكن سينكي نكاية أو سيبلي و يؤثر أثرا ينتفع به المسلمون فجائز أيضا. و قد بلغنى أن عسكر المسلين لما لقى الفرس نفرت خيل المسلمين من الفيلة فعمد رجل منهم فصنع فيلا من طين و أنس به فرسه حتى ألفه، فلما أصبح لم ينفر فرسه من الفيل فحمل على الفيل الذى كان يقدمها فقيل له: إنه قاتلك . فقال : لا ضير أن أُقْتَلَ و يفتح للمسلمين. و كذلك يوم اليمامة لما تحصنت بنوحنيفة بالحديقة قال رجل من المسلمين: ضعوني فى الحجفة و ألقوني إليهم. ففعلوا و قاتلهم وحده و فتح الباب. قلت: و من هذا ما روى أن رجلا

قال للنبی ﷺ : أرأیت إن قُتلتُ فی سبیل الله صابرا محتسبا؟ قال: « فلك الجنة »: فانغمس فی العدو حتی قُتِلَ» . [۱]

« ابن خویز منداد ویلي دي: دا چې یو سړی په سلو کسانو، یا په یو لښکر، یادغلو ډلې، یا جنګېدونکو یا خوارجو حمله وکړي نو د دې دوه حالته دي: که پوهېده او غالب ګومان یې دا ؤ چې په چا حمله کوي هغه به ووژني او خپله به نجات ومومي نو دا ښه ده همدارنګه که په خپل ګومان کې پوهېده چې خپله به ووژل شي خو دښمن ته به داسې زیان ورواړوي او داسې اغېز به پکې وکړي چې مسلمانانو ته به ترې ګټه ورسېږي نو دا هم روا ده. مونږ ته دا خبره رارسېدلې ده چې کله د مسلمانانو لښکر د فارسیانو سره مخامخ شو نو د مسلمانانو اسونه د هغوی له پیلانو نه وترېدل. د مسلمانانو یو سړي داسې وکړل چې له ختې یې یو پیل جوړکړ او خپل اس یې ورسره تر هغې روږدی کړ چې خوښ یې شو، بیا چې بله ورځ دښمن سره مخ شونو اس یې پیل نه ونه تښتېده نو په هغه پیل یې برید وکړ چې تر ټولو مخکې ؤ. چا ورته وویل: هغه دې وژني. هغه وویل: باک یې نشته چې زه ووژل شم او مسلمانانو ته فتح په برخه شي. همدارنګه د یمامې په ورځ چې کله بنو حنیفه په یو باغ کې کلابند شول نو له مسلمانانو څخه یو سړي وویل: ما د څرمنې په یوډال کې کېدئ او هغوی ته مې دننه وروغورځوئ. هغوی دا کار وکړ. هغه یواځې هغوی سره وجنګېد

---

۱- تفسیر احکام القران للقرطبي : ۳۶۳/۲-۳۶۴ .

او د کلا دروازه یې خلاصه کړه. امام قرطبي وایي: زه وایم چې له دې نه دا روایت هم دی چې یو سړي پیغمبر ﷺ ته وویل: که زه د الله په لار کې صبر کوونکی او د اجر هیله کوونکی ووژل شم نو څه به وي؟ هغه وفرمایل: «نو تا لپاره به جنت وي» هغه ورو دانګل او دښمن کې تر هغه ورننواته او وجنګېد چې ووژل شو».

حافظ ابن حجر وایي:

«و قد أجمعوا على جواز تقحم المهالك في الجهاد»

[1].

«د اسلام علماؤ او امامانو په دې اجماع کړې ده چې جهاد کې د هلاکت ځایونو ته ورننوتل روا دي».

د لړې شېبې هغه د پیاوړي ایمان خاوندان مؤمنان چې مخکې کوډګروو او کله چې ورته حق څرګند شو او ایمان یې راوړ نو د نړۍ لوی طاغوت: فرعون ورته وویل:

«فَلَأُقَطِّعَنَّ أَيْدِيَكُمْ وَأَرْجُلَكُم مِّنْ خِلَافٍ وَلَأُصَلِّبَنَّكُمْ فِي جُذُوعِ ٱلنَّخْلِ وَلَتَعْلَمُنَّ أَيُّنَآ أَشَدُّ عَذَابًا وَأَبْقَىٰ» . [2]

«نو زه به هرومرو خامخا ستاسو لاسونه او پښې رد و بدل پرې کړم او خامخا هرو مرو به مو د خورما دونو ډډونو پورې غرغره کړم او تاسو به هرومرو وپوهېږئ چې مونږ کې څوک سخت عذاب ورکوونکی او ډېر پاتې کېدونکی دی؟».

---

[1]- فتح الباري: ۱۲/۳۳۰.

[2]- سورة طه: ۷۱.

**د لږې شېبې پياوړي مؤمنان لـه سختو وژلـو او تعـذيب نه و نه وېرېدل او په ډېر جرات، مېړانـې او استشـهادي غـږ يـې د ډېرو راغونډو شويو خلکو په مخکې فرعون ته وويل :**

(( لَن نُّؤۡثِرَكَ عَلَىٰ مَا جَآءَنَا مِنَ ٱلۡبَيِّنَٰتِ وَٱلَّذِي فَطَرَنَاۖ فَٱقۡضِ مَآ أَنتَ قَاضٍۖ إِنَّمَا تَقۡضِي هَٰذِهِ ٱلۡحَيَوٰةَ ٱلدُّنۡيَآ ۝ إِنَّآ ءَامَنَّا بِرَبِّنَا لِيَغۡفِرَ لَنَا خَطَٰيَٰنَا وَمَآ أَكۡرَهۡتَنَا عَلَيۡهِ مِنَ ٱلسِّحۡرِۗ وَٱللَّهُ خَيۡرٞ وَأَبۡقَىٰٓ )).[1]

**(( مونږ هيڅکله په هغو دليلونو چې مـونږ تـه راغلـي دي او په هغه ذات چې مونږ يې پيدا کړي يو تانه غـوره کـوو نـو هـره پرېکړه چې کوې ويې کړه ته يواځې د دې د نيـوی ژونـد پرېکـړه کولی شې مونږ د دې لپاره په خپل رب ايمـان راوړ چـې مـونږ تـه زمونږ ګوناوې او هغه کـوډې کـول راوبښـي چـې تـا پـرې مجبـور کړي وو الله ډېر غوره او ډېر پاتې کېدونکی دی )) .**

**نـو د لـږې شـېبې پيـاوړيو مؤمنـانو تـه فرعـون پـه ډاګـه وويل چې لاسونه اوپښې به موردوبدل پرې کـړم او د خورمـادونو په ډډونو به مو غرغره کړم. خو هغوی د دې ټولو پروا ونـه کـړه او ځانونه يې د حق په لار کې شهادت تـه وروړانـدې کـړل، نـو ځکـه الله سبحانه و تعالی د هغوی دغه تاريخي ښندنه او ويار په خپـل کتاب کې مونږ ته رایاد کړ تر څو مـونږ هـم د هغـه جـل جلالـه پـه لار کـې لـه شـهادت څخـه سـر ونـه غـړوو او پـه مېړانـه د بـاوري شهادت ډګر ته ورودانګو .**

[1] - سورة طه : ۷۲-۷۳ .

**هغوی لپاره به هغې کې تل پاتې نعمتونه وي ،هغوی به تل تر تله پکې اوسېږي الله سره بې شکه لوی اجر دی**».

**او فرمايي** :

« وَٱلَّذِينَ هَاجَرُواْ فِي ٱللَّهِ مِنۢ بَعۡدِ مَا ظُلِمُواْ لَنُبَوِّئَنَّهُمۡ فِي ٱلدُّنۡيَا حَسَنَةٗۖ وَلَأَجۡرُ ٱلۡأٓخِرَةِ أَكۡبَرُۚ لَوۡ كَانُواْ يَعۡلَمُونَ ٱلَّذِينَ صَبَرُواْ وَعَلَىٰ رَبِّهِمۡ يَتَوَكَّلُونَ ». ١

« **هغه خلک چې د الله په لار کې يې له هغې وروسته هجرت کړی وي چې ظلم پرې شوی دی خامخا به هغوی ته په دنيا کې نېکه بدله ورکړو او د اخرت اجر خامخا ډېر لوی دی کاشکې چې دوی پوهېدی هغه مهاجرين چې صبر يې کړی وي او په خپل رب ځانونه سپاري**».

**او فرمايي** :

« وَٱلَّذِينَ هَاجَرُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ ثُمَّ قُتِلُوٓاْ أَوۡ مَاتُواْ لَيَرۡزُقَنَّهُمُ ٱللَّهُ رِزۡقًا حَسَنٗاۚ وَإِنَّ ٱللَّهَ لَهُوَ خَيۡرُ ٱلرَّٰزِقِينَ لَيُدۡخِلَنَّهُم مُّدۡخَلٗا يَرۡضَوۡنَهُۥۗ وَإِنَّ ٱللَّهَ لَعَلِيمٌ حَلِيمٞ ». ٢

« **هغه خلک چې د الله په لار کې يې هجرت کړی وي او**

---

١- سورة النحل : ٤١-٤٢ .

٢- سورة الحج : ٥٨-٥٩ .

**بیا وژل شوي وي یا مړۀ شوي وي الله به خامخا ښه روزي ورکړي الله هرومرو تر ټولو ښه روزي ورکوونکی دی، خامخا به یې داسې ځای ته ننه باسي چې خوښوي یې او الله بې شکه خامخا ډېر پوه او زیات زغمونکی دی».**

**او فرمايي:**

«إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَٱلَّذِينَ هَاجَرُواْ وَجَٰهَدُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ أُوْلَٰٓئِكَ يَرۡجُونَ رَحۡمَتَ ٱللَّهِۚ وَٱللَّهُ غَفُورٞ رَّحِيمٞ». ١

**«هغه خلک چې ایمان یې راوړی دی او هغه خلک چې د الله په لار کې یې هجرت او جهاد کړی دی، هغوی د الله د لورینې هیله کوي او الله ډېر ښونکی او خورا زیات لوروونکی دی».**

**همدارنګه فرمايي:**

«وَٱلسَّٰبِقُونَ ٱلۡأَوَّلُونَ مِنَ ٱلۡمُهَٰجِرِينَ وَٱلۡأَنصَارِ وَٱلَّذِينَ ٱتَّبَعُوهُم بِإِحۡسَٰنٖ رَّضِيَ ٱللَّهُ عَنۡهُمۡ وَرَضُواْ عَنۡهُ وَأَعَدَّ لَهُمۡ جَنَّٰتٖ تَجۡرِي تَحۡتَهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدٗاۚ ذَٰلِكَ ٱلۡفَوۡزُ ٱلۡعَظِيمُ». ٢

**«مخکې کېدونکي لومړني مهاجرین، انصار او هغه**

---

١- سورة البقرة: ٢١٨.

٢- سورة التوبة: ١٠٠.

خلک چې په ښه لار هغوی پسې تللي دي الله هغوی نه راضي شوی دی او هغوی الله نه راضي شوي دي الله هغوی لپاره داسې جنتونه تيار کړي دي چې ويالې پکې بهيږي تل تر تله به پکې اوسيږي او دا لويه برياده».

او فرمايي:

﴿لِلْفُقَرَآءِ ٱلْمُهَـٰجِرِينَ ٱلَّذِينَ أُخْرِجُوا۟ مِن دِيَـٰرِهِمْ وَأَمْوَٰلِهِمْ يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّنَ ٱللَّهِ وَرِضْوَٰنًا وَيَنصُرُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥٓ ۚ أُو۟لَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلصَّـٰدِقُونَ ﴾. ١

« (غنيمت) هغو محتاجو مهاجرينو لپاره هم دی چې له خپلو کورونو او مالونو څخه ايستل شوي دي د الله ښېګړه او رضا لټوي او د الله او د هغه د پيغمبر مرسته کوي، دوی هغه خلک دي چې همدوی ريښتيني دي».

---

١- سورة الحشر: ٨.

# هجرت د جهاد دروازه ده

د الله سبحانه و تعالى په لار کې هجرت کول له دې امله زيات اهميت لري چې دا د جهاد دروازه ده. مسلمان چې کله هجرت وکړي نو بيا به بېرته جهاد ته راستنېږي او هر ځای چې د جهاد ضرورت او اړتيا وه هلته به جهاد کوي جهاد في سبيل الله دغه تنګ سياسي حدود نه پېژني او نه يې مني کۀ پېښور ته هجرت وکړي او پېښدای کې د جهاد کولو ضرورت ؤ نو کوي به يې او کۀ ننګرهار ته هجرت وکړي او کابل يا پېښور کې د جهاد ضرورت ؤ نو کوي به يې دانه ده چې د پاکستان په نامه د انګرېزانو ټاکلو بريدونو نه دننه به جهاد جهاد نه وي او کشمير او کابل کې به جهاد وي !!! ...... بلکه هر ځای چې ورته لنډ ؤ هلته به جهاد کوي.

قران کريم کې چې ځای په ځای هجرت ياد شوی نو لومړی هجرت او بيا جهاد ورسره ياد شوی دی چې دا هم په دې دلالت کوي چې لومړی هجرت او بيا جهاد دی او دا دواړه سره تړلي دي او ځينو ځايونو کې مهاجرينو او مجاهدينو ته پنا ورکول او هغو سره مرسته کول هم ياد شوی دي او دا په دې دلالت کوي چې مهاجرينو او مجاهدينو ته به نور مسلمانان هم پنا ورکوي او هم به ورسره هجرت او جهاد کې مرسته کوي ځکه چې دا د دين حکمونه دي او ټول سره پکې شريک دي.

**الله تعالى فرمايي:**

« وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَهَاجَرُواْ وَجَٰهَدُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ وَٱلَّذِينَ ءَاوَواْ وَّنَصَرُوٓاْ أُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُؤۡمِنُونَ حَقّٗاۚ لَّهُم مَّغۡفِرَةٞ وَرِزۡقٞ كَرِيمٞ ». ١

**« هغه خلک چې ايمان يې راوړی دی او د الله په لار کې يې هجرت او جهاد کړی دی او هغه خلک چې پنايې ورکړې او مرسته يې ورسره کړې ده هغوی په حقه مؤمنان دي هغوی لپاره ښښنه او د عزت روزي ده».**

**او فرمايي:**

« ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِينَ هَاجَرُواْ مِنۢ بَعۡدِ مَا فُتِنُواْ ثُمَّ جَٰهَدُواْ وَصَبَرُوٓاْ إِنَّ رَبَّكَ مِنۢ بَعۡدِهَا لَغَفُورٞ رَّحِيمٞ ». ٢

**« هغه خلک چې له هغې وروسته يې هجرت کړی دی چې کړول شوي دي بيا يې جهاد او صبر کړی دی ستا رب هغوی لپاره له دې وروسته بې شکه خامخا ډېر ښښونکی او زيات لوروونکی دی».**

**دا اړينه او ضروري نه ده چې ټول مسلمانان به خامخا**

---

١- سورة الانفال: ٧٤.

٢- سورة النحل: ١١٠.

هجرت کوي او جهاد به یوائحې مهاجرین کوي بلکه هجرت به یوائحې هغه خلک کوي چې دارالحرب او دارالکفر کې اوسېږي، اسلامي احکام نه شي عملي کولی، د وضعي قوانینو منلو ته اړ ایستل کېږي او د اسلامي شعائرو او حرماتو نه د ځینو یا ټولو سپکاوی کېږي، خو کهٔ څوک دارالاسلام کې اوسېدل نو هغوی به یوائحې جهاد کوي او په هغوی هجرت کول نشته لکه د مدینې منورې انصارو چې هجرت ونه کړ ځکه چې هجرت کولو ته اړ نه وو خو جهاد في سبیل الله مهاجرینو او انصارو په ګډه اوږه په اوږه کاوهٔ.

همدارنګه د مکې مکرمې له فتحې نه وروسته بیا د مکې یا نورو هغو خلکو لپاره هجرت کول منع شول چې هغوی د اسلامي دولت په بریدونو کې دننه اوسېدل.

حدیث کې راځي:

عن ابن عباس قال: قال النبی ﷺ یوم فتح مکة: «لا هجرة بعد الفتح ولکن جهاد و نية و إذا استنفرتم فانفروا».[1]

د عبد الله بن عباس رضي الله عنهما نه روایت دی هغه وایي: نبی کریم ﷺ د مکې د فتحې په ورځ وفرمایل: «له فتحې وروسته هجرت نشته خو یوائحې جهاد او نیت دی او کله چې د جهاد وتلو لپاره وبلل شوئ نو واوځئ».

نو دا د مکې د خلکو لپاره ؤ او نورو هغو خلکو لپاره هم دی چې دارالاسلام کې اوسېږي خو دارالحرب نه هجرت کول تر

[1]- رواه البخاري و مسلم.

**قيامته مشروع او فرض دي .**

**او بل حديث کې راځي :**

عن مجاشع قال: أتيت النبى ﷺ أنا و أخى فقلت بايعنا على الهجرة فقال: « مضت الهجرة لأهلها » قلت: على ماتبايعنا؟ قال: « على الإسلام و الجهاد ».[١]

**مجاشع رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي: زه او زما ورور پېغمبر ﷺ ته راغلوو نو ما ورته وويل : مونږ سره په هجرت بيعت وکړه! هغه وفرمايل : « هجرت د خپلو خلکو لپاره تېر شوی دی » ما ورته وويل : نو په څه شي مونږ سره بيعت کوې؟ هغه و فرمايل : « په اسلام او جهاد».**

**دا د مکې مکرمې له فتحې نه وروسته وو او لکه مخکې چې تېر شول د هغه وخت خلکو لپاره د فتحې نه وروسته هجرت کول نه وو بلکه جهاد ؤ نو ځکه رسول الله ﷺ ورسره په اسلام منلو او جهاد کولو بيعت وکړ .**

---

[١]- رواه البخارى .

# د هجرت ډولونه

د مهجر (د هجرت کولو د ځای) په اعتبار هجرت پـه دوه ډوله دی:

١- دارالاسلام ته هجرت ٢- دارالامان ته هجرت

دارالاسلام هغه ځای تـه وایـي چې هلتـه اسـلامي دولـت وي او اسلامي شریعت بشپړ نافذ وي لکه مدینې منورې تـه چې رسول الله ﷺ او صـحابه کرامـو ﷺ هجـرت کـړی ؤ او اسـلامي نظام یې نافذ کړی ؤ.

دارالامان هغه ځای ته وایي چې هلتـه اسـلامي شـریعت نافذ نه وي خو مسلمانان پکې پـه امـن اوسـېدی شي، اسـلامي احکام په ازادۍ سره عملي کـولی شـي او د اسـلامي شـعائرو او حرماتو یا د مسـلمانانو سـپکاوی پکـې نـه کېـږي، لکـه مـدینې منـورې تـه د هجـرت نـه مخکـې چـې ځینـو صـحابه کرامـو ﷺ حبشـې تـه هجـرت کـړی ؤ، یـا د افغانسـتان مهـاجرینو کـوزې پښتونخوا او پاکستان ته هجرت کړی ؤ ځکه چې دې دواړو کـې یـو هـم دارالاسـلام نـه دی ځکـه چـې دې دواړو کـې د انګرېزانـو وضعي قـوانین نافـذ دي خـو اوس دا دواړه دارالامـان هـم نـه دي ځکه چې اسلام او اسلامي امت سره ښکـاره حـرب او جنګ پکـې پیل شوی دی، مسـلمانان پکـې زنـدانونو تـه واچـول او امریکـا باندې وپلورل شول، مدرسې او جوماتونـه پکـې رنګ شـول، پـه

مسلمانانو بمبارونه وشول او کېږي او د امریکا سره ولاړ دي چې د پاکستان د هوایي میدانونو نه په افغانستان (۷۵۰۰۰) پنځه اویازره هوایي امریکي + پاکستاني حملې وشوې، اسلامي امارت یې ړنګ کړ او تر اوسه د مسلمانو پښتنو قبائلو: وزیرستان، اورکزو، باجوړ او سوات باندې وحشي بمبارونه او یرغلونه کېږي پاکستان مخکې هم دارالحرب ؤ او اوس هم. خلک یې مسلمانان دي، خاوره د مسلمانانو ده خو دی دارالحرب او د مسلمانانو دا خاوره د اسلام د دښمنانو په احتلال او یرغل کې ده. تر څو بشپړ اسلامي شریعت نافذ نه شي تر هغې دارالحرب دی، په جوماتونو او ځینو اسلامي شعائرو باندې دارالاسلام نه شي ګڼل کېدی.

دارالاسلام ته چې چا هجرت وکړ بیا کهٔ په خپل وطن کې حالات ښه شول او اسلام هم پکې نافذ شو مهاجر ته دا روا نه دي چې بیرته هجرت مات کړي او خپل وطن ته ستون شي ځکه چې د مدینې منورې مهاجرین د مکې د فتحې نه وروسته هم مکې ته ستانه نه شول او رسول الله ﷺ هیچا ته دا اجازه ور نه کړه چې بېرته مکې ته ستون شي هلته تګ را تګ کولی شي خو په کډه به نه ورستنېږي یو صحابي مکې مکر مې ته تللی ؤ او هلته مړ شوی ؤ نو د هغه په هکله به تل رسول الله ﷺ خواشیني څرګندوله او دارالامان نه بېرته دارالاسلام ته ستنېدل روا بلکه فرض دي لکه حبشې نه چې مهاجرین مدینې ته بیرته ستا نه شول او یو ځل د نا سمې اوازې له امله مکې ته هم ستا نه شوي وو خو کله چې لاره کې خبر شول چې حالات تر اوسه هم لاسم نه

دي نو لارې نه بېرته حبشې ته ستانه شول. نو که دارالامان (حبشې) نه مکې ته ستنېدل روا نه وی نو صحابه به نه وو ستانه شوي او رسول الله ﷺ به منع کړي وو. نو د افغانستان مهاجرو چې کوزې پښتونخوا او پاکستان ته هجرت کړی دی دا دارالامان ته هجرت دی کله چې په افغانستان کې اسلامي نظام نافذ شي یا د کافرانو تسلط ختم شي مهاجرین باید بېرته ستانه شي خو که لر او بر یو اسلامي دولت شي نو بیا هر ځای کې اوسېدی شي ځکه چې لومړنی هجرت دارالامان ته ؤ او دارالامان نه ستنېدل روا دي. خو چې وروسته دارالامان دارالاسلام شو نو هغه مخکني مهاجر هم پاتې کېدی او هم ستنېدی شي خو نوي مهاجر چې د دارالاسلام په حیث ورته راشي هغوی نه شي ستنېدی خو تر اوسه لا دارالحرب دی.

# هجرت نه کول لویه ګونا ده

د الله تعالی په لار کې هجرت نه کول کبیره (لویه) ګونا ده او که داسې (مستضعف) (کمزوری) نه وي چې هجرت نه شي کولی نو د کفر تر بریده رسېږي ځوک چې ځان مسلمان بولي او هجرت کولی شي خو نه یې کوي هغوی منافقان ګڼل شوي او مؤمنان د هغوی د دوستۍ نه منع شوي دي .

**الله تعالی فرمایي :**

(( فَلَا تَتَّخِذُوا۟ مِنْهُمْ أَوْلِيَآءَ حَتَّىٰ يُهَاجِرُوا۟ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ۚ )). [١]

١

**((نو هغوی سره تر هغې دوستي مه کوئ تر څو د الله په لار کې هجرت وکړي )).**

**او فرمایي :**

(( إِنَّ ٱلَّذِينَ تَوَفَّىٰهُمُ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ ظَالِمِىٓ أَنفُسِهِمْ قَالُوا۟ فِيمَ كُنتُمْ ۖ قَالُوا۟ كُنَّا مُسْتَضْعَفِينَ فِى ٱلْأَرْضِ ۚ قَالُوٓا۟ أَلَمْ تَكُنْ أَرْضُ ٱللَّهِ وَٰسِعَةً فَتُهَاجِرُوا۟ فِيهَا ۚ فَأُو۟لَٰٓئِكَ مَأْوَىٰهُمْ جَهَنَّمُ ۖ وَسَآءَتْ مَصِيرًا )). [٢]

**(( هغه خلک چې پرښتو په داسې حال کې مړهٔ کړل چې په**

---

١- سورة النساء: ٨٩ .

٢- سورة النساء: ٩٧ .

خپلو ځانونو ظلم کوونکي وو نو پرښتې به ورته ووايي چې تاسو په کوم حال کې وئ؟ هغوی به وايي: مونږ په ځمکه کې کمزوري وو. هغوی به ورته وايي: ايا د الله ځمکه پراخه نه وه چې هجرت مو پکې کړی وی؟ د هغوی ډېره ځای به دوزخ وي او هغه د ورتللو ډېر بد ځای دی».

او فرمايي:

«وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَلَمۡ يُهَاجِرُواْ مَا لَكُم مِّن وَلَٰيَتِهِم مِّن شَيۡءٍ حَتَّىٰ يُهَاجِرُواْۚ».[1]

«او هغه خلک چې ايمان يې راوړی دی او هجرت يې نه دی کړی تاسو لپاره د هغوی سره تر هغې هيڅ ډول دوستي روا نه ده تر څو چې هجرت وکړي».

[1]- سورة الانفال: ۷۲.

# بې وسه

هغه بې وسه مسلمانان چې د هجرت کولو لار او خرڅ نه مومي هغوی ګوناهګار نه دي او هغوی مستثنادي.
الله تعالی فرمايي:

« إِلَّا ٱلۡمُسۡتَضۡعَفِينَ مِنَ ٱلرِّجَالِ وَٱلنِّسَآءِ وَٱلۡوِلۡدَٰنِ لَا يَسۡتَطِيعُونَ حِيلَةً وَلَا يَهۡتَدُونَ سَبِيلًا فَأُوْلَٰٓئِكَ عَسَى ٱللَّهُ أَن يَعۡفُوَ عَنۡهُمۡۚ وَكَانَ ٱللَّهُ عَفُوًّا غَفُورًا ».[1]

« خوله سړيو، ښځو او ماشومانو هغه کمزوري خلک (ګوناهګار نه دي) چې نه د وتو کومه سرشته نيوی شي او نه لار مومي الله به له دوی تېر شي او الله ډېر تېرېدونکی او زيات ښښونکی دی ».

او کۀ چا توبه وايسته او وروسته يې هجرت او جهاد وکړ هغوی هم مسلمانان دي.
الله تعالی فرمايي:

« وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مِنۢ بَعۡدُ وَهَاجَرُواْ وَجَٰهَدُواْ مَعَكُمۡ

---

١- سورة النساء: ٩٨-٩٩.

فَأُوْلَٰٓئِكَ مِنكُمۡۚ ». ١

« **او هغه خلك چې وروسته يې ايمان راوړ، هجرت يې وكړ او ستاسو په ملګرتيا يې جهاد وكړ نو هغوى له تاسو څخه دي** ».

# نصرت

**لكه مخكې مو چې وويل مهاجرينو ته پنا وركول او هغوى سره نصرت (مرسته) كول په مسلمانانو فرض دي او مهاجرينو سره چې مرسته كوي هغوى (انصار) (مرسته كوونكي) بلل كېږي.**

**رسول الله ﷺ سره چې د مديني منورې انصارو د حج په موسم كې په بيعة العقبة الاولى او ثانية كې بيعت او تړون وكړ او بيا رسول الله ﷺ او صحابه كرامو رضي الله عنهم مديني ته هجرت وكړ نو انصارو ورته په ورين تندي او خلاص زړهٔ پنا وركړهٔ. كورونه يې وركړل او مرسته يې ورسره وكړه. مهاجرين او انصار سره ورونه ورونه او يو موټى اسلامي امت شول او د همدې هجرت او نصرت بركت ؤ چې مديني طيبې كې د اسلامي دولت بنسټ كېښودل شو او اسلام ټولې نړۍ ته خپور شو.**

١- سورة الانفال: ٧٥.

**الله سبحانه و تعالی د انصارو ستاینه داسې کوي:**

«وَالَّذِينَ تَبَوَّءُو الدَّارَ وَالْإِيمَانَ مِن قَبْلِهِمْ يُحِبُّونَ مَنْ هَاجَرَ إِلَيْهِمْ وَلَا يَجِدُونَ فِي صُدُورِهِمْ حَاجَةً مِّمَّا أُوتُوا وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ وَمَن يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ».[١]

**«او هغه انصار چې له دوی مخکې يې کورونه تيار کړل او ايمان ته يې ځای ورکړ هغه مهاجرين خوښوي چې دوی ته يې هجرت کړی دی او په خپلو سينو کې هغه څه ته اړتيا نه مومي چې هغوی ته ورکول شوي دي او اګر چې خپله هم وږي او اړ وي خو نور په خپلو ځانونو غوره کوي او چا چې د خپل نفس له حرصه ځان وژغوره نو همغوی برياليي دي».**

**د پورتني ايت په تفسير کې دا حديث راغلی دی:**

عن أبی هريرة أن رجلا أتی النبی ﷺ فبعث إلى نسائه فقلن مامعنا إلا الماء فقال رسول الله ﷺ: «من يضم أو يضيف هذا؟» فقال رجل من الأنصار: أنا. فانطلق به إلى إمرأته فقال: أكرمي ضيف رسول الله ﷺ فقالت: ما عندنا إلا قوت صبيان فقال: هيئي طعامك و أصبحي سراجك و نومي صبيانك إذا أرادوا عشاء فهيأت طعامها و أصبحت سراجها و

١- سورة الحشر: ٩.

نومت صبيانها ثم قامت كأنها تصلح سراجها فأطفأته فجعلا يريانه كأنهما يأكلان فباتا طاويين فلما أصبح غدا إلى رسول الله ﷺ فقال: «ضحك الله الليلة أو عجب من فعالكما» فأنزل الله تعالى: «وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ ۚ وَمَن يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِۦ فَأُولَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ».[1]

ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چې يو سړی نبی کريم ﷺ ته راغی هغه خپلو ښځو ته څوک ورولېږۀ (چې دغه مېلمه ته د خوراک څه راوړي) هغوی وويل: مونږ سره له اوبو پرته هيڅ نشته نو رسول الله ﷺ وفرمايل: «دا مېلمه به څوک له ځانه سره يو ځای کړي يا يې مېلمه کړي؟» نو د انصارو يو سړي وويل: زه به يې مېلمه کړم. هغه له ځانه سره بوتۀ، خپلې ښځې ته ورغی او ورته وېی ويل: د رسول الله ﷺ د مېلمه عزت وکړه. هغې وويل: د ماشومانو له لږ خوراک پرته نور هيڅ نشته. هغه ورته وويل: خپل خوارۀ تيار کړه، ډيوه بله کړه او ماشومانو دې چې ډوډی غوښتله نو وېدۀ يې کړه. هغې ډوډی تياره کړه، ډيوه يې بله کړه او خپل ماشومان يې ويدۀ کړل (بيا يې مېلمه ته ډوډی کېښوده) بيا هغه پاڅېده داسې يې ښووله چې ګنې ډيوه سموي نو هغه يې مړه کړه او دواړو مېلمه ته داسې ښوده لکه چې هغوی هم خوراک کوي. (مېلمه مړ شو او ماشومان) او هغوی دواړه (ښځه خاوند) وږي ويدۀ شول کله چې سبا شو نو سهار کې رسول

---

١- رواه البخاری.

الله ﷺ ته ورغی هغه ورته وفرمایل : « نن شپه ستاسو د دواړو (ښځې او مېړه) دې ښه کار ته الله وخندل یا تعجب یې وکړ » نو الله تعالی دا ایت نازل کړ: « وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ ……… ».

نو دې ته انصار ویل کېږي چې د ماشومانو برخه لږه ډوډۍ یې په مېلمه چل ول کې وخوړه او ښځه مېړه او ماشومان وږي ویده شول او مېلمه یې هم په ځان پوه نه کړ!!!.

او دا ایثار د الله تعالی دومره خوښ شو چې پورتنی ایت یې نازل کړ.

او لکه څرنګه چې په پورتني ایت کې دا څرګنده شوه چې انصار به مهاجرینو سره مینه کوي همدارنګه به مهاجرین هم د هغو انصارو سره مینه کوي چې د الله تعالی د رضا لپاره یې مهاجرینو ته پنا ورکړې او مرسته ورسره کوي.

حدیث کې راځي:

عن أنس بن مالك عن النبی ﷺ قال: « آية الإيمان حب الأنصار و آية النفاق بغض الأنصار ». [١]

د انس بن مالک رضي الله عنه نه روایت دی هغه د نبي کریم ﷺ نه روایت کوي چې هغه وفرمایل: « انصارو سره مینه کول د ایمان نښه ده او انصارو سره کینه کول د نفاق نښه ده ».

او بل روایت کې داسې راځي:

عن البراء بن عازب قال: قال النبی ﷺ: « الأنصار

---

١- رواه البخاری.

لايحبهم إلا مؤمن ولا يبغضهم إلا منافق فمن أحبهم أحبه الله و من أبغضهم أبغضهم الله». [1]

**د براء بن عازب رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «انصارو سره له مؤمن پرته بل څوک مينه نه کوي او له منافق پرته بل څوک ورسره کينه نه کوي، چا چې انصارو سره محبت وکړ الله هغوی سره محبت وکړ او چا چې انصارو سره کينه وکړه الله هغوی سره کينه وکړه».**

**او دخندق په ورځ مهاجرينو او انصارو د خندق د کنستلو او خاورو چلولو په وخت کې ويل :**

«نحن الذين بايعوا محمدا على الجهاد ما بقينا ابدا» [2]

**«مونږ هغه خلک يوه چې محمد ﷺ سره مو تر هغې په جهاد کولو بيعت کړی تر څو چې پاتې وو».**

**نو رسول الله ﷺ به په ځواب کې فرمايل :**

**اللهم لاعيش إلاعيش الآخره فاغفر للأنصار والمهاجره**

**«ای الله د اخرت له ژوند پرته بل ښه ژوندون نشته نو انصارو او مهاجرينو ته ښنه وکړه».**

**او الله تعالی فرمايي :**

«إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَهَاجَرُوا۟ وَجَٰهَدُوا۟ بِأَمْوَٰلِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ وَٱلَّذِينَ ءَاوَوا۟ وَّنَصَرُوٓا۟ أُو۟لَٰٓئِكَ بَعْضُهُمْ

١- رواه البخاری.

٢- رواه البخاری.

أَوۡلِيَآءُ بَعۡضٍۚ ››.[١]

‹‹ هغه خلک چې ایمان یې راوړی دی او د الله په لار کې یې هجرت او په خپلو مالونو او ځانونو جهاد کړی دی او هغه خلک چې پنا یې ورکړې ده دوی خپلو منځو کې یو تر بله سره ملګري دي››.

او فرمايي:

‹‹ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَهَاجَرُواْ وَجَٰهَدُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ وَٱلَّذِينَ ءَاوَواْ وَّنَصَرُوٓاْ أُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُؤۡمِنُونَ حَقّٗاۚ لَّهُم مَّغۡفِرَةٞ وَرِزۡقٞ كَرِيمٞ ››.[٢]

‹‹ هغه خلک چې ایمان یې راوړی دی او د الله په لار کې یې هجرت او جهاد کړی دی او هغه خلک چې (مهاجرینو او مجاهدینو ته یې) ځای ورکړی دی دوی په ریښتیا مؤمنان دي دوی لپاره بښنه او د عزت روزي ده ››.

او فرمايي:

‹‹ وَٱلسَّٰبِقُونَ ٱلۡأَوَّلُونَ مِنَ ٱلۡمُهَٰجِرِينَ وَٱلۡأَنصَارِ وَٱلَّذِينَ ٱتَّبَعُوهُم بِإِحۡسَٰنٖ رَّضِيَ ٱللَّهُ عَنۡهُمۡ وَرَضُواْ عَنۡهُ وَأَعَدَّ

١- سورة الانفال: ٧٢ .
٢- سورة الانفال: ٧٤ .

لَهُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِي تَحْتَهَا ٱلْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًاۚ ذَٰلِكَ ٱلْفَوْزُ ٱلْعَظِيمُ ››.[١]

‹‹ او د مهاجرينو او انصارو مخکې کېدونکي او لومړني او هغه خلک چې په ښه لار هغوی پسې تللي دي، الله هغوی نه راضي شوی دی او هغوی الله نه راضي شوي دي او الله هغوی ته داسې جنتونه تيار کړي دي چې ويالې پکې بهېږي تل تر تله به پکې اوسېږي او دا لويه بريا ده ››.

# د الله تعالی په لار کې لګښت

د الله سبحانه و تعالی په لار کې د جهاد لپاره د مال د لګښت زياته اړتيا ده نو ځکه په قراني نصوصو کې ځای په ځای د مالونو او ځانونو دواړو د جهاد حکم کېږي او تل د مال جهاد د ځان په جهاد مخکې يادېږي، دا ځکه چې څوک د مال جهاد ته تيار نه شي نو هغه د ځان ښندنې ته نه تيارېږي او د جهاد په لار کې مالي لګښت ته زياته اړتيا ده .

د مجاهد خرڅ او خوراک، د هغه د کور اړتياوې، د مرکب (سپرلۍ)، وسلې او وسايلو برابرول، د ټپيانو او شهيدانو

---

[١]- سورة التوبة: ١٠٠.

سمبالول، د شهیدانو د کورونو پالل او د سنګر او ډګر تولې اړتیاوې پوره کول مال ته زیاته اړتیا لري نو ځکه مسلمانانو ته په جهاد کې د مالي مرستې او لګښت په هکله حکم شوی دی، ترغیب او هڅونه راغلې ده او د انفاق فضیلتونه څرګند شوي دي.

الله سبحانه و تعالی فرمايي:

«وَأَنفِقُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ وَلَا تُلۡقُواْ بِأَيۡدِيكُمۡ إِلَى ٱلتَّهۡلُكَةِ وَأَحۡسِنُوٓاْۚ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلۡمُحۡسِنِينَ». [1]

«د الله په لار کې لګښتونه وکړئ او خپل ځانونه په لوی لاس هلاکت ته مه غورځوئ او ښېګړه وکړئ الله بې شکه ښېګړه کوونکي خوښوي».

په لوی لاس هلاکت ته ځانونه غورځول دا دي چې د الله په لار کې جهاد کې مال نه لګوي ځکه چې په جهاد کې د مال نه لګولو باندې جهاد، مجاهدين او امت کمزوری کېږي او د اسلام دښمنانو ته ګټه رسېږي نو د مال نه لګولو کې هم دنیوي ذلت او هم اخروی عذاب دی او له دې لوی هلاکت به بل کوم وي؟.

د دې ايت په تفسير کې د ابو عمران روايت مخکې تېر شو چې دا د انفاق په نه کولو کې نازل شوی دی.

قران کريم کې ځای په ځای مالي جهاد د بدني جهاد په خوا کې داسې غبرګ شوی دی:

---

١- سورة البقرة: ١٩٥.

((وَجَٰهَدُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ بِأَمۡوَٰلِهِمۡ وَأَنفُسِهِمۡ)).[1]

((وَٱلۡمُجَٰهِدُونَ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ بِأَمۡوَٰلِهِمۡ وَأَنفُسِهِمۡۚ )).[2]

((فَضَّلَ ٱللَّهُ ٱلۡمُجَٰهِدِينَ بِأَمۡوَٰلِهِمۡ وَأَنفُسِهِمۡ)).[3]

((وَتُجَٰهِدُونَ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ بِأَمۡوَٰلِكُمۡ وَأَنفُسِكُمۡۚ )).[4]

((إِنَّ ٱللَّهَ ٱشۡتَرَىٰ مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ أَنفُسَهُمۡ وَأَمۡوَٰلَهُم)).[5]

((جَٰهَدُواْ بِأَمۡوَٰلِهِمۡ وَأَنفُسِهِمۡۚ )).[6]

((أَن يُجَٰهِدُواْ بِأَمۡوَٰلِهِمۡ وَأَنفُسِهِمۡ)).[7]

**د دې ايتونو بشپړه ژباړه مخکې تېره شوې ده دلته مونږ د بېلګې په توګه هغه ځايونه راواخيستل چې د مال او ځان جهاد پکې سره غبرګ شوي دي او دا په دې دلالت کوي چې د ځان د جهاد په خواکې د مال جهاد هم فرض دی .**

---

١- سورة التوبة : ٢٠
٢- سورة انساء : ٩٥
٣- سورة انساء : ٩٥
۴- سورة الصف : ١١
۵- سورة التوبة : ١١١
٦- سورة التوبة : ٨٨ ، سورة الحجرات : ١۵
٧- سورة التوبة: ٨١/۴۴

جهاد به د الله تعالى په لار کې وي او د نورو اعمالو په څېر د اخلاص او اتباع شرطونه ورسره تړلي دي او د دې دواړو شرطونو تفصيل زمونږ په کتاب: «توحيد ربنا»کې وګورئ.

نو جهاد به هم في سبيل الله وي، هم به د پېغمبر ﷺ په اتباع وي او هم به په مال او ځان دواړو وي.

زمونږ مالونه او ځانونه او دا ټول کائنات او موجودات د الله سبحانه وتعالى دي الله تعالى نه زمونږ جهاد ته اړ دی او نه انفاق ته، د دواړو ګټې او ثوابونه مونږ لپاره دي، که په جهاد کې مال ونه لګوو له نورو لارو به زمونږ مالونه تلف او له منځه لاړ شي او د الله په لار کې انفاق مال نه کموي بلکه الله تعالى پکې برکت اچوي نو بايد تر ټولو مخکې هڅه وکړو چې خپل مالونه د الله په لار کې ولګوو دې مسابقې کې مخکې کېدل او وړاندې والى زيات فضيلت لري.

الله تعالى فرمايي:

«وَمَا لَكُمْ أَلَّا تُنفِقُوا۟ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ وَلِلَّهِ مِيرَٰثُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۚ لَا يَسْتَوِى مِنكُم مَّنْ أَنفَقَ مِن قَبْلِ ٱلْفَتْحِ وَقَٰتَلَ ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ أَعْظَمُ دَرَجَةً مِّنَ ٱلَّذِينَ أَنفَقُوا۟ مِنۢ بَعْدُ وَقَٰتَلُوا۟ ۚ وَكُلًّا وَعَدَ ٱللَّهُ ٱلْحُسْنَىٰ ۚ وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ مَّن ذَا ٱلَّذِى يُقْرِضُ ٱللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضَٰعِفَهُۥ لَهُۥ وَلَهُۥٓ أَجْرٌ كَرِيمٌ».[1]

---

١- سورة الحديد: ١٠-١١.

«او په تاسو څه شوي دي چې د الله په لار کې مال نه لګوئ حال دا چې د اسمانونو او ځمکې میراث یوائځې د الله دی. هغه خلک سره نه برابرېږي چې چا له فتحې مخکې لګښت کړی دی او جنګېدلي دي د دوی درجه له هغوی لویه ده چې له فتحې وروسته یې لګښتونه کړي او جنګېدلي دي او الله ټولو سره د ښېګړې وعده کړې ده تاسو چې څه کوئ الله پرې ښه خبر دی. هغه به څوک وي چې الله ته ښه پور ورکړي نو هغه یې ورته څو چنده کړي او هغه لپاره د عزت اجر دی».

او فرمايي:

«مَّن ذَا ٱلَّذِى يُقْرِضُ ٱللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضَٰعِفَهُۥ لَهُۥٓ أَضْعَافًا كَثِيرَةً ۚ وَٱللَّهُ يَقْبِضُ وَيَبْصُۜطُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ».[1]

«هغه به څوک وي چې الله ته د ښېګړې پور ورکړي او هغه یې ورته په ډېرو ځلونو څو چنده کړي، تنګي او پراخي یوائځې الله راوړي او یوائځې هغه ته ورګرځول کېږئ».

الله سبحانه و تعالی هیڅ ته اړ نه دی او هر څه د هغه دي، الله ته پور ورکول د هغه په لار کې جهاد کې لګول دي. تنګي او پراخي د هغه په واک کې ده نو که د هغه په لار کې مالونه ولګوو هغه به زمونږ په مالونو کې برکت واچوي او پراخي به راولي او هغه جل جلاله ته چې ورګرځوو او هغه جل جلاله سره هرومرو مخ کېږو نو که د هغه په لار کې مو مال

[1] - سورة البقرة: ٢٤٥.

**لګولی وي داده او سرلوړي به ورسره مخ شوو او د خپلو لګښتونو اجرونه او نعمتونه به مو په برخه شي او که د هغه په لار کې مو مالونه نه وي لګولي نو سرټيټي او د خجالت سره به ورسره مخ شوو نو بيا به مو ځواب او بدله څه وي؟ !!!**

**او فرمايي :**

« إِن تُقْرِضُوا۟ ٱللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا يُضَٰعِفْهُ لَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ۚ وَٱللَّهُ شَكُورٌ حَلِيمٌ ». ١

**«که الله ته ښه پور ورکړئ نو درته به يې دوه چنده کړي او ښښنه به درته وکړي او الله ډېر زيات مننه کوونکی او ډېر زغمونکی دی».**

**او فرمايي :**

« إِنَّ ٱلْمُصَّدِّقِينَ وَٱلْمُصَّدِّقَٰتِ وَأَقْرَضُوا۟ ٱللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا يُضَٰعَفُ لَهُمْ وَلَهُمْ أَجْرٌ كَرِيمٌ ». ٢

**« مال لګوونکي سړي او ښځې او چې الله ته يې ښه پور ورکړی وي هغوی لپاره اجرونه دوه چنده کېږي او هغوی لپاره عزتمند اجر دی».**

او الله تعالی فرمايي :

« يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ أَنفِقُوا۟ مِمَّا رَزَقْنَٰكُم مِّن قَبْلِ أَن

---

١- سورة التغابن : ١٧ .

٢- سورة الحديد : ١٨ .

يَأۡتِيَ يَوۡمٞ لَّا بَيۡعٞ فِيهِ وَلَا خُلَّةٞ وَلَا شَفَٰعَةٞۗ وَٱلۡكَٰفِرُونَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ››.[1]

‹‹ **ای مؤمنانو! مونږ چې کوم مالونه درکړي دي له هغو نه له دې مخکې لګښتونه وکړئ چې داسې ورځ راشي چې نه به پکې اخیستل خرڅول وي، نه دوستي او نه به سپارښتنه وي او همدا کافران ظالمان دي** ››.

**او فرمايي**:

‹‹ وَمَثَلُ ٱلَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمۡوَٰلَهُمُ ٱبۡتِغَآءَ مَرۡضَاتِ ٱللَّهِ وَتَثۡبِيتٗا مِّنۡ أَنفُسِهِمۡ كَمَثَلِ جَنَّةِۭ بِرَبۡوَةٍ أَصَابَهَا وَابِلٞ فَـَٔاتَتۡ أُكُلَهَا ضِعۡفَيۡنِ فَإِن لَّمۡ يُصِبۡهَا وَابِلٞ فَطَلّٞۗ وَٱللَّهُ بِمَا تَعۡمَلُونَ بَصِيرٌ ››.[2]

‹‹**او هغه خلک چې د الله د رضا د لټولو لپاره او د زړه له پیاوړي اخلاصه خپل مالونه لګوي مثال يې د هغه باغ په څېر دی چې په جګه ډوبی وي، تېز باران پرې وشي نو دوه چنده مېوې ونيسي، که تېز باران پرې ونه شي نو پر ښه هم ورته بس وي او تاسو چې څه کوئ الله پرې ښه ليدونکی دی**››.

---

١- سورة البقرة: ٢٥٤ .

٢- سورة البقرة: ٢٦٥ .

**او فرمايي:**

« مَّثَلُ ٱلَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمۡوَٰلَهُمۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ كَمَثَلِ حَبَّةٍ أَنۢبَتَتۡ سَبۡعَ سَنَابِلَ فِي كُلِّ سُنۢبُلَةٖ مِّاْئَةُ حَبَّةٖۗ وَٱللَّهُ يُضَٰعِفُ لِمَن يَشَآءُۚ وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ ». [1]

**« هغه خلک چې د الله په لار کې خپل مالونه لګوي مثال يې د هغې دانې دی چې اوه وږي يې راشنه کړي وي، په هر وږي کې سل دانې وي او الله چې چاته وغواړي نو ورته دوه چنده کوي يې او الله پراخوونکی او ډېر پوه دی ».**

**نو يوې دانې نه چې اوه وږي رازرغونه شي او هر وږي کې سل دانې وي نو دا اوه سوه دانې شوې او اوه سوه چې دوه چنده شي نو څوارلس سوه (۱۴۰۰) دانې شوې. نو د الله په لار کې چې چا خپل مال ولګاوه هغه ته الله تعالی هغه لګښت څوارلس سوه ځل زياتوي او له دې هم زيات کېدی شي.**

**نو دا د الله تعالی مهرباني ده راځئ چې د الله تعالی دې پراخې مهربانۍ کې خپل ځانونه وردننه کړو او د الله تعالی په لار کې جهاد کې خپل مالونه ولګوو.**

**د هغه چا په حال افسوس دی چې مال ولري او له دې ثوابونو څخه محروم شي!.**

[1]- سورة البقرة: ٢٦١.

**او د حلالو پاکو او کره مالونو په انفاق کې فرمايي:**

«يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَنفِقُواْ مِن طَيِّبَٰتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّآ أَخْرَجْنَا لَكُم مِّنَ ٱلْأَرْضِ ۖ وَلَا تَيَمَّمُواْ ٱلْخَبِيثَ مِنْهُ تُنفِقُونَ وَلَسْتُم بِـَٔاخِذِيهِ إِلَّآ أَن تُغْمِضُواْ فِيهِ ۚ وَٱعْلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ غَنِىٌّ حَمِيدٌ». [1]

**«اى مؤمنانو! له هغو پاکو مالونو نه چې ګټلي مو دي او له هغو نه چې مونږ له ځمکې څخه درته راایستلي دي ويې لګوئ او د هغو ناپاکو اراده مه کوئ چې نورو ته يې ورکوئ او تاسو يې به له دې اخيستونکي نه ياست چې سترګې پرې پټې کړئ. او وپوهېږئ چې الله بې شکه بې پروا او ستايل شوى دى».**

**او فرمايي:**

«لَن تَنَالُواْ ٱلْبِرَّ حَتَّىٰ تُنفِقُواْ مِمَّا تُحِبُّونَ ۚ وَمَا تُنفِقُواْ مِن شَىْءٍ فَإِنَّ ٱللَّهَ بِهِۦ عَلِيمٌ». [2]

**«هيڅکله ترهغې نيکي نه شئ تر لاسه کولى تر څو چې له هغو مالونو څخه ونه لګوئ چې خوښوئ يې او څه شى چې ولګوئ نو الله بې شکه پرې ډېر پوه دى».**

---

١- سورة البقرة: ٢٦٧.

٢- سورة ال عمران: ٩٢.

او فرمايي:

﴿ وَمَا تُنفِقُواْ مِنْ خَيْرٍ فَلِأَنفُسِكُمْۚ وَمَا تُنفِقُونَ إِلَّا ٱبْتِغَآءَ وَجْهِ ٱللَّهِۚ وَمَا تُنفِقُواْ مِنْ خَيْرٍ يُوَفَّ إِلَيْكُمْ وَأَنتُمْ لَا تُظْلَمُونَ ﴾.[١]

« او کوم مال چې ولګوئ نو د خپلو ځانونو لپاره مو دي او يوائې د الله د مخ د لټولو لپاره مالونه لګوئ او کوم مال چې ولګوئ نو پوره اجر به درکول شي او په تاسو به ظلم نه کېږي».

او فرمايي:

﴿ وَمَا تُنفِقُواْ مِنْ خَيْرٍ فَإِنَّ ٱللَّهَ بِهِۦ عَلِيمٌ ٱلَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَٰلَهُم بِٱلَّيْلِ وَٱلنَّهَارِ سِرًّا وَعَلَانِيَةً فَلَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴾.[٢]

« او کوم مال چې ولګوئ نو الله بې شکه پرې ډېر پوه دی، هغه خلک چې د شپې او ورځې په پټه او ښکاره خپل مالونه لګوي، هغوی لپاره دخپل رب سره د هغوی اجر دی، نه به په هغوی وېره وي او نه به خپه کېږي».

---

[١]- سورة البقرة: ٢٧٢.

[٢]- سورة البقرة: ٢٧٣- ٢٧٤.

او د متقیانو په ستانیه کې فرمايي:

«ٱلَّذِينَ يُنفِقُونَ فِي ٱلسَّرَّآءِ وَٱلضَّرَّآءِ وَٱلۡكَٰظِمِينَ ٱلۡغَيۡظَ وَٱلۡعَافِينَ عَنِ ٱلنَّاسِۗ وَٱللَّهُ يُحِبُّ ٱلۡمُحۡسِنِينَ». [1]

«(متقیان) هغه خلک دي چې په خوشحالیو او خفګانونو کې لګښتونه کوي، د غوسې زغمونکي وي او له خلکو تېرېدونکی وي او الله ښېګړه کوونکي خوښوي».

او فرمايي:

«ٱلَّذِينَ يُؤۡمِنُونَ بِٱلۡغَيۡبِ وَيُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَمِمَّا رَزَقۡنَٰهُمۡ يُنفِقُونَ». [2]

«(متقیان) هغه خلک دي چې په پناؤ ایمان راوړي، کره پوره لمونځ کوي او له هغو مالونو څخه لګښت کوي چې مونږ ورکړي دي».

او فرمايي:

«ٱلَّذِينَ يُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَمِمَّا رَزَقۡنَٰهُمۡ يُنفِقُونَ». [3]

«(مؤمنان) هغه خلک دي چې کره پوره لمونځ کوي او له هغو مالونو نه لګښت کوي چې مونږ ورکړي دي».

---

[1] - سورة ال عمران: ١٣٤.

[2] - سورة البقرة: ٣.

[3] - سورة الانفال: ٣.

**او فرمايي:**

(( وَمَا تُنفِقُوا۟ مِن شَىْءٍ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ يُوَفَّ إِلَيْكُمْ وَأَنتُمْ لَا تُظْلَمُونَ )).[1]

**(( او څه شى چې د الله په لار كې ولګوئ پوره اجر به دركول شي او په تاسو به ظلم نه كېږي)).**

**او د عقل د خاوندانو په هكله فرمايي:**

(( وَٱلَّذِينَ صَبَرُوا۟ ٱبْتِغَآءَ وَجْهِ رَبِّهِمْ وَأَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَأَنفَقُوا۟ مِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً وَيَدْرَءُونَ بِٱلْحَسَنَةِ ٱلسَّيِّئَةَ أُو۟لَٰٓئِكَ لَهُمْ عُقْبَى ٱلدَّارِ جَنَّٰتُ عَدْنٍ يَدْخُلُونَهَا وَمَن صَلَحَ مِنْ ءَابَآئِهِمْ وَأَزْوَٰجِهِمْ وَذُرِّيَّٰتِهِمْ ۖ وَٱلْمَلَٰٓئِكَةُ يَدْخُلُونَ عَلَيْهِم مِّن كُلِّ بَابٍ سَلَٰمٌ عَلَيْكُم بِمَا صَبَرْتُمْ ۚ فَنِعْمَ عُقْبَى ٱلدَّارِ )).[2]

**(( او هغه خلک چې د خپل رب د مخ لټولو لپاره يې صبر كړى دى، كره پوره لمونځ يې كړى دى او مونږ چې څه وركړي دي له هغو په پټه او ښكاره لګښتونه كوي او بدي په نېكۍ له منځه وړي دوى لپاره د اخرت كور دى تل پاتې جنتونه دي چې دوى او د دوى پلرونو، جوړو، او بچو نه چې څوک نېک وي، هغې ته به ننوځي او له هرې دروازې نه به ملائک پرې ورننوځي**

---

[1]- سورة الانفال: ٦٠.

[2]- سورة الرعد: ٢٢-٢٤.

او ورته به وايي: په تاسو دې له دې امله سلام وي چې تاسو صبر کړی ؤ نو د اخرت کور ډېر ښه دی».
او فرمايي:

« قُل لِّعِبَادِيَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ يُقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُنفِقُواْ مِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِيَ يَوْمٌ لَّا بَيْعٌ فِيهِ وَلَا خِلَٰلٌ ».[1]

« زما مؤمنو بندګانو ته ووايه: له دې مخکې چې هغه ورځ راشي، چې نه به پکې سوداګري وي او نه دوستي، کره پوره لمونځ وکړي او له هغو مالونو په پټه او ښکاره لګښتونه وکړي چې مونږ ورکړي دي».
او فرمايي:

« قُلْ إِنَّ رَبِّي يَبْسُطُ ٱلرِّزْقَ لِمَن يَشَآءُ مِنْ عِبَادِهِۦ وَيَقْدِرُ لَهُۥ ۚ وَمَآ أَنفَقْتُم مِّن شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهُۥ ۖ وَهُوَ خَيْرُ ٱلرَّٰزِقِينَ ».[2]

«ورته ووايه: زما رب بې شکه د خپلو بندګانو نه هغه چاته روزي پراخوي چې ويې غواړي او ورته تنګوي يې او تاسو چې څه لګولي وي نو الله يې بدله درکوي او هغه تر ټولو ښه

---

۱- ابراهيم: ۳۱.
۲- سورة سبا: ۳۹.

روزي ورکوونکی دی».

او فرمايي:

«يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تُلۡهِكُمۡ أَمۡوَٰلُكُمۡ وَلَآ أَوۡلَٰدُكُمۡ عَن ذِكۡرِ ٱللَّهِۚ وَمَن يَفۡعَلۡ ذَٰلِكَ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡخَٰسِرُونَ وَأَنفِقُواْ مِن مَّا رَزَقۡنَٰكُم مِّن قَبۡلِ أَن يَأۡتِيَ أَحَدَكُمُ ٱلۡمَوۡتُ فَيَقُولَ رَبِّ لَوۡلَآ أَخَّرۡتَنِيٓ إِلَىٰٓ أَجَلٖ قَرِيبٖ فَأَصَّدَّقَ وَأَكُن مِّنَ ٱلصَّٰلِحِينَ». [1]

«ای مؤمنانو تاسو دې خپل مالونه او بچي د الله له يادولو غافل نه کړي او چا چې دا کار وکړ نو همغوی تاوانيان دي. او له دې مخکې له هغو مالونو نه ولګوئ چې مونږ درکړي دي، چې ستاسو هر يو ته مرګ راشي او ووايي: ای زما ربه ولې دې زه نږدې نېټې ته وروسته نه کړم چې ښېګړه وکړم او له نېکانو څخه شم».

او فرمايي:

«فَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ مَا ٱسۡتَطَعۡتُمۡ وَٱسۡمَعُواْ وَأَطِيعُواْ وَأَنفِقُواْ خَيۡرٗا لِّأَنفُسِكُمۡۗ». [2]

«نو څومره چې کولی شئ الله نه ځانونه وژغورئ،

---

[1] - سورة المنافقون: ٩-١٠.

[2] - سورة التغابن: ١٦.

واورئ، و منئ او لګښتونه وکړئ دا تاسو لپاره غوره ده ».
او فرمايي :

«وَمَن يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِۦ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ».[1]

« او چا چې د خپل ځان له بخله ځان وژغورئ نو همغوی بريالي دي ».

رسول الله ﷺ به د نفقې نه زياتي مال ټول د جهاد په لار کې لګاوه.

حديث کې راځي :

عن عمر قال: كانت أموال بن النضير مما أفاء الله على رسوله مما لم يوجف المسلمون عليه بخيل ولاركاب فكانت لرسول الله ﷺ خاصة و كان ينفق على أهله نفقة سنته ثم يجعل ما بقى فى السلاح والكراع عُدةً فى سبيل الله.[2]

د عمر رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي : د بني نضير د قبيلې مالونه هغه وو چې الله خپل پيغمبر ته په غنيمت کې ورکړي وو چې مسلمانانو پرې نه اسونه ځغلولي وو او نه اوښان. نو هغه يواځې د رسول الله ﷺ وو هغه د خپل کور د يو کال خرڅ ورکاوۀ بيا به يې پاتې په وسلې او اسونو اخيستلو مصرفاوۀ او دا د الله سبحانه و تعالى په لار کې د تياري لپاره وو .

رسول الله ﷺ ډېر سخاوت کاوۀ او مال يې هيڅ نه جمع

---

[1]- سورة التغابن : ١٦ .

[2]- رواه البخاری .

کاوۀ تر دې چې د دومره غنیمتونو د لاس ته راتلو سره سره رسول الله ﷺ د وفات په وخت کې له دې نړۍ پور وړی لاړ لکه چې حدیث کې راځي:

عن عائشة قالت: توفي النبي ﷺ ودرعه مرهونة عند يهودي بثلاثين صاعا من شعير.[1]

عائشې رضي الله عنها نه روایت دی هغه وایي چې: رسول الله ﷺ په داسې حال کې ومړ چې زغره یې له یو یهودي سره په دېرش پیمانو وربشو ګرو (ګانه) وه.

د الله سبحانه وتعالى په لار کې چې څومره ښه او زیات مال ولګوو هغومره به د اجر او ثواب مستحق شوو د کره پوره انفاق اجرونه هم کره پوره وي.

حدیث کې راځي:

عن أبي هريرة عن النبي ﷺ قال: « من أنفق زوجين في سبيل الله دعاه خزنة الجنة كل خزنة باب أي فُلُ هلم » قال أبوبكر: يا رسول الله ذاك الذي لا توى عليه فقال النبي ﷺ: « إني لأرجو أن تكون منهم ».[2]

ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی هغه له نبي کریم ﷺ نه روایت کوي چې فرمایلي یې دي: « چا چې د الله په لار کې دوه جوړې ولګولې نو د جنت د هرې دروازې څوکیداران به یې

---

[1] - رواه البخاري.
[2] - رواه البخاري.

رابلي چې: اى فلانيه! دلته راشه» ابوبكر رضي الله عنه وويل: اى د الله پيغمبره! دا هغه څوک دى چې هيڅ باک پرې نشته. نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل: «زه هيله لرم چې تهٔ به له هغوى څخه يې».

له دوه جوړو څخه مطلب ډېروالى او كره والى او يادوه ډولونه او جنسونه دي. لكه نقدې او جنس، وسلې او وسائل، ټوپک او كارتوس، خوراک او پوښاک، مركب (سپرلى) او وسله، د مجاهد د كور او سنګر پالنه، د ټپي او معذور پالنه، د شهيد او مجاهد د كور پالنه، د لارې او سنګر لګښتونه پوره كول يا دوه روپۍ، دوه سوه، دوه زره، دوه لكه، دوه ميليونه.... يا دوه غواوې، دوه اوښان، دوه اسونه او داسې نور ......

سبحان الله! كه نېكانو سره مال وي نو د جنت اخيستل څومره اسانه دي! خو افسوس د بخيلانو په حال چې هسې د ګونګټې غوندې پرې سترى شي او مال يې ميراث خورو ته پاتې شي دنيا او اخرت دواړه يې برباد شي.

حديث كې راځي:

عن أبي ذر قال: إنتهيت إلى النبى ﷺ وهو جالس فِي ظل الكعبة فلما رءاني قال: «هم الأخسرون و رب الكعبة» فقلت: فداك أبى و أمي من هم؟ قال: «هم الأكثرون أموالا إلا من قال هكذا و هكذا من بين يديه و من خلفه و عن يمينه و عن شماله و قليل ما هم».[١]

---

١- رواه البخارى و مسلم.

ابـو ذر رضي الله عنه نـه روايـت دی هغـه وايـي: زه پيغمبـر ﷺ تـه ورغلم او هغه د کعبې سیوري ته ناست ؤ، کله يـې چې زه وليـدم و يې فرمايل: «د کعبې په رب قسم کوم چې هغوی ډېر تاوانيان دي» ما ورته وويل: له تا دې زما پلار او مور قربان شي هغـوی څوک دي؟ ويـې فرمايـل: «هغـوی د ډېـرو مـالونو خاونـدان دي پرتـه لـه هغـو خلکـو چې داسې، داسې، داسې.... يـې ورکـړل» يعنی مخکې، شاته، ښي او کيڼ لورته او هغوی ډېر لږ دي».

بل حديث کې راځي:

عن أبى هريرة قال: قال رسول الله ﷺ: «ما نقصت صدقة من مال و ما زاد الله عبدا بعفو إلا عزا و ما تواضع أحد لله إلا رفعه الله».[1]

ابـو هريـره رضي الله عنه نـه روايـت دی هغـه وايـي: رسـول الله ﷺ فرمايلي دي: «هيڅ صدقې له کوم مال نـه څـه نـه دي کـم کـړي او يو بنده ته پـه تېرېدنې الله يـواځې عـزت زيـاتوي او چا چې الله لپاره عاجزي کړې ده الله هغه پورته کړی دی».

(د صدقې له مال نه هيڅ شی نـه دی کـم کـړی) معنـا دا ده چې الله تعالی په پاتې مال کې برکت اچوي.

د انفاق په هکله حديث کې راځي:

عـن أبـى مسـعود الأنصـارى قـال: جـاء رجـل بناقـة مخطومة فقال: هذه فى سبيل الله. فقال رسول الله ﷺ: «لك

[1]- رواه مسلم.

بها يوم القيامة سبع مائة ناقة كلها مخطومة ». [١]

**ابـو مسـعود انصـاري رضی الله عنه وايـي : يـو سـړي مهـار شـوې اوښـه راوړه او ويـې ويـل : دا د الله پـه لار کـې د جهـاد لپـاره ده، رسول الله ﷺ وفرمايل : « د قيامت پـه ورځ د دې پـه بـدل کـې تـا لپاره اوه سوه اوښې دي چې ټولې به مهار شوې وي ».**

**بل حديث کې داسې راځي :**

عن أبي هريرة قال: قال رسول الله ﷺ : قال الله تعالى: « أنفق يا ابن آدم أُنفق عليك ». [٢]

**ابـو هريـره رضی الله عنه نـه روايـت دی هغـه وايـي: رسـول الله ﷺ فرمايلي دي : «الله تعالى فرمايي: ای بني ادمه! لګښـت وکـړه زه به در باندې لګښت وکړم ».**

**معنا دا چې ته د الله په لار کې مال ولګوه زه به تا ته مال درکړم.**

**بل حديث کې راځي :**

عـن أبـی هريـرة قـال: قـال رجـل: يـا رسـول الله! أی الصدقة أعظم أجرا؟ قال: « أن تصدق و أنت صحيح شحيح تخشى الفقر و تأمل الغنى ولا تمهل حتى إذا بلغت الحلقوم قلت لفلان كذا و لفلان كذا و قدكان لفلان ». [٣]

**ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دی هغه وايي: يو سړي وويل: ای**

---

[١]- رواه مسلم.

[٢]- رواه البخاری و مسلم.

[٣]- رواه البخاری و مسلم.

د الله پېغمبره! د كوم خيرات اجر ډېر لوی دی؟ هغه وفرمايل: «چې ته په داسې وخت کې خيرات وکړې چې روغ او حريص يې، له احتياج وېرېږې او د مالدارۍ هيله لرې او هغه وخت ته مه ګوره چې كله سا مرۍ ته ورسېږي نو وايې: فلاني ته دومره دي او فلاني ته دومره دي حال دا چې هغه خو د فلاني شوي دي».
بل حديث کې راځي:

عن أبى سعيد الخدري قال: قال رسول الله ﷺ: «لأن يتصدق المرء في حياته بدرهم خير له من أن يتصدق بمائة عند موته».[1]

ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «دا چې يو سړی په ژوند کې يوه روپۍ صدقه ورکړي دا له دې نه غوره ده چې د مړينې په وخت کې سل ورکړي».

---
[1]- رواه ابوداود.

# بخل

بخل ډېر ناوړه او بد صفت دی بخیل په بخل مال نه شي زیاتولی. بخیل ډېر بدمرغه وي د کارغانو او ګونګټانو په څېر مرداري راټولوي او راټول کړي مالونه یې نه د نیوي ژوند کې په ښه راشي او نه اخرت کې. بلکه لا پرې سټړی، ستومانه او ګوناهګار شي دنیا کې یې مال نورو ته پاتې شي او اخرت کې یې عذاب بخیل ګالي.

مالونه او اولادونه ازمېښتونه دي نو ډېر غور، فکر او احتیاط په کار دی چې د مالونو او اولادونو له امله د مؤمن دنیا او اخرت برباد نه شي.

الله تعالی فرمايي:

(( إِنَّمَآ أَمۡوَٰلُكُمۡ وَأَوۡلَٰدُكُمۡ فِتۡنَةٞۚ وَٱللَّهُ عِندَهُۥٓ أَجۡرٌ عَظِيمٞ )).[1]

(( ستاسو مالونه او بچي ازمېښت دی او الله سره لوی اجر دی )).

او د بخیلانو په هکله فرمايي:

(( وَٱللَّهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخۡتَالٖ فَخُورٍ ٱلَّذِينَ يَبۡخَلُونَ

١- سورة التغابن: ١٥.

وَيَأْمُرُونَ ٱلنَّاسَ بِٱلْبُخْلِ ۗ وَمَن يَتَوَلَّ فَإِنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلْغَنِىُّ ٱلْحَمِيدُ )).[1]

(( **الله هر هغه کبرجن مغرور نه خوښوي چې بخل کوي او خلکو ته په بخل امر کوي او څوک چې (له حقه) وګرځېد نو بې شکه يوائې الله بې پروا او ستايل شوی دی )).**

**او فرمايي :**

(( وَلَا يَحْسَبَنَّ ٱلَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَآ ءَاتَىٰهُمُ ٱللَّهُ مِن فَضْلِهِۦ هُوَ خَيْرًا لَّهُم ۖ بَلْ هُوَ شَرٌّ لَّهُمْ ۖ سَيُطَوَّقُونَ مَا بَخِلُوا۟ بِهِۦ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ۗ وَلِلَّهِ مِيرَٰثُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۗ وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ )). [2]

(( **او بخيلان دې دا ګومان نه کوي چې الله له خپلې مهربانۍ څه ورکړي دي هغه دې هغوی لپاره ښه وي بلکه دا هغوی لپاره شر دی د قيامت په ورځ به هغه مال ورته په غاړو کې واچول شي چې دوی پرې بخل کړی دی او د اسمانونو او ځمکې ميراث يوائې د الله دی او تاسو چې څه کوئ الله پرې ښه خبر دی )).**

---

١- سورة الحديد: ٢٣- ٢٤ .

٢- سورة ال عمران: ١٨٠ .

**او فرمايي:**

(( إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ مَن كَانَ مُخْتَالًا فَخُورًا ٱلَّذِينَ يَبْخَلُونَ وَيَأْمُرُونَ ٱلنَّاسَ بِٱلْبُخْلِ وَيَكْتُمُونَ مَآ ءَاتَىٰهُمُ ٱللَّهُ مِن فَضْلِهِۦ ۗ وَأَعْتَدْنَا لِلْكَـٰفِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا )).[1]

**(( الله بې شكه هغه كبرجن مغرور نه خوښوي چې بخل كوي، خلكو ته په بخل كولو امر كوي او هغه مال پټوي چې الله د خپلې مهربانۍ نه وركړى دى او كافرانو لپاره مونږ سپكوونكى عذاب تيار كړى دى )).**

**او فرمايي:**

(( وَٱلَّذِينَ يَكْنِزُونَ ٱلذَّهَبَ وَٱلْفِضَّةَ وَلَا يُنفِقُونَهَا فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ يَوْمَ يُحْمَىٰ عَلَيْهَا فِى نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوَىٰ بِهَا جِبَاهُهُمْ وَجُنُوبُهُمْ وَظُهُورُهُمْ ۖ هَـٰذَا مَا كَنَزْتُمْ لِأَنفُسِكُمْ فَذُوقُوا۟ مَا كُنتُمْ )).[2]

**(( هغه خلک چې سره او سپين زر جمع كوي او د الله په لار كې يې نه لګوي په هغه ورځ د دردناک عذاب زېرى وركړه چې**

---

١- سورة النساء: ٣٦-٣٧.

٢- سورة التوبة: ٣٤-٣٥.

هغـه سـره اوسـپين بـه د دوزخ پـه اور كـې ګـرم شـي نـو د هغـوى تندي، اړخونه او شاګانې به پرې وداغل شي ((ورته وبه ويـل شـي دا هغه مال دى چې تاسو خپلو ځانونو لپـاره جمـع كړى ؤ نـو څـه مو چې جمع كول وېې څكئ)).

# د پای ټکي

دا کتاب ما د نورو کتابونو په څنګ کې د پېښور په سنټرل جېل کې د ۱۴۲۸ هـ ق او ۱۴۲۹ هـ ق په اوږدو کې لیکلی ؤ خو هلته راسره د قران کریم، بخاري او مشکات نه پرته نور کتابونه نه وو دې درې وارونه مې ګټه واخیسته او د ذهن په نیمګړې خزانې کې چې راسره څه وو هغه مې پکې وېپیل.

ازادۍ نه وروسته مې د الله تعالی په توفیق د ځینو احادیثو تخریج او د مسائلو پاتې تحقیق وکړ. د کتاب مراجع د پاڼو په لمنو کې لیکل شوي دي او هسې رواجي د پاڼو زیاتولو او بیا تکرارولو اړتیا نشته. هیله لرو چې دا کتاب الله تعالی د جهاد فی سبیل الله د ملاتړ او ماته د اجر او بښنې لامل وګرځوي.

۱۴۳۰/۵/۳ هـ سپوږمیز

# لړليک


| ګڼه | سرليک | مخ |
|---|---|---|
| ۱ | سريزه | ۱ |
| ۲ | جهاد فی سبيل الله | ۳ |
| ۳ | د جهاد موخه | ۱۴ |
| ۴ | اسلامي خلافت | ۲۱ |
| ۵ | د جهاد اداب او احکام | ۲۹ |
| ٦ | منظم مجاهدين | ۳٦ |
| ۷ | د جهاد د مشروعيت پړاوونه | ۳۹ |
| ۸ | د مکي پړاو درې ډوله جهاد | ۴۰ |
| ۹ | د مدني پړاو درې ډوله جهاد | ۴۰ |
| ۱۰ | مکي مبشريه جهاد | ۴۱ |
| ۱۱ | مکي مامور به جهاد | ۴۱ |
| ۱۲ | مکي ممنوع عنه جهاد | ۴۲ |
| ۱۳ | مدني ماذون فيه جهاد | ۴۴ |
| ۱۴ | مدني مامور به لمن بدا | ۴۵ |
| ۱۵ | مدني مامور به لجميع | ۴٦ |
| ۱٦ | د فرض جهاد ډولونه | ۴۸ |
| ۱۷ | فرض کفايي | ۴۹ |
| ۱۸ | فرض عين | ۴۹ |

| ګڼه | سرلیک | مخ |
|---|---|---|
| ۱۹ | ایا خلیفه جهاد لپاره شرط دی؟ | ۵۳ |
| ۲۰ | جهاد به تر قیامته جاري وي | ٦٧ |
| ۲۱ | د جهاد فضیلتونه | ٦۹ |
| ۲۲ | د کورونو او سنګرونو توپیر | ۹۷ |
| ۲۳ | په سنګر کې د څوکۍ فضیلت | ۹۹ |
| ۲۴ | د وسلې ساتل | ۱۰۰ |
| ۲۵ | د امیر طاعت | ۱۰۲ |
| ۲٦ | اتحاد | ۱۰۴ |
| ۲۷ | مشوره | ۱۰۷ |
| ۲۸ | عدل او انصاف | ۱۰۹ |
| ۲۹ | اعداد | ۱۱۱ |
| ۳۰ | د اسونو ساتل او پالل | ۱۱۸ |
| ۳۱ | د اسونو مسابقه | ۱۲۳ |
| ۳۲ | په غنیمت کې داس ونډه | ۱۲۴ |
| ۳۳ | جهاد لپاره استخبارات | ۱۲۵ |
| ۳۴ | جهاد نه کول د عذاب لامل | ۱۲۷ |
| ۳۵ | کافرانو ته هر ډول تاوان رسول | ۱۳۰ |
| ۳٦ | د مجاهدینو انتخاب او چاڼ | ۱۳۲ |
| ۳۷ | لږ تر لږه د مجاهد عمر | ۱۳۳ |
| ۳۸ | نږدې دښمن سره جهاد | ۱۳۷ |
| ۳۹ | د دښمن لټون | ۱۴۳ |
| ۴۰ | له دښمن تېښته | ۱۴۴ |
| ۴۱ | دښمن سره د مخ کېدو ارمان | ۱۴۸ |
| ۴۲ | له دښمن څخه رازونه پټ ساتل | ۱۴۹ |

| ګڼه | سرلیک | مخ |
|---|---|---|
| ۴۳ | د غازي تیارول | ۱۵۱ |
| ۴۴ | مجاهد سره خیانت کول | ۱۵۳ |
| ۴۵ | زړورتیا | ۱۵۴ |
| ۴٦ | جهاد کې ویاړنه | ۱۵٦ |
| ۴۷ | جهاد کې شعرونه او ترانې | ۱٦۰ |
| ۴۸ | د ښځو جهاد | ۱٦۲ |
| ۴۹ | د سنګر دعاوې | ۱٦۷ |
| ۵۰ | سیمې ته دننوتو په وخت کې | ۱٦۷ |
| ۵۱ | دښمن سره د مخ کېدو په وخت کې | ۱٦۸ |
| ۵۲ | عملیاتو نه د راستنېدو په وخت کې | ۱٦۹ |
| ۵۳ | د برید مناسب وختونه | ۱۷۰ |
| ۵۴ | د شپې نوم او نښه | ۱۷۲ |
| ۵۵ | احتیاط، تحقیق او پلټنه | ۱۷۳ |
| ۵٦ | د لاروړنګول او تنګول | ۱۷۷ |
| ۵۷ | ړنګول او سېځل | ۱۷۸ |
| ۵۸ | د خرپ او ترپ | ۱۸۲ |
| ۵۹ | صلاة خوف | ۱۸۷ |
| ٦۰ | لومړی ډول | ۱۸۹ |
| ٦۱ | دوهم ډول | ۱۹۰ |
| ٦۲ | دریم ډول | ۱۹۱ |
| ٦۳ | څلورم ډول | ۱۹۲ |
| ٦۴ | پنځم ډول | ۱۹۲ |
| ٦۵ | شپږم ډول | ۱۹۳ |
| ٦٦ | اوم ډول | ۱۹۴ |

| ګڼه | سرلیک | مخ |
|---|---|---|
| ٦٧ | اتم ډول | ۱۹۴ |
| ٦٨ | قنوت نازله | ۱۹۵ |
| ٦٩ | جنګ چل دی | ۲۰۰ |
| ۷۰ | مسجد الحرام کې قتال | ۲۰۲ |
| ۷۱ | په اشهرالحرم کې جنګېدل | ۲۰۴ |
| ۷۲ | جهادي تصویرونه | ۲۰٦ |
| ۷۳ | د دښمن ځمکې ته د قران وړل | ۲۰۸ |
| ۷۴ | د جهاد په مال کې خیانت | ۲۰۹ |
| ۷۵ | کافرو ته جاسوسي کول | ۲۱۲ |
| ۷٦ | د جاسوس وژل | ۲۲۷ |
| ۷۷ | په تحقیق کې | ۲۳۲ |
| ۷۸ | په اور سېځل | ۲۳۹ |
| ۷۹ | مثله منع ده | ۲۴۲ |
| ۸۰ | د ښځو او ماشومانو وژل | ۲۴۴ |
| ۸۱ | تترس | ۲۴۷ |
| ۸۲ | استازی نه وژل کېږي | ۲۵۳ |
| ۸۳ | دښمنان بندیان نیول | ۲۵۴ |
| ۸۴ | وژل | ۲۵۵ |
| ۸۵ | احسان کول | ۲۵۷ |
| ۸٦ | الله تعالی نه سرغړوونکي محاربین | ۲٦۰ |
| ۸۷ | باغیان او خارجیا ن | ۲٦۴ |
| ۸۸ | جهاد او منافقان | ۲٦٦ |
| ۸۹ | د منافقانو وژل | ۲۸۲ |
| ۹۰ | ازمېښتونه | ۲۸۸ |

| ګڼه | سرلیک | مخ |
|---|---|---|
| ۹۱ | اسارت ته ځان ورکول ........................................ | ۳۰۴ |
| ۹۲ | اوربند ........................................ | ۳۰۸ |
| ۹۳ | سوله ........................................ | ۳۰۹ |
| ۹۴ | روا سوله ........................................ | ۳۰۹ |
| ۹۵ | ناروا سوله ........................................ | ۳۱۰ |
| ۹۶ | د بندیانو را ازادول ........................................ | ۳۱۲ |
| ۹۷ | عذر ........................................ | ۳۱۸ |
| ۹۸ | جهاد کې د ټپي کېدو فضیلت ........................................ | ۳۲۲ |
| ۹۹ | شهادت ........................................ | ۳۲۴ |
| ۱۰۰ | په خپله وسله شهادت ........................................ | ۳۳۷ |
| ۱۰۱ | استشهادي بریدونه ........................................ | ۳۴۱ |
| ۱۰۲ | د استعمار د یو غلام ........................................ | ۳۶۳ |
| ۱۰۳ | د الله تعالی مرسته ........................................ | ۳۶۷ |
| ۱۰۴ | غنیمت ........................................ | ۳۸۰ |
| ۱۰۵ | د غنیمت په مال کې خیانت ........................................ | ۳۸۱ |
| ۱۰۶ | غنیمت د جنګیالي حق دی ........................................ | ۳۸۷ |
| ۱۰۷ | د غائب مجاهد ونډه ........................................ | ۳۸۹ |
| ۱۰۸ | فئ ........................................ | ۳۹۰ |
| ۱۰۹ | نفل ........................................ | ۳۹۱ |
| ۱۱۰ | سلب ........................................ | ۳۹۲ |
| ۱۱۱ | د مجاهد، شهید او بندي د کور پالنه ........................................ | ۳۹۶ |
| ۱۱۲ | جزیه ........................................ | ۳۹۷ |
| ۱۱۳ | د ذمي وژل ناروا دي ........................................ | ۴۰۱ |
| ۱۱۴ | ذمه په څه شي ماتېږي ........................................ | ۴۰۲ |

| ګڼه | سرلیک | مخ |
|---|---|---|
| ۱۱۵ | هجرت فی سبیل الله | ۴۰۳ |
| ۱۱۶ | د هجرت اهمیت | ۴۰۴ |
| ۱۱۷ | هجرت د جهاد دروازه ده | ۴۱۲ |
| ۱۱۸ | د هجرت ډولونه | ۴۱۶ |
| ۱۱۹ | هجرت نه کول لویه ګونا ده | ۴۱۹ |
| ۱۲۰ | بې وسه | ۴۲۱ |
| ۱۲۱ | نصرت | ۴۲۲ |
| ۱۲۲ | د الله په لار کې لګښت | ۴۲۸ |
| ۱۲۳ | بخل | ۴۴۸ |
| ۱۲۴ | د پای ټکي | ۴۵۲ |
| ۱۲۵ | لړلیک | ۴۵۳ |


- - - - - - - - - - - - - - - - - -

# دا کتاب

دا کتاب د الله سبحانه وتعالی په لار کې د جهاد په هکله هغه ځانګړی کتاب دی چې د جهاد ډېر مفاهیم، احکام او د ځینو نویو راپېښو مسائلو په هکله پکې د اړتیاوړ څېړنه شوې ده؛ د في سبیل الله جهاد د تودو سنګرونو نومیالیو، مېړنیو او پتمنو اتلانو لپاره د لارې مشال او لارښود دی، هیله لرو چې ویدهٔ راویښ کړي، ویښو ته پاځون وروبښي، پاڅون ته یون، یون ته اووښتون، اووښتون ته بدلون، بدلون ته سمون ورکړي او سمون د سپین سباون پیلامه شي.